# گوار کوهستاني

# افغانان

(لومړی ټوک)




الحاج محمد نواز حقیقت سانین

۱۳۹۰ ال کال

# کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| کتاب نوم: | ګوار کوهستاني افغانان |
| لیکوال: | الحاج محمد نواز حقیقت سانین |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپکال: | ۱۳۹۰ل کال |
| خپرندوی: | د ملي ارمانونو فرهنګي ټولنه |
| پرله پسې نومره: | ۱۰ |
| کمپوز: | ضیاءالرحمن ضیاء |
| د پښتې ډیزاین: | ژکفر حسیني |
| چاپځای: | |



# ډالۍ

زما ګران او ځوانیمرګ زوی همت الله سانین ته، چې د لږو شپو مېلمه و، د لوی خدای(ج) له درګاه څخه ورته جنتونه غواړم او یاد به یې د تل لپاره زما د زړه پر هېنداره پاتې وي.

# د الحاج سانین د ګوار او ګواري په اړه...

هر انسان؛ ځوان دی که زوړ، خوار دی که موړ، الحاج محمد نواز حقیقت سانین دی او که امیر کروړ ، د خپل توان په اندازه یې د خپلو کړنو او طبیعي استعداد له مخې خپل ځان، وجدان، خپلې کورنۍ، اولادونو، خپلوانو، دوستانو، خپلو خلکو، هېوادوالو، خپل چاپېریال، ټولنې، سیمې، انسان، نړۍ او څښتن تعالی ته مسوول، پړ، ګرم او ځواب ویونکي دي.



زه ښاغلی حاجي صاحب حقیقت سانین د اووه ویشتو کالو په اوږدو کې پېژنم، نوموړي په پوره اندازې د هېواد د پښتو ژبو ماشومانو حق په ډېره ښه توګه او حسن صورت ادا کړی دی. ده کوچنیانو ته د هغوی په معصومه او ساده ژبه ګڼ شمېر نظمونه او ترانې لیکلي او چاپ کړي دي. د کوچنیانو د ادبیاتو په برخه کې سانین ډېره تجربه لري او پښتنو ماشومانو ته یې ډېر کارونه ترسره کړي چې د ماشومانو په ادب کې ښه شاعر پېژندلی شوی دی. ده د خپل هېواد ګران ځوانان (نجونې او هلکان) نه دي هېر کړي، ځوانانو ته یې د خپل وس او استعداد په پیمانه د هېواد پالنې له مینې ډک درسونه په خپلو نظمونو او نثرونو کې وړاندې کړي دي. ښاغلي حاجي محمد نواز حقیقت سانین د کونړ د غیرتي او ښېرازې درې او

د کونړ ولایت ستر، مخور شخصیتونه او ویاړمن نومیالي هم له پامه نه دي لرې کړي. د خپلو قامي او ولسي مشرانو یې هم پوره پوره عزت او درناوی کړی دی، په خپل فرهنګي قلم یې هغوی په ډېره ښه او مناسبه بڼه د هېواد ټولو ولایتونو، ولسونو او پرګنو ته ورپېژندلي دي.

د ښاغلي محمد نواز سانین شاعري او لیکوالي په مجموع کې د اکثریتو خلکو په عام فهمه (فصیحه او بلیغه، ساده، روانه) ژبه (لهجه) کړې ده او هر څه یې په خوږې پښتو ژبې له مینې، محبت او اخلاص نه په ډکې روحیې د خپلو هېوادوالو په واک کې ورکړي دي.

د حاجي حقیقت سانین د شخصیت ډېر اړخونه مثبت دي. کوم ټکي چې دده په ژوند کې زما ډېر خوښ دي، هغه دده وګړنیزتوب (ولسي والی)، د شاعرۍ او لیکوالۍ کار پسې پرله پسې هاند او تکل، په خپل قام ((ګوار، خپلو خلکو (پښت) ((ګواریانو)) او خپلې مورنۍ ژبې ((ګواري)) باندې نه یوازې ویاړ کوي، بلکې د ګواریانو او ګواري ژبې خدمت ته یې عملاً ملا تړلې رانغاړلي دي. ماته پته ده او زه خبر یم چې ښاغلی محمد نواز حقیقت سانین د خپل ژوند ډېر کلونه د خپلو خلکو او خپلې مورنۍ ژبې چوپړ ته وقف کړي دي. شپې شپې یې رنې تېرې کړي دي او ورځې ورځې (میاشتې-کلونه) یې لیکل کړي دي، تر څو وکولی شي خپل قام او خپله مورنۍ ژبه د

هېواد په نورو سيالو او يادو قامونو او ژبو کې سيال او ياد کړي، نو ځکه د ګواري ژبې نن يو وطني ليکوال او شاعر دی.

ښاغلی حقيقت سانين په دې ستر ازمون کې تر ډېره بريده برياليتوب راوتلی دی، له نېکه مرغه ((ګواريان)) چې اټکلي شمېر يې (۴۰-۴۵) زرو تنو ته رسېږي، د خپل مهربان او زيار ګال شاعر- ليکوال ښاغلي ورور ډاکتر حاجي محمد نواز حقيقت سانين په زيار او زحمت تر علومو اکاډمۍ، د کابل- ننګرهار تر پوهنتونونو، د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف تر رياست او د دولت تر لوړ پوړو چارواکو پورې معرفي او وپېژندل شول.

زما د ادعا ژوندی ثبوت د ښاغلي سانين همدا ارزښتناکه کتاب (ګوار کوهستاني افغانن) دی چې ستاسې په مخ کې پروت او ستاسو د لوستلو وياړ لري. باور لرم او معتقد يم چې په راتلونکې زمانه کې به ((ګواري)) ژبه د پوهنې وزارت په تعليمي نصاب، د افغانستان ملي راډيو ټلويزيون، د افغانستان پارلمان، د سرحدونو قبايلو چارو وزارت کې يوه ژوندۍ مطرح او د حساب وړ ژبه شي او دا وياړ سانين ته ترابده په برخه شوی.

ګواريانو ته به ښاغلی حاجي صاحب سانين د منلي مشر، د رحمان بابا، خوشال خان ختک، بېټ نيکه، توکل بابا، ملنګ جان استاد، استاد نورمحمد غمجن، محمد زمان کلماني، سليمان سون ارا نورستانی، حمزه بابا په څېر د وياړ هسکه شمله، قدرمن بابا او دروند نيکه شي!

محمد نواز حقیقت سانین لومړی لیکوال (بنسټ ایښودونکی) د ګواري ژبې او ګواریانو وګړو دی. تر ده دمخه هیڅ ، هیڅکله د ګواري ژبې لپاره قلمي- ادبي کار نه دی کړی.

پر دې هیلې چې د حاجي صاحب محمد نواز حقیقت سانین دا کتاب ډېر ژر له چاپه راووځي او زموږ هېوادوالو ته ورسېږي. زه خپل شاعر او لیکوال ملګري حاجي سانین صاحب ته ددې کتاب د چاپ مبارکي مخکې له مخکې ورکوم او له پاک خدای(ج) څخه ده ته اوږد ، نېکمرغه عمر، ستر بریالیتوبونه او د لا ډېرو، ښو، پخو او کره اثارو تخلیق او پنځونه غواړم!

په پوره اخلاص او زیاتې مینې
مولف محمد عزیز تحریک
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو
د تالیف د ریاست علمي او مسلکي غړی
۱۵-۱۲- ۱۳۸۹ل کال
احمدشاه بابا مېنه -کابل

# دګوار کوهستاني افغانان پر کتاب څو خبرې



افغانستان یو ګڼ توکمیز هېواد دی چې همدا اوس په هغه کې د ډېرشو څخه زیات قومونه او ژبې شتون لري. په افغانستان کې ډېر داسې قومونه او ژبې هم ول چې اوس یې پته نشته او له منځه تللي دي. که موږ د خپل هېواد د ولایتونو، سیمو، غرونو، دښتونو، سیندونو، درو، کلیو، بانډو او نورو ځایونو نومونو ته ځیر شو نو داسې ډېرو نومونو سره به مخ شو چې زموږ په اوسنیو ژبو کې یې معنا ګانې نشته، نو دا پخپله ددې شاهدي ورکوي چې دلته پخوا نورې ژبې هم وې چې اوس له منځه تللي دي. که موږ افغانان خپل دغه موجوده ژبې ژوندي ونه ساتو او هیر یې کړو، نو حتمي ده چې زموږ راتلونکي نسلونه به د ډېرو اوسنیو نومونو په معنا ګانو هم پوه نه شي چې لږ تر لږه اوس ددې هېواد د یوې ژبې ویونکي پرې پوهیږي.

د یو قوم د ادبیاتو او ژبې له منځه تلل دهغه قوم د هویت او ویاړونو د له منځه تلو په معنا ده چې باید په کلکه یې مخه ونیول شي. په دې برخه کې د ښاغلي محمد نواز حقیقت سانین ورور هڅې چې له ډېرو کلونو راپه دې خوایې پیل کړي، د ډیرې ستاینې وړ دي. حقیقت سانیس صاحب پوره له دېرشو کلونو څخه راپه دې خوا پېژنم، تل یې د خپلو دنیوي او اخروي کارونو تر څنګ د خپل

قوم او ژبې دهویت د ژوندي ساتلو په برخه کې یې نه ستړي کېدونکي هلې ځلې کړي او په دې برخه کې ډېر لاسته راوړنې لري چې ټول یې شاهدان یو. فکر کوم همدا محمد نواز حقیقت به وي چې د لومړي ځل لپاره په سترو رسمي علمي او ادبي غونډو کې یې په خپله مورني ګواري ژبه شعرونه لوستي او دا ژبه یې د نورو افغانانو ته ور پېژندلې ده او ښه په یاد مې دي چې د ده یو ګواري شعر څه کم دېرش کاله وړاندې د ژوندون د مجلې په پښتو اډیشن کې خپور شوي دي چې کېدلي شي تر دې د مخه دا ویاړ د بل چا په برخه شوي نه وي. په هر صورت ګواري کوهستاني افغانان چې ددغه کتاب نوم هم دي زموږ د هېواد له ډېرو لرغونو او مېړنیو قومونو څخه دي چې د اوسني کونړ ولایت په ختیزه برخه کې مېشت دي او د نورستان د ګوردېش نوم هم د دوی له نامه سره اړیکې لري. فکر کوم او پوره باور هم لرم چې دغه د اوسني ګواري نوم هماغه د سکندر د وختونو د ګوري د قوم اوسنی بڼه ده چې د سکندر د یرغلګرو پر وړاندې د اساکېني او اسپاس قبیلو سره په ګډه جنګېدلي او مېړانه یې ښودلې ده. البته دغه د ګوري، اساکېني او اسپاس نومونه د ګواري ورونو په څېرپه پشه یانو کې هم تر اوسه ژوندي دي او دا چې د حقیقت صاحب له نظره ګواري، پشه یي او نورستاني قومونه سره یو دي، دې کې هېڅ شک نشته، دا صحیح خبره ده. ځکه دا ټول او نور چې الینایان دي د داردي په نامه هم یادشوي دي. داردي ژبې د اریایي هغه ګروپ دي چې دافغانستان

په ختیځو سیمو او لې یې د پاکستان په شمالي او دهند په شمال لویدیځ په څو سیموکې موجودې دي او دغه څانګې لري:
۱-لویدیځې داردي یانورستاني ژبې . لکه کاتي ، وایګلي، اشکونړي ، پراسوني اوداميلي.
۲-مرکزي داردي ژبې. لکه پشه يي، ګواري، کلشي، تيرايي، خوواري یا چترالي اونور.
۳-ختیځې یا خاصې داردي ژبې .لکه کشميري ، مایاني ، توروالي ، بشکاریک، شيني اونور.
چې په دې توګه دغه داردي ژبې دختیځو (هندي) او لویدیځو (باختري او ايراني) ژبو دوصل او یو ځاي کېدو د کړۍ حیثیت لري .
دا هم باید وویل شي چې دغه داردي قومونه د لرغوني ګندهارا د وګړو ستره برخه جوړوي چې په پشه يي کې ګندهارا خوشبو يي راوړونکې ته وايي. ددغو داردي خلکو سیمه د داردستان په نامه هم یاده شوې او خلک يې کوهستاني هم بلل شوي دي.
دا چې دغو خلکو ته ولې کوهستاني وايي زما په نظر یو دلیل يې دا هم کېداي شي چې د کوشانیانو پاتې شونې او بقایا چې دوي ته ډېر نږدې قوم دې او د همدې پشه يي، نورستاني او ګواري مېشتو سیموکې منحل شوي دي او د کتور نوم چې د کوشانیانو د شهزاده کېداره نامه ته اړوند بلل شوي، ددغي خبرې ښه ثبوت دئ. بل دا چې په لغمان کې غرنيو پشه یانو ته کوهستاني څه چې کوشتاني وايي او هم زما په نظر د کاپيسا د رېزه کوهستان نوم چې ټول پشه

یان پکې مېشت دي د رېزه کوشانیانو له نامه څخه اخیستل شوي برېښي. که یوازې دغرونو د موجودیت له وجې چې دوی په کې اوسېږي دغو خلکو ته کوهستاني وویل شي نو نړدې ټول افغانستان غرني او کوهستاني دي چې نورو خلکو ته یې څوک کوهستاني نه وایي. د افغانستان دغه قومونه چې زیاتره یې په کونړ، نورستان، کاپیسا، لغمان او ننګرهار ولایتونو او ورڅېرمه سیمو کې هستوګن دي، له هره پلوه کډ فرهنګي ممیزات، دودونه، ورته څېرې، ژبې او لهجې لري چې ددغې سیمې تر ټولو پخواني اواصلي او سېدونکي دي. خو په خواشینۍ سره باید یادونه وشي چې دغه خلک په تېره څو وروستیو پېړیو کې له هر څه حتا له خپل څرګند هویت څخه هم محروم ساتل شوي دي. چا ورته د سکندر د بقایاو خطاب کړی، چا ورته قریش او کافر ویلي، چا نه پېژندل شوي قومونه بللي او چا د پښتنو او تاجکو تر منځ ویشلي او یا دا چې ځینو په نا آګاهانه توګه دوي ته د دېګان خطاب کړي دئ. حال دا چې دېګان د لامګان معادل چې د لغمان پخوانۍ بڼه ده د سیمې اصلي اوسېدونکو ته وایي. که ځینې ددې په معنا هم پوه شوي وای فکر کوم چې دا نوم به یې هم ورته نه وای لورېدلی. له همدې وجې پخوا د کونړ، د ننګرهار د ولایت د شمالي برخو، لغمان او د کاپیسا اصلي اوسېدونکي د دېګانانو په نامه یاد شوي چې (ده) د (لام) معادل کلي ته وایي او (ګان) صاحب او خاوند ته، چې د ځایي خلکو په معنا راځي.

پوره باور لرم چي د ښاغلي محمد نواز حقيقت دغه د (ګوار کوهستاني افغانان) کتاب به هم چې ټول مې نه دي لوستلاي همدغه او داسې نور د ډېرو ښو مفاهيمو لرونکي وي او لوستونکي به ورڅخه ښه ګټه واخلي.

داچې ښاغلي حقيقت ورور له ما څخه د دغه کتاب په اړه د څه ليکلو غوښتنه وکړه او دا وياړيې را په برخه کړ چې خپلې څو ګډې وډې خبرې له دې لارې لوستونکوته وړاندې کړم د دوي له دغه نېک لورېينې څخه مننه کوم او د ژوندانه په ټولو برخو کې د لا نورو بريو او پرمختګونو هيله ورته لرم.

په درنښت
محمد زمان کلماني
د وطنداران د ورځپاڼې مسؤول چلوونکی او رييس



بنام آنکه هستی نام از او یافت   فلک جنبش زمین آرام از او یافت

# گوار کوهستاني افغانان

این اثر علمي تحقیقي و پژوهشي نام کتاب است که توسط دانشمند آگاه و متعهد جناب داکتر محمد نوار. حقیقت به رشته تحریر درآمده گرچه بنده بخود صلاحیت ابراز نظر بالاي کتاب علمي برادر همخون و دوست فرزانه خود نمي دهم با نهم فرمایش عزیزم را بدیده قدر نگریسته چند سخن جسته و گریخته خدا کند شایسته کتابشان بوده باشد در باب این اثر گر چه اثر مذکور در اختیار من نیست ولي از روي عناوین با در نظر داشت صلاحیت کاري اقاي حقیقت به بیان چند سخن مي پردازم.



این رساله ارزشمند در بابت معرفي و شناخت زوایاي مختلف قوم با عزت گوار «ستره» که بخش شاخه بزرگ نورستاني را تشکیل میدهد براي بار اول توسط شاعرو نویسنده شیوا بیان گرد آوري شده مطمینا بدرد بخور و قابل استفاده باعت فخر برادران گواري ما میباشد. کتاب حاضر در نوع خود از مبرمترین آثاریست مخصوصا در اوضاع و احوال کنوني کشور درین اثر غني عمده ترین مسایل مربوط به قوم گواربتي با بیان و روش خاص پژوهشي درآورده شده بحیث امانت فکري براي قوم و فرهنگیان کشور آماده

شده اساسا دریک جامعه مدني توزیع و مبادله اطلاعات در جهت ایجاد تغیرات اجمتاعي و اصلاحات اقتصادي و معرفت زوایاي تاریک ولي مانگار قوم شجاع دلیر «ستره» و مهمتر از همه بیداري ملي از ضروریات مهم به حساب میآید نواز حقیقت با درک این رسالت بعنوان اداي دین ملي در حالیکه قوم گوابتي «ستره» نیاز دارند در وطن اباي جاي گاهي معنوي را داشته باشند.

حقیقت نه تنها بخاطر رشد و غنامندي و بارور ساختن ادبیات ستره گام استوار برداشته بلکه یک بخش از سرمایه ملي کشور را احیا و به معرفت آورده است. باید از طرف قوم غیور گواربتي و هم از طرف حکومت وقت و جانبي هم از سوي قلم بدستان کشور مورد نوازش قرار گیرد دریغا در کشور ما که ناف بسیاري ما را باخرافات بریده اند دانشمند، پژوهشگر، مورخ، قلم بدست، شاعر بالاخره شخصیت هاي ملي و خدمتگاران وطن مقام و منزلت چندان ندارند هنوز که هنوز است حتي روشنفکران ما هم در چرخ خرافات پیچاوپیچ اند و طلسم و نیرنگ باطل پردازي دست و پاي شان را گیره محکم مي زند و در شهر و بازار خیال بافي ها رهنمون میشود آنانیکه خود را روشنفکر آزاد خیال مینامند بخاطر دستیابي به محبت و یا کاریابي عادي نزد انسان هاي کم سواد حتي بیسواد کوچه فال و طالع مي بینند در چنین حالت نمي توان منتظر پاداش نیک و خیر ببیني ماند ولي انسان رسالت مند قفل در و دروازه هم چو موانع را درهم میکوبند و فاتحانه وارد میدان شده براي رشد و

انکشاف زبان، تاریخ و داشته هاي معنوي نیاکان شجاعانه قلم فرساي میکنند اثرمي آفرینند. فرهنگ هاي مختلف ملي را در زیر یک چتر بمعرفي میکشاند حقیقت در حقیقت از همین جمله انسانها است هرکي تخم سخن را در بین جامعه انساني میکارد مرگ ندارد خواهي نخواهي اینجا و آنجا این تخم ها جوانه مي زند، سربر مي آرد، رشد کرده گل میکند، به ثمر مي رسد بالاخره مورد استفاده قرار میگیرد به هر صورت حق بر باطل پیروز شدني است و نام نامي اشخاص و افراد مبتکر در صفحات زرین تاریخ ابدیت میابد حقیقت در غنامندي و باروري فرهنگ اصل کشور گام متین و حساب شده برداشته است ایزد منان پشت و پناهش باد.

در فرجام انانیکه در چاپ همچو اثر پر غنا علمي، فرهنگي همت میگمارند از بارگاه بي نیاز استدعا مینمایم درمالش برکت به اندازد و چاپ این کتاب را صمیمانه استقبال نموده موفقیت هاي مزید مولف را در راستاي تحقیقات علمي و تالیفات گسترده تر براي انکشاف زبان و ادبیات قوم گوارباتي (ستره) آرزو میدارم حقیقت به حقیقت پیوسته است انشاءالله.

باعرض حرمت

معاون سرمولف سلیمان سون ارا نورستاني

کابل- کارته چهار

دوشنبه روزآفتابي ۱۶ حوت

# ګوار کوهستاني افغانان

زموږ ګران او خوږ هېواد د اسیا په زړه کې د ورونو ملیتونو د ننګونو یو ځلانده د لرغونو زمانو تاتوبی دی. د اریایي تمدنونو زانګو ده چې پنځه زره کلن تاریخ ټولو افغانانو ته د ویاړ نه ډکه خبره ده، زموږ هېواد د ملي اتلانو او باتورانو او توریالیو ولسونو کور دی، چې په نړۍ کې ساری نه لري، ددې خوږ هېواد د لرغونو زمانو راهیسې تاریخي پېښې او د ولسونو حماسې او کارنامې، سربښندنې د هېواد ځلانده تاریخ جوړ کړی، چې لوستل یې د هر چا لپاره په زړه پورې دي، دا هېواد د طبیعي سرشارو شتمنیو او بې سارو هر اړخیزو بډاینو ترڅنګ د ویاړلي تاریخونو په اوږدو کې د بېخي زیاتو وتلیو، علمي، سیاسي، ټولنیزو او نړیوالو شخصیتونو د ژوند تاتوبی او مسکن پاتې شوی چې یو نه یوازې د خپلې زمانې د پوهې، معرفت، عرفان، فرهنګ او د سیاست په برخو کې ځلېدونکي ځراغونه وو، بلکې د هغوی افکارو، اندېښنو او د ارمانونو رڼاګانې تر اوسنیو نسلونو رارسېدلي او تر ابده به یې پلوشې همداسې خپرې وي.

په دې لرغونې او مردخیزه، علم او فرهنګ زېږونکې او روزونکې خاوره کې د تورې، قلم د زیاتو علم بردارانو او مشعلدارانو نومونه اخیستلای شو. هغوی چې زموږ په لرغوني او سپېڅلې خاوره کې د

ویدایي او اوستایي مدنیتونو د دورې له ریشیانو څخه یې په راپورته کېدلو پیل کړی او ورپسې د بېلګې په توګه زردشت، ابن سینا، ابو ریحان البیروني، امام فخرالدین رازي، ابو نصر فاریابي، ابوبکر محمدبن ذکریا رازي او سید جمال الدین افغان او په سلګونو داسې نورې ځلانده څېرې په ډېره مینه او ویاړ باندې یادولی شو، چې دا ټول هغه تل پاتې نومیالۍ څېرې وې چې د رڼو ستورو غوندې یې په اسمان کې ځلېدونکې وړانګې تیتې او د تورتمونو محوه کوونکې دي چې دا د افغان ولسونو او نړیوالو ته لکه لمر روښانه دي.

ډېرو خوږو او قدرمنو لیکوالو او روښنفکرانو د یادولو وړ خبره ده چې ددې کتاب په هکله سریزه زه په داسې وخت کې لیکم چې نن د ۱۳۸۹ل کال د دلوې د میاشتې شپږمه نېټه ده. د افغانستان د اسلامي جمهوریت جمهور رئیس د خپلې واکمنۍ لس کالو د دوران د دویم ځل لپاره د کامیابو نوماندو د پارلمان افتتاحیه غونډه په خاصو مراسمو سره پرانیزي، د اوسني پارلمان ټولټاکنو چارې د روان کال ۱۳۸۹ل د سنبلې د میاشتې پر ۲۷مه نېټه ترسره شوې وې، خو په دغه ټاکنو کې ستونزې لا تراوسه حل نه دي، ناکام نوماندان وایي چې هغه اعلان شوي نوماندان د ولسونو استازي او منتخب وکیلان نه دي؟

په هر صورت د پارلمان د پرانیستنې د لومړۍ غونډې لپاره پوره پوځي تدابیر نیول شوي، د پارلمان تالار ته ګڼ شمېر دولتي،

حکومتي او ټول مسوولین د برهنیو مېلمنو په ګډون تالار ته راټول شوي، جمهور رئیس حامد کرزی همدا اوس د پارلمان د لومړۍ غونډې په ویاړ په خپلو خبرو پیل کړی چې د غونډې جریان د تلویزیون له لارې په ژوندۍ بڼه خپرېږي. کرزی صاحب په خپلو لاربنوونکو او دردوونکو خبرو کې خپل ترسره شوي اجراتو راپور وړاندې کړ او بریالي نوماندو ته یې د وطن د خدمت لپاره مبارکي ورکړه او ویې ویل چې څلور کاله وروسته باید زموږ وسله وال پوځ د خپل هېواد د امنیت چارې په خپل لاس کې واخلي او د پارلمان دا ۱۲مه دوره ده. د هېوادوالو څخه یې د یووالي او پیوستون غوښتنه وکړه وبه ګورو چې دولت حکومت او پارلمان څه ډول چلند کوي؟ ایا دا کړکیچن مسایل او ستونزې به هوارې شي که څنګه؟

زموږ لرغونی هېواد چې د پېړیو پېړیو او زمانو راهیسې ځلانده تاریخ لري د خپل لرغونتوب له امله په څو نومونو یاد شوی چې پخوانی نوم یې اریانا و او بیا خراسان په نوم او بیا د افغانستان په نوم یاد شوی. ښه به وي چې دلته د افغان او افغانستان په هکله څه ووایو.

د هېواد نامتو لیکوال علامه عبدالحی حبیبي په خپل کتاب افغان او افغانستان کې داسې لیکلي دي: د افغان کلیمه چې اوس د افغانستان د ټولو خلکو ملي نوم دی او د اسیا په زړه کې تر ټولو تاریخي، اقتصادي او اجتماعي شرایطو لاندې یو نه بېلېدونکی واحد جوړ کړی، داسې نوم دی چې لږ تر لږه یو زر او اوه سوه



(۱۷۰۰) کلـــــن تـــاریخي لرغونتوب او ملي اصالت لري.
پـه افغانـستان کـې دننـه او د باندې ځینې کسان فکر کوي چـې دا نومونـــه د احمدشـــاه ابدالي په لاس د افغاني دولت تـر بیـا جوړولـو وروسـته پـه اتلسمه پېړۍ کې رامنځته شوي او زمـوږ هغـه هېوادوال چې لـه تاریخي پېښو څخه خبر نه دي تل پوښتنې کوي چې ایا دا نومونه لرغونی تاریخ لري که نه؟

نو ځکه په دې لیکنه کې په ډېر لنډیز سره د خپل ملي تاریخ دا موضوع درنو لوستونکو ته وړاندې کوم.

د افغان نوم تر کومه ځایه چې معلومات څرګند دي په تاریخ کې اوږدې ریښې لري او پـه همدې سیمه کې د هلمند او سند د دوو لویو سیندونو ترمنځ په همدې نامه یوې ډلې وګړو ژوند کاوه چې تفصیل یې دادی.

شل کاله پخوا (اوس پنځه پنځوس کاله مترجم) د ایران د شیراز پـه نقش رستم کې د شیکاګو د ختیزې موسسې د لرغونپوهانو یوې ډلې د هغـه ځای پـه ډبرلیکونو کې د رزدشت پـه کعبه کې پـه دوو پهلوي اشکاني (پارتی) او یوناني ژبو یو ډبرلیک وموند چې هغـه د

ساساني کورنۍ دویم پاچا لومړنی شاه پور تر (۲۶۰م) کال او د او دېسې په جګړه کې د روم د امپراتور والیرین (Valerian) تر ماتې او اسارت وروسته دلته د زردشت د کعبې د دېوال په ډبرو لیکلی دی.

څرنګه چې لومړی شاپور پر (۲۷۳م) کال مړ شوی نو ددې ډبرلیک نېټه (۲۶۰- ۲۷۳م) کال پورې د دیارلسو کلونو ترمنځ ټاکلی شو.

(ډبرلیک نیمګړی فارسي ژباړه دې د لرغونپوهنې د رپوټونو د ۴ ټوک په ۱۸۱ مخ کې چې پر (۱۹۰۹ کال په شیراز(ایران) کې خپور شوی، وکتل شي) د دې ډبرلیک په دویم بند کې د پشکابور (Pashkabur) د ښار نوم د کوشان خساتر یعنې د کوشاني هېواد د وروستي ختیځ سرحد په توګه یاد شوی دی چې هغه یې د یوناني له کسپاپوروس، د چیني هیون تسنګ له پو- لو-شا- پو- لو او د اسلامي دورې د مورخینو له پراشپور او پر شاور، (پېښور) سره یو بللی دی د همدې ډبرلیک په شپږمه برخه د شاه پور د واکمنۍ په مهمو کسانو کې د ((وینده فرو ابګان رزمه ود)) نوم یاد شوی دی چې د سپرنګ لونګ په نامه یوه محقق لومړی ځل دا ډبرلیک ولوست او د امریکې په سامي مجله کې یې پر (۱۹۴۰م) کال یوه مقاله ولیکله او دویمه کلیمه ((ابګان)) یې په قاطع ډول د افغان له اوسني پاچا دریېم شاه پور له نامه سره چې ۳۰۹ تر ۳۷۹م کال پورې یې اویا کاله پاچاهي کړې د اپکان په بڼه یو صفت او لقب یاد شوی دی، چې دا کلیمه هم کولی شو د ((ابګان)) د بادې شوې

کليمې غونډې وګڼو چې د زړورتوب، رشد او نجابت د صفت او یا به هم د نژادي تړون په بنا راوړل شوې وي او هم دا موضوع ده چې ځینې مورخین لکه «سراولف کیرو» یې د ساساني دربار په مشرانو کې د درانیو او یوسفزیو د شته والي په فکر کړی دی. (وګورئ پټان- انګلیس متن ۸۰ مخ) او موږ نوموړی «وینده فرن افغان رزم بد» یعنې «د افغان د جګړې سالار وینده فرن» ویلای شو چې ښایي یو افغان سالار وي. د فردوسي په شهنامه کې هم دوه ځله د «اوګان» نوم راغلی چې د بریدون د وخت له سپه سالارانو څخه و.

سپهدار چون قارن کااوگان

سپه کش چو شیر وی و چون اوگان

(شهنامه) د مسکو چاپ لومړی ټوک، ۱۱۰ مخ.

همدا د فریدون په داستان کې بل ځای وایي:

همه گرد ایوان، دورویه سیاه

بزرین عمود و به زرین کلاه

سپهدار چون قارن کاوان

به پیش سیاه اندرون اوگان

لومړی ټوک، ۱۱۲ مخ.

په هر حال له دې یادونې څخه داسې څرګندېږي چې اوه- اوګان په لرغونو اریایي روایاتو او شهنامو کې دود و او که د بوستې د وینا له مخې یې اصل اوستایي وبولو نو مانا به یې مهربان او لاس

نیوونکی وي چې داسې نومونه له لرغونو اتلانو سره وړ وو او که بیا وروسته د یو قوم او یا ټولنې په مانا اوښتي وي لرې نه ده.
که د ابګان په اګان او اوګان کلیمو ته په زړو روایاتو د ساساني دورې په پاتې شونو کې د باور وړ اهمیت ورکړل شي، لکه سپرنګ لنګ او «اولف کیرو» همدا نظر لري نو دعوه کولای شو چې د افغان نوم یا صفت د ابګان او اپه ګان په بڼه له درېیمې عیسوي پېړۍ څخه اخیستل کېده او بادشاهانو، اداره چیانو او واکمنانو پېژانده او دا سند تراوسه ددې نامه د لرغونتوب په باب د یادولو وړ زوړ سند دی چې د زړو روایتونو اوګان هم ورته دی چې ۱۷۰۰ کاله کېږي نامدار پوهاند علامه عبدالحی حبیبي لیکي:
«همدا راز د افغانستان د کلیمې په باب هم ویلای شو چې دا داسې نوی نوم نه دی چې د احمدشاه ابدالي په وخت کې دې جوړ شوی وي، بلکې تر ده په پېړیو وړاندې یانې (۷۰۰) کاله مخکې هم موجود او د استعمال وړ و او موږ د سیفي هروي په تاریخ هرات کې چې ۷۲۱هـ، ۱۳۲۱م کال شاوخوا تالیف شوی وینو چې همدا د افغانستان ختیځې سیمې یې د سند تر څنډو پورې د افغانستان په نامه بللي او له دې څخه ښکاره ګند یږي کله چې هرات د «ال کرت» پایتخت و او هېواد د غزنویانو او غوریانو د سیاسي وحدت له دورو نه د چنګیزیانو د تېریو له امله د تجزیې او ورانۍ په لور روان و، د افغانستان نوم هغه وخت هم موجود و خو دومره پراختیا یې نه درلوده لکه د احمدشاه بابا په وخت کې یې چې ترلاسه کړه.»

باید په لنډ ډول ووایو چې افغانستان کې د دوو پېړیو د اوږدو مقاومتونو او مقابلو په نتیجه کې د میرویس او احمدشاه د مېړنیو قیامونو په وسیله یو ځل بیا ددې خاورې په سیاسي وحدت، بیا احیا او د لوی افغانستان په جوړولو بریالي شول او دا دی موږ اوس د افغان زرو اوه سوه کلن او د افغانستان اوه سوه کلن ویاړمن نومونه د خپل ملي وحدت او تاریخي سوابقو د ویاړ وړ پیل او مبدا په توګه پېژنو، د لا زیاتو معلوماتو لپاره د لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي د افغان او افغانستان کتاب وګورئ.
څه چې لوی استاد لیکلي زه یې کټ مټ تائیدوم، د هغه لیکنې او تحقیق زموږ د ټاټوبي لیکوالو لپاره د منلو وړ تحقیقات دي دا چې د یو زر اوه سوه کاله مخکې افغان کلیمه د ابګان، اوګان، اپګان او اوګان په نومونو استعمال شوې دا خبره او تحقیق د منلو وړ خبره ده، دا چې افغانان، پښتانه د اریایي نسل یو لوی ټبر تشکیلوي او ځلانده تاریخونه لري ګوار یا ګواریان چې د الینا کورنۍ اړوند یو ټبر او ښاخ دی او د اریایي نسل څخه دي چې الینایانو ته څېړونکو محققینو د هسکو غرونو اوسېدونکي هم ویلي دي، د الینایانو یوه کورنۍ هم ګواریان دي چې اوس هم اریایي ولسونه د ګوارو په نوم یاد شوي او یادېږي چې د لرغونو زمانو راهیسې د هېواد په غېږه کې ژوند کوي ددې ولسونو لرغونې اریایي ژبه د ګواري ژبې په نامه یاده شوې چې د لرغونو ژبو سره اوستایي او سانسکریت ژبو سره ډېر کلیمات شباهت لري. په ګواري ژبه پښتنو ته «اوګان»

وايي او دغه کليمه د لرغونو زمانو راهيسې تراوسه ژوندۍ ده او اوس هم ګوار (کوهستاني) ولسونه په خپله لرغونې ژبه ګواري باندې خبرې کوي او تراوسه پورې دغه ژبه چې زما په اند يوه لرغونې اريايي ژبه ده ژوندۍ ده او د پېړيو پېړيو راهيسې د پښتنو سره ګډ او نږدې ژوند کوي او په خپله ګواريان ډېر په مينه او د وياړ سره ځان اوګانان (افغانان) ګڼي زما په عقيده او فکر د اوګان کليمه يوه سوچه ګواري کليمه ده چې وروسته وروسته شايد د افغان په نوم اوښتې وي چې ګواريان د نورو اريايانو په شان د اريانا ويجه څخه کوچېدلي او ورو ورو د خپل لوی کورنۍ ((الينا)) سره د هندوکش د غرو لمنو ته رارسېدلي او خپله اصلي ژبه يې تراوسه پورې په هکسو غرونو کې ساتلې ده. زموږ وياړلی هېواد چې د ورونو مليتونو زانګو ده ددې لرغوني هېواد په غېږه کې افغانان په ډېرو ژبو خبرې کوي او ددې ژبو ريښې اريايي ژبې ګڼلی شو ددې هېواد د غېږې اوسېدونکي د نړۍ په ولسونو کې لکه لمر روښانه ځلېدلي دي، هغهه وخت چې موږ د تاريخي افغانستان په باب غږېږو هغه ټولې سيمې په نظر کې نيسو چې له افغانستان سره يې په تاريخي پېښو کې سياسي، مدني او فرهنګي حوادثو کې جريان او ګډون درلود او د ګډو تاريخي لاملونو تر اغېز لاندې يې اوضاع يو بل ته سره ورته وه اوس نو لازمه ده چې د ((اريايان)) په نوم لږه رڼا واچوو:

لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي لیکي: ((د ۲۵۰۰م) کال په شاوخوا کې د اریایي سپین پوټکو لوی ټولی په اریانا ویجه نومې هیواد او د امو په شمالي غاړو کې د کوچیتوب او مالدارۍ ژوند تېراوه چې شمېر یې زیات شو نو د امو سویلي سیمو ته د باختر ورشو ته راواوختل او د هندوکش په شمالي او سویلي لمنو کې مېشت شول، دغه خلکو د نفوسو او کهولونو د زیاتوالي له امله ختیزې خواته هجرت وکړ او د سند له سینده د هند شمالي ارتو سیمو ته تېر شول او په هغه ځمکه کې یې یو مدنیت جوړ کړ چې د (ویدا) په پخواني څلورو کتابونو کې یې انعکاس لیدل کېږي له همدې امله د ((ویدي مدنیت)) بولو چې د (۱۴۰۰م) په شاوخوا کې موجود و او په همدغو کتابونو کې د افغاني لویو قبیلو یوه برخه نومونه لکه پکت (پښتون) الینا د لغمان او نورستان شمالي خلک او نور راغلي دي او موږ له دغو کتابونو څخه د لرغوني افغانستان د خلکو ژوند، ژبه، مدني او فرهنګي وضع څرګندولی شو.

څلور ویده دادي:

۱- ریګ یود.

۲- سام وید.

۳- اتهروا وید.

۴- یجور وید.

چې تر ټولو پخوانی وید «ریگ وید» دی او په هغه کې د افغاني قبیلو، پاچاهانو، نومیالیو، خلکو، غرونو او جغرافیایي ځایونو ډېر نومونه راغلي دي.

ارینه ویجه:

ارینه ویجه چې په پښتو کې تراوسه «اویجه» د ټاټوبي او د استوګنې د سیمې په مانا کارول کېږي د تاریخ پوهانو په وینا د پامیر سیمې او یا د خوارزم شاوخوا او د خزر د «دریا چی» څنډو ته ویل کېده چې له هغې جغرافیایي سیمې سره نښتې چې موږ اوس څېړنه کوو.

څرنګه چې د ارین خلکو (ارین د نجیب) کښتګر او کرونکي په مانا دی، د ژوندانه ددې دورې نښې لا تراوسه نه دي ترلاسه شوي او تر تاریخ وړاندې زمانې برخه ده ځکه نو د دوی د ژبې د ژوندانه د ډول او د دین او هنر په اړه څرګندونې نه شته.»

ډاکتر ګوستاولوبون هغه اریایي لرغونې ژبه چې ارینه ویجه کې ویل کېدله د «اریک» په نامه یاده کړې ده.

دلته د ګواري ژبې د لرغونتوب په اړه چې سوچه اریایي ژبه ده په «اریاناو، اریائیان» کتاب په ۲۵۴ او ۲۵۵ مخونو کې داسې لیکل شوي دي:

«دریاد داشتهای سیاح چینی « هیوان تسانگ» که در حدود سنه هفتم میلادی بدخشان (تخارستان) و گندهارا را دیده از ایام هفته یادی نکرده است. در کتیبه سرخ کوتل نیز تاریخ ان سی ویکم سال

سلطنت کنیشکا هنگام نیسان ماه برج حمل حدود ۱۲۰م نوشته شده، بقول ابو ریحان البیرونی هندیان اسمای ایام هفته رامیشناختند و هر روز را بنام یکی از کواکب هفتگانه مسمی شناخته بودند که بعد از نام همان کوکب کلمه ((بار)) راکه در سانسکریت جز وی هفتم یک هفته و بجای ((شنبه)) فارسی بود می اوردند که عینن همین ترتیب در انگلیسی و فرانسوی نیز تا اکنون موجود است بدینقرار:

۱-یکشنبه (الاحد) ات بار (اتوار کنونی) Sunday یعنی روز افتاب.

۲- دوشنبه، (الاثنین) سموار کنونی، Monday یعنی روز مهتاب.

۳- سه شنبه، (الثلاثا) منگل بار(منگلوار کنونی) Tuesday یعنی روز مریخ.

۴- چارشنبه (الاربعا) بده بار، بده بارکنونی (Wednesday یعنی روز عطارد.

۵- پنجشنبه (الخمیس) برهسپت بار یا لکشمی وار، Thursday یعنی روز مشتری.

۶- ادینه (الجمعه) شکروبار یا شکروار، Friday یعنی روز زهره.

۷- شنبه (السبت) سنچربارکنونی، Saturday یعنی روز زحل.

پورته ذکر شوي د یوې اونۍ نومونه ګواري ژبې ته ډېر نږدې دي او تراوسه پورې ګوار خلک د اونۍ نومونه په لاندې ترتیب سره دي ستاسو پام ورته راګرځوم.

| | |
|---|---|
| شنبه | خیالي |
| یکشنبه | ایتوار |
| دوشنبه | منګول وار |
| سه شنبه | سموار |
| چارشنبه | بوده وار |

پنجشنبه بی بیستیوار
جمعه شکوار
ددې کلیماتو د استعمال پېړۍ پېړۍ کلونه تېر شوي خو اوس هم په ژوندۍ بڼه دا کلمات په ګواریانو کې استعمالېږي. ګواري ژبه یوه نرمه خوږه ژبه ده او په دې ژبه باندې ډېر تحقیقات نه دي شوي.
د یادونې وړ بولم چې د اریک (Aric) ژبې په لاندې څانګو وېشل شوي:
اندو اروپایي چې ۱۰۰۰ تر ۱۴۰۰ ق. م لکه سانسکریت، هندي، سیندهي، کجراتي، داردیک ژبې په درېو ګروپونو وېشل شوي چې دویم ګروپ یې مرکزي ګروپ دی لکه پشه یي، وټه پوري، ګواراباتي، تیراهي، کلاشه چې ۱۴۰۰ ق.م کې وې او ژوندۍ دي.
پشه یي افغانان کتاب چې د هېواد پېژندل شوي لیکوال محمدزمان کلماني چې د پشه یي ژبې ښه معاصر لیکوال او شاعر دی داسې راغلي دي:
زموږ ویاړلی هېواد لرغوني اریانا، د منځنیو پېړیو خراسان او اوسنی افغانستان په خپله غېږه کې ډېرو توکمونو، نژادونو او ژبو ته ځای ورکړی، روزلي او په دې وروستیو کې ټولو ته د افغان د نوم ویاړ ورپه برخه کړی دی. په دې مانا چې په افغانستان کې د پښتنو څخه پرته چې د افغان ټولنې لویه برخه تشکیلوي، تاجک، هزاره، ازبک، ترکمن، پشه یي، بلوڅ، نورستاني همدارنګه پامیریان، چارایماق، پراچي، اورمړ، ساکالي، کشمیري، ګجر، براهوي،

ګهواري (چترالي، قرغز، قزاق، تيموري، لوديان، بختياران، عرب، سادات، هندکيان، مغول، تاتار، جش او نور توکمونه او قومونه او سپړي او په پښتو، دري، ازبکي، ترکمني، پشه يي، بلوڅي، نورستاني، ګواري، کاتي، وايګلي، اشکوڼي، پراسوني، شغناني، روشاني، واخاني، منجاني، دروازي، زيباکي، پراچي، هندي، وټه پوري، کليشه يي، چترالي، ګجري، مغولي، ساکه يي، اورمړي، يابرکي او داسې نورو ژبو باندې خبرې کوي. دغه ټول افغاني توکمونه او قومونه د پېړيو پېړيو په اوږدو کې يو ګډ دريځ درلودلی او د افغان فرهنګ په لا بډاينه کې په خپلو کې د ورونو په څېر اوسېدلي دي، په غمونو او ښاديو کې ګډ دريځ لرلی دی او ستر رول يې لوبولی او ټول سره ورونه دي، د يوې شنې ونې ښاخونه دي او د ګران هېواد پتمن بچيان دي.

په دې کتاب کې تاسو د ګواريانو د ژوند او خصوصياتو سره به اشنا شئ. ګواريان د ژوند په بېلابېلو وختونو کې د زمانو په ازمونونو کې کامياب راوتلي دي، که څه هم ترخه ترخه وختونه او کړاوونه يې ګاللي خو خپل افغاني احساس او خپله ژبه خپل کلتور يې په غرو رغونو کې ساتلی دی. دا لومړی کتاب دی چې ددې ولسونو په اړه او نوم ليکل شوی، زما په عقيده او اند ګواريان نورستانيان، پشه يان د يوې ونې خاښونه دي د يوې کورنۍ ولسونه دي او دا ټول د الينا کورنۍ پورې اړه لري چې د زمان په تېرېدو سره څوک په يوه سيمه او څوک په بله سيمه کې اوسېدلي، ددې

خلکو د ژوند ټول کړه وړه، رسمونه، رواجونه، خویونه، دودونه، عادتونه، رنګونه، ګرځېدل او پاځېدل د ژوند واړه چارې اریایي دي څه ډېر توپیر نه لري چې اوس هم په کلیو او بانډو او غرو رغو کې دا خلک خپل ژوند په اریایي توګه مخکې وړي. زه د پشه یي زیاتو لیکوالو شاعرانو سره لکه مرحوم استاد نورمحمد غمجن، محمد زمان کلماني، محمد حسن حسام او محترم شېرعلم املـه وال او د نورستان لیکوالو شاعرانو سره لکه مرحوم شورماچ، استاد سمیع الله تازه او استاد سلیمان سون ارا سره ډېر له نږدې پېژنم چې نوموړي د هېواد ډېر تکړه او معاصر لیکوال دي او فرهنګي شخصیتونه دي زه ورته وړاندیز کوم چې د الینایانو په نامه یوه فرهنګي ټولنه جوړه شي او ټول په افغاني لوړه روحیه د اریایي فرهنګ لپاره ګټور او د ویاړ څخه ډک کارونه وکړي.

ګوار ولسونه نورستاني او پشه یي ولسونه خپل ډېر نږدې ورونه بولي او د اریک ژبې ویونکي یې بولي، ددې خلکو ژبې یو بل سره ډېرې نږدې ریښې لري او د اریایتوب له نظره ښکاره او ځرګند ولسونه دي او په دې خاوره کې د ژوند کولو روښانه هویت او لرغونې سابقه لري او ددې خاورې اصلي وارثان او اوسېدونکي دي.

دغه د یوې کورنۍ ولسونه لکه نورستانیان، پشه یان، ګواریان په یوه لویه سیمه کې څنګ په څنګ په ګاونډ کې د ورورۍ ژوند کړی دی او کوي یې چې د ګواریانو د مرکزي سیمې شمال ته چترال او

شمال لويديځ ته يې نورستان او پښه يي ولسونه ورسره هم سرحد کې اوسېږي. د هېواد نامتو ليکوال غلام محمد غبار جغرافيايي تاريخي افغانستان کې ليکلي چې پخوا زمانو کې چترال د بلور او ګتور په نامه يادېده چې د کابل د سيند شمال خواته د بلورستان واکمني وه په همدې ترتيب د چترال او د کونړ سيند په تېرو لرغونو زمانو کې د بي لام په نوم يادېده د کتور په نوم هم يادېده د چترار او د کاشکار، قشقار په نوم هم محقيقينو او ددې سيمې خلکو ياد کړې دی. دلته د يادونې وړ ده چې ګواريان نورستانيان د چترال سره هم سرحد ولسونه دي دا چې چترال په لرغونو زمانو کې د کتور په نامه يادېده په نورستان کې يو قوم د کتور په نوم شته او دا راز چې چترال په لرغونو زمانو کې د بيي لام په نوم يادېده دا يوه سوچه ګواري کليمه ده چې په ګواري ژبه کې بيي د ښه او غوره مانا ورکوي او لام په ګواري ژبه کې چم (کلي) ته وايي چې د ژوند د ښې سيمې مانا ورکوي او دلته په سيمه کې د ګواريانو د لرغونو زمانو ښکاره ثبوت دی.

بابر مشهور شخصيت د خپل وخت لوی سرلښکر په شپاړسمې پېړۍ کې ۱۵۰۴ نه يوازې په خپل حرکت کې چترال او کافرستان ذکر کړی، بلکې اوسنی چغه سرای او اسمار يې د کافرستان جز بللی دی ددې خبرې څخه معلومېږي چې نورستان د کونړ د سين ختيځ خواته په باجوړ قابض و. د شپاړسمې پېړۍ يو بل نامتو څېړونکي محمد حيدر ليکلي چې د کابل سيند د شمال نه نيولې تر

کشمیر او یارکند پورې دغه ساحه د بلورستان پورې تړلې وه چې مارکوپولو هم په خپلو څېړنو کې بلور او بلورستان ذکر کړی دی.
دلته یوه خبره د یادولو وړه ده چې نورستاني او پشه یي او ګواري ژبې یو له بل سره ډېر نږدې اوالی لري او د اریک ژبې سره ډېرې نږدې ژبې دي په ګواري ژبه باندې چغه سرای دوه کلیمو څخه جوړ شوی چې چغه او سرای ګواریان چغه چغې ته وایي او سرای د اوسېدو ځای او محل ته وایي او په ګواري ژبه اسمار ته پیروش وایي چې دا هم د دوو ګواري کلیمو څخه جوړه شوې پیر-او روش چې پیر د مخکې یا لومړي مانا او روش د غوصې او د قهر مانا ورکوي چې د غوسې د ځای یا د غوسې د محل مانا ده.
همدا راز په کونړ او پیچ دره کې ډېر ځایونه او محلات شته چې نومونه یې په ګواري ژبه دي.
ډېرو قدرمنو د کتاب لوستونکو!
دا ښکاره او ثبوت خبره ده او په قران پاک کې واضح ده چې ټول انسانان چې بېلابېل قومونه، نژادونه، طایفې، او قبیلې او څانګې لري څوک په یو رنګ څوک په بل رنګ څوک په قد لوړ، څوک په قد ټیټ دا ټول د یو بابا ادم(ع) او بي بي هوا څخه پیدا شوي او د تقوا، پرهیزګارۍ، علم، پوهې، د ښو اخلاقو، خویونو او عملونو څخه پرته چې په یقیني سره د انسان د عزت، فضیلت، ویاړ او درنښت باعث کېږي او د انسان قدر او قیمت لوړوي. د نژاد او قوم، قبیلې او طایفې د اصل او نسب مسله د انسان د پېژندګلوۍ څخه پرته نور

څه بهتري او برتري نه لري چې سپین په تور او عرب په عجم په اسلامي روایاتو کې لوړوالی نه لري او د اسلام د مقدس دین له نظره ټول انسانان له یو پلار او یوې مور څخه پیدا شوي دي.
په دې هکله د لوی خدای(ج) په اسماني کتاب قران شریف کې راغلي: ژباړه ((ای خلکو موږ تاسې له یوه نارینه او یوې ښځې څخه پیدا کړئ او بیا مو قبیلې قبیلې وګرځولئ تر څو تاسو یو تر بله سره وپېژنئ په حقیقت کې د لوی الله(ج) په نزد له تاسو څخه تر ټولو زیات عزتمند هغه څوک دی چې په تاسو کې تر ټولو زیات پرهېزګار وي.)) (حجرات ۱۳ ایت)
قدرمنو د کتاب لوستونکو د علم او ادب مینه والو!
دا خو ښکاره او څرګنده خبره ده چې څوک ددې هېواد په غېږه کې د ژوند وختونه تېروي واړه سره ورونه دي دغه خوږ هېواد د ټولو افغانانو لپاره د مور حیثیت لري، د مور سره مینه کول د مور عزت ساتل د مور د خوښې او رضایت کول د یو حقیقي مسلمان او افغان سپېڅلې دنده ده. درې لسیزې کېږي چې د هېواد په غېږه کې د تپل شویو جګړو اورونه بل ښکاري چې په دې اورونو او لوګیو کې ددې خاورې د هسکو غرونو او شنو چمنونو په رنګ په رنګ ښایسته ګلونه وسوزېدل او لا سوزېږي، دا خاوره او دا د ننګ ټاټوبی د اسیا په زړه کې د افغانانو کور دی د لرغونو زمانو د کارنامو او حماسو کور دی، ددې خاورې د پت، عزت، ساتل په افغان ولسونو فرض دي. راځئ چې په اسلامي او افغاني مینه د خپل خوږ وطن په مینه د

زماني ازمون ته يو موټي يو لښكر شو او هيڅا ته اجازه ور نه كړو چې دا د غازيانو او دا د شهيدانو د حماسو ټاټوبي په اورونو او د باروتو په تورو زهرجنو لوګيو وسوزي او ددې هېواد بچيان بيا د خپلو سردرو او ځالو څخه بلې خوواته والوزي.

نن ددې خاورې ولسونه د ژوند ترخې ترخې شپې په شوګيرو سبا كوي، موږ ګورو چې تراوسه پورې چې د كرزي صيب د دولت او د حكومت لس كاله تېر شو خو د افسوس خبره ده چې دولت او حكومت لاتراوسه پورې په خپلو پښو نه دی ولاړ او نه دی ودرېدلی حال دا چې د څلوېښتو بهرنيو هېوادونو پوځي سرتېري زموږ په خاوره كې په بېلابېلو ولايتونو كې پوځي اډې لري او شتون لري. د احمدشاه بابا او د ميرويس نيكه په خاوره كې په افغان غيرتي ولسونو كې ملي پيوستون نه شته د تنظيمي ډلو ټپلو د ځانځاني سيالۍ پای ته نه دي رسېدلي لا اوس هم په لسو كلونو كې زموږ ملي وسله وال پوځونه، ملي اردو، ملي پوليس د كمښت او كيفيت په اساس او د مډرنو پوځي وسلو او تجهيزاتو د نه لرلو ډېرو ستونزو سره ليدل كېږي وسلې لا څه چې په پوځي جامو نه يو ملبس شوي په څو ډوله پوځي جامو (دريشي) پټ يو څه چې مو مخكې د وسله وال په پوځ په اختيار كې لرل د پرديو د غلامانو او نوكرانو په لاسونو چور شول.

په اوس وخت كې د ډېرو جدي ستونزو سره مخامخ يو اداري فساد خپل اوج ته رسېدلی، دولتي او حكومتي چارواكي د هېواد په

ولایتونو او سردرو کې د امن او امنیت د ټینګېدو واکمني نه لري کار اهل کار ته نه دي سپارل شوی، تنظیمي او دولتي حکومتي چارواکو یا په زور مقامونه نیولي او یا ورته د تنظیمي او خپلوۍ او شخصي اړیکو په واسطه مقامونه ډالۍ شوي، رښتیا خبره داده چې په اوسنیو حالاتو کې موجود چارواکي د افغان ولسونو د کلونو کلونو د کړاوونو او دردونو ټپونو ته ټکور نه شي کولی او ورځ په ورځ د وطن په غېږه کې ستونزې زیاتېږي. ولسونه د ژوند ترخو ترخو وختونو سره مخامخ ښکاري او اوسني چارواکي امن نه شي تامینولی او د خطرناکو پېښو مخنیوی هم نه شي کولی.

نو اوس په دغه زمانه کې د روښنفکرانو او په خاص ډول د فرهنګپالو ملي اوتاریخي دنده ده چې د ملي امن او ملي پیوستون او ملي یووالي لپاره د ملي شتمنیو او ملي غوښتنو لپاره د خپلې ژبې د خپل قلم زور په ولسونو کې د بیدارۍ او یووالي غږ په پوهه او په ډېره هوښیارۍ سره په خپلو ولسونو کې پورته کړي او په سپېڅلې روحیه د وطن د لویو ارمانونو د پوره کولو او عملي کولو لپاره هلې ځلې وکړي، تر څو د اوسنیو موجوده ستونزو څخه په سرلوړۍ د بري ډګر ته ووځو او د نېکمرغۍ او سوکالۍ ژوندون خاوندان شو، تر څو چې ټول افغان ولسونه یو موټی نه شي یو لښکر نه شي او د یو مقدس ارمان لپاره په خپلو کې یو وجود یو اواز نه شو، د بري لاره موندل ممکن نه ده اوس دافغان ولسونو لپاره د یو موټي کېدو وختونه شېبې او لحظې دي.

د وطن د دښمنانو تور لاسونه، تور هدفونه، د ځوانانو، روښنفکرانو او د فرهنګپالو افغاني دنده ده چې ولسونو ته رسوا او بربنډ کړي، تر څو چې ټول افغانان په یوه لاره او یووالي سره د ملي ارمان لپاره سره یو او راټول نه شي د اوسنیو بدمرغیو څخه د خلاصون بله لاره نه لرو، ټول افغانان تاریخي او افغاني مسوولیتونه لري چې د خپل هېواد د ساتنې او د ویاړونو د ساتلو لپاره د سربښندنو په بدل کې په مېړانه او زړورتوب راپورته شي او بریالیتوبونه وګټي.

نور نو افغانانو د شرم او ننګ خبره ده چې د ځانځانۍ په خیالونو کې ویده پاتې شي ټول افغان ولسونه که په هره ژبه غږېږي او د وطن په غېږه کې هر خوا اوسېږي یو افغان دی او یو د بل څخه کوم لوړوالی او توپیر نه لري او باید چې ویې نه لري، نن د هېواد د پت او د ملي غرور د ساتلو لپاره سخت امتحان دی.

محمد زمان کلمانی په خپل کتاب «پشه يي افغانان» کې لیکي:

په خواشینۍ سره باید ووایو چې د ځینو نژادونو، قومونو ځینې کسان شته چې د بې علمۍ او ناپوهۍ په وجه ځانونه درانه او لوړ ګڼي او نور ورته سپک او ټیټ ښکاري، یو ورته اصل او بل ورته بدل ښکاري دا سم فکر نه دی ټول انسانان سره یوشان دي.

هر څوک حق لري او کولی شي چې په خپلو تېرو ویاړونو، ښوکارنامو او لاسته راوړنو څخه چې دا په حقیقت کې ټولو هېوادوالو پورې اړه لري وویاړي او درناوی یې وکړي، خو هېڅوک

حق نه لري چې ځان ورته د نورو څخه لوړ ښکاره شي او نورو ته په ټيټو سترو وګوري د خپلو نږدې کسانو او قام پالل هم کوم ناوړه کار نه دی ځکه چې په قران شريف کې راغلي دي:

ژباړه: «د خپلولۍ د اړيکو او پيوندونو له غوڅولو څخه ډډه وکړئ»

ډېرو قدرمنو درنو ليکوالو، فرهنګيانو او روښنفکرانو!

ګواريان چې زيات خلک ورته کوهستاني، شاړي هم وايي دا په تاريخ کې يو مشهور قام دی. د کونړ ولايت په شمال لويديځ غرنيو سيمو کې د ناړۍ ولسوالۍ او د غازي اباد ولسوالۍ په مرکز، چترال، دير او سوات پښتونخوا کې ژوند کوي دا لومړی کتاب دی چې ددې کرېدلو درمندو او زيار ګاللو اريايي ولسونو د ژوند په بېلابېلو اړخونو کې ليکل شوی دی. دا چې ددې ولسونو په اړه کوم کتاب لا څه چې يوه پاڼه چاپي يا قلمي نه شته خو پته دې نه وي چې بهرنيو محقيقينو چې کوم تحقيقات کړي دي زيات کتابونه يې په بهرنيو ژبو ليکلي دي زموږ د هېواد ليکوالو له خوا هم يو اندازه تحقيقات شوي دي خو پوره څېړنه په کې نه ده شوې چې ژور معلومات ولري.

د افغانستان ژبې او توکمونه چې مرحوم دوست محمد دوست ليکلی او دارنګه استاد مجاوراحمد زيار او نورو ليکوالو کار کړی دی خو پوره څېړنه نه ده شوې، دغه کتاب چې (ګوار-کوهستاني افغانان) نومېږي ډېر زيار ګالل شوی چې ددې ولسونو په باب پوره

پوره معلومات وړاندې شي زه پوهېږم چې د قدرمنو بهرنیو او داخلي څېړونکو لپاره به د ډېرو سوالونو ته ځواب وي او د ډېرو څېړنو لپاره به دغه کتاب د یو لارښود کتاب حیثیت ولري او لاپسې به د ډېرو څېړنو لپاره ادبپوهان او فرهنګیان څېړنې ترسره کړي او ما نیمګړې او ناتکمیل کارونه به پوره شي پوره باور لرم چې زما په دغه اثر کې به ډېرې ادبي او فرهنګي نیمګړتیاوې وي ځکه د یو قام او د یوې ژبې په اړه تحقیق ساده خبره نه ده دا ډېر ګران او ژور کار ګڼل کېږي دا کارونه ډېره قلمي کاري تجربو ته اړتیا لري، خو څه چې ما په دغه کتاب کې لیکلي هیله کوم چې د درنو ادبپوهانو او فرهنګیانو د تائید وړ وګرځي او ماته په دې نیمګړې ترسره شوي کارونو کې لارښوونې وکړي زه یې په ډېره مینه او احسان لارښوونو ته اړ یم. دا چې د ګواري ولسونو او ژبې په هکله کوم کتابونه او چاپي اثار نه شته نو ما زیات د ولسونو خبرو ته ارزښت ورکړی او د هغوی د کیسو او خبرو څخه مې ډېره ګټه اخیستې. زما بل کتاب چې (ګواري ولسونو رسمونه رواجونه) نومېږي او په فرهنګي او کلتوري اړخونو پوره پوره معلومات وړاندې شوي، انشا الله په کتابي شکل د فرهنګ مینه والو ته وړاندې شي چې د ګوارو د اریاییتوب ښکاره ثبوت بیانوي.

په پای کې د ټولو افغانانو لپاره د یووالي او پیوستون ملي جذبه غواړم تر څو په خپلو مټو او لاسونو وطن اباد او سمسور کړي. د الله(ج) په اسماني کتاب قران شریف کې راغلي دي: «بېشکه چې

الله(ج) تر هغې پورې د کوم قام حالت نه بدلوي، تر څو چې هغوی خپل حالت (اوصاف) په خپله بدل نه کړي.»

په درنه مینه
محمد نواز حقیقت سانین
کابل، ۱۵-۱۱-۱۳۸۹ل کال

# یوه ژبه یوه وینه

بریکوټ[1] که ارنوي[2] که دوکلام[3] دی
که ناړی[4] ده که ساو[5] یا نشه ګام[6] دی
کوهستان په نوم یادېږي دغه واړه
یوه یې ژبه یوه وینه او یو قام دی
په دې هسکو غرو کې اوسي د لرغونو زمانو نه
په تاریخ کې یې روښانه مقام دی
اریایان د هسکو غرونو دي ثبوت ده
(الینا[7]) په کورنۍ کې یو لوی قام دی
د (ګوار)[8] په نوم یادېږي څوک (ستره[9]) نرساتي[10] وایي
ددې ټولو یوه تره یو کلتور او یو قیام دی
د وطن په محبت کې سربښندنه یې ده دنده
چې سانین یې د تاریخ څخه اخیستی ډېر الهام دی

---

(1) بریکوټ د یو کلي نوم دی چې په سرحد کې موقعیت لري
(2) ارنوي د یو کلي نوم دی چې د دوکلام شمال ته موقعیت لري.
(3) دوکلام د بریکوټ ختیځ ته پروت کلی دی.
(4) ناړی د ګواریانو مرکزي کلی دی.
(5) ساو د ناړي جنوب ته یو کلی دی.
(6) نشه ګام د غازي اباد ولسوالۍ مرکز دی.
(7) (الینا) یو لوی اریایي خاندان دی.
(8) ګوار، ګواریان
(9) ستره: کوهستانو ته د نورستان خلک ستره وایي.
(10) نرساتي: کوهستانو ته د چترال خلک نرساتي وایي.

# دګواریانو قومي جوړښت

زموږ خوږ هېواد د پېړیو ، پېړیو ځلانده تاریخونه لري او د اسیا په زړه کې پروت دی. دا هېواد د مختلفو قومونو د ننګونو او ویاړونو ګډ ټاټوبی دی. دا لرغونی هېواد چې پنځه زره کلن تاریخ لري او په نړۍ کې د جرګو د کور په نامه هم یاد شوی او د تاریخ په اوږدو کې په بېلابېلو نومونو یاد شوی که یو وخت د اریانا په نوم یادېده او بیا د خراسان او وروستی د افغانستان په نوم خو دې هېواد د پېړیو په هره پېړۍ کې نومیالي، فرهنګیالي او توریالي زامن او لونه پخپله درنه غېږه کې روزلي او پاللي دي، چې د ژوند په هره برخه کې علمي، فرهنګي، حماسي او ملي کارنامې لرلي، چې نه یوازې د خپل هېواد ، بلکې د ټول بشریت او انسانیت د ویاړونو سبب شوي دي.(۱)

زموږ بحث د ګواریانو (کوهستانیانو) د قومي جوړښت په هکله دی چې په وار په لاندې ډول سره ورباندې رڼا اچوو.

## ګواریان څوک دي؟:

ګواریان هغه باتور او ښکلي او سپېځلي اریائیان دي چې د پېړیو پېړیو او زرګونو کلونو راپدېخوا ددې خاورې په سینه کې اوسېږي.

ددې خبرې دلایل ډېر دي، ددې ولسونو ورځنیو کارونو، رواجونو او کړو وړو څخه څرګندېږي چې دا خلک اصیل اریائیان دي.

دویم دا چې د دوی په ژبه کې اشتراک له نورو اریایي ژبو سره بالکل ډېر دی.

درېیم په ځینو تاریخي کتابونو کې د دوی ذکر له پخوا څخه راغلی دی، چې زیاتو پوهانو او څېړونکو د اریایئتوب حکم کړی او دا یې د اریایي نسل بچیان بللي دي او د زړګونو کلونو راهیسې ددې خاورې په غېږه کې ژوند کوي.

## الف- د دوی ورځني کارونه او رواجونه:

۱- په ګواریانو کې لکه د پخوانیو اریائیانو غوندې ښځې او نر ګډ کارونه کوي د ژوند ټول درانه او سپک کارونه دوی په ګډه اجرا کوي. مثلاً غرونو ځنې لرګي راوړل، سکاره کول، د میوه جاتو راوړل، کرونده کول، غوبلونه کول، د حیواناتو تربیه او نور کارونه چې ټول د ژوند د سهولت کارونه نر او ښځه په ګډه کوي.

۲- په ګواریانو کې د مخ پټول ببخي رواج نه لري نر او ښځې، پېغلې او ځوانان په ازادانه ډول یو بل سره خبرې کوي او د مېلمنو ډېر احترام او درناوی او پالنه کوي او خپلو کورونو کې د نغري په غاړه ورته ډوډۍ ورکوي چې دا کار د اریائیانو میراث دی او په پښتنو کې هم دا کار رواج لري.

۳- دا خلک د موسیقۍ او سندرو سره ډېره علاقه لري. دا د موسیقۍ الات په خپله جوړوي، لکه دریا (چمبه) ډول، منګی، شپېلۍ، سیتار او زیات خلک ددې شیانو په استعمال پوهېږي.

۴- ددې خلکو سندرې کټ مټ اریایي بڼه لري خپل خاص ګواري سبک باندې او د پښتو ژبې د شعرونو په څېر شعرونه لري، دوی کله بېل، بېل او کله په ګډه سندرې وایي د دوی سندرې او موسیقي په زړه پورې ده. د دوی سندرې طبعي بڼه لري او د نرانو غونډې ښځې هم په ګډه سندرې وايي او کله بېل بېل سندرې وايي.

۵- د ښځو په سندرو کې یوازې دریا او منګی شپېلۍ وي او ښځې په وار وار په سندرو ویلو وخت کې نڅاګانې کوي د ښځو نڅاګانې کله یوه یوه وي کله جوړه جوړه نڅا کوي او کله هم ډېرې ښځې یوځای نڅاګانې کوي.

۶- په دې خلکو کې اریایي مېلې او جشنونه شته.

مثلاً: دوی د نوي کال په ورځو او شپو کې په کلو کې راټولېږي نوې یا پاکې جامې اغوندي، نارینه د یو کلي نه بل کلي ته ځي د موسیقۍ پروګرام جوړوي. سندرې وايي، ټوکې ټکالې کوي او یو بل ته د نوي کال مبارکي ورکوي.

۷- خو ښځې د یو کلي نه بل کلي ته نه ځي په یو کور کې ټولېږي سندرې وايي او په نکریزو لاسونه سره کوي یو بل ته د نوي کال مبارکي ورکوي، چې دا ډول مېلې او جشنونه د نرانو او ښځو له خوا د کال په سر کې څو شپې او ورځې دوام لري.

۸- دا خلک د قد او څېرو له مخې کټ مټ اریایي دي، چې توري غټې سترګې، تور ویښتان، جګې پوزې، میانه قدونه او روڼ پوستکی لري چې اکثره یې په مالدارۍ او بزګرۍ بوخت دي او لاسي صنعت کې هم پوره پوهېږي.

## ب- د ګواري ژبې لغوي اشتراک له نورو اریایي ژبو سره:

زه غواړم چې دغه اشتراک په څو حسابي اعدادو کې او څو نورو لغتونو کې د ګواري ژبې ارتباط د نورو اریایي ژبو سره په دغه لاندې جدول کې وښایم چې ستاسې توجه ورته ګرځوم:

| دري | پښتو | سانسکریت | پشه یي | نورستاني | ګواري | ګڼه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یک | یو | ایک | اي | ایو | یک | ۱ |
| دو | دوه | دوا | دویاده | دیو | دو | ۲ |
| سه | درې | تری | تری | تره | ڵی | ۳ |
| چهار | څلور | چتوار | چار | شتوا | څور | ۴ |
| پنج | پینځه | پنج | پنج | پوچ | پنڅ | ۵ |
| شش | شپږ | تشت | شی | شو | شو | ۶ |
| هفت | اوه | شپت | ست | سُت | ست | ۷ |
| هشت | اته | اشت | اشټ | دشت | هشت | ۸ |
| نو | نهه | نو | نو | نو | نو | ۹ |
| ده | لس | دش | دی | دوښ | دش | ۱۰ |
| دري | پښتو | سانسکریت | پشه یي | نورستاني | ګواري | ګڼه |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ١ | ماسوی | ماس | مای | ماس | میاشت | مهتاب |
| ٢ | سوری | سو | سُر | سوریه | لمر | افتاب |
| ٣ | تاره | شتا | ستارا | ستارا | ستوری | ستاره |
| ۴ | کنډه | دا | دار | گیری | غر | کوه |
| ۵ | حیم | زیم | ایم | هم | واوره | برف |
| ۶ | انگار | انگان | انگار | اکني | اور | اتش |
| ٧ | شونا | کوي | شورنګ | سووان | سپی | سگ |
| ٨ | اشتر | شتبور | شتور | اشتر | اوښ | شتر |
| ٩ | کیا | که | کیاندې | کم | ولې | چرا |
| ١٠ | کول | کوئ | کوون | کدا | کله | چه وقت |

یادونه:

نورستانیان- پشه یان، ګواریان د ټولو پوهانو د څېړنو او تحقیقاتو په اساس اریاییان دي او د (الینا) د کورنۍ پېژندل شوي ولسونه دي او د الینایانو د قبیلې څخه دي.[٢]

---

[٢] وګورئ نورستانیان در گستره تاریخ، ١٩٣ مخ

# دګواريانو جغرافيايي موقعيت

## د کلو، درو او منطقو نمونه:

دا خو ښکاره خبره ده چې يوه انساني ټولنه ژوند لري، دا چې ژوند او محيط سره ملګري دي، نو څرګنده خبره ده او ثابته شوه چې هره انساني ټولنه صرف نظر له دې څخه چې اکثريت دی که اقليت، په يو محيط کې ژوند کوي نو ګواريان هم د تاريخ په استناد د اريائيانو له نسله دي او کوم وخت چې له اريانا ويجه څخه حرکتونه او کوچېدل د اريانا غربي او شرقي لور ته شروع شول، نو د هندوکش د غرو لمنې ددې نسل له ولسونو څخه ډکې شوې. ګواريان هم د هغې ډلو مهاجرتونو څخه شمېرل کېږي، کوم چې له داريانا ويجه څخه د شرقي رودونو او غرونو او مسيرونو په لور تللي او روان شوي دي څرنګه چې پخواني اريائيان هم قبيلې قبيلې تلل او هغه قبيلې به چې د مهاجرت وړ سامانونه او د حمل نقل وسايل او ډېر انساني قوت درلوده، نو ورځ په ورځ به يې تازه ورشوګانې د خپلو مالونو د څر لپاره نيول او کومو هغو قبيلو به چې د مهاجرت وړ سامان او انساني قوتونه درلودل، نو د لوی مهاجرت لپاره هغو زړه نه ښه کاوه، نو که بيا ډېر مجبور شول نو د هندوکش د غرونو په لمنو او درو کې او داسې نورو نږدې شاوخوا غرونو او درو ته د سيندونو او رودونو غاړو ته به د خپل ژوند د تېرولو لپاره روان شول.

لکه څنګه چې افغانستان د تاریخ په مختلفو دورو کې تیټ او پاس لیدلي دي او د زمانې له خوا یې کله کله څپېړه په مخ خوړلې ده او د پردو تر لاس لاندې راغلی دی او خلکو ددې لپاره چې د پردو سره مقابله نه شوه کولی خپلې ودانۍ او ښارونه ځمکې او ابادې له ننګه او غیرته نورو غالبو اقوامو ته پرېښې دي او دوی په خپله غرونو او شوبلو ته ځي او حتی داسې سخت ځایونو ته به تلل چې هالته پردي متهاجمین په اسانۍ سره د دوی مخې ته نه شو تللی او کله به چې ورته بیا ورځ او حالات برابر شول، نو بیا به یې د انساني مادې هوسناکې طبعې سره سم خپل پخواني پرېښودل شوي ځایونه او محلات بېرته قبضه کول یا به یې علاوه د خپل قدیمي محیط څخه د پردو پر محیط لکه نورو غونډې د مرهم حمله کوله، چې یا خپل وار واخلي او یا خپله خوا سړه کړي، یا خپله مادي هوسناکه طبعه مړه کړي.

په افغانستان کې چې کومو خلکو په دې مملکت کې د تاریخ په مختلفو دورو کې قدرت په لاس اخیستی ګواریانو لپاره یې د ژوند د ښه والي او سمون لپاره هیڅ کار نه دی کړی او که د دوی له خوا د ژوند د سمون لپاره څه وړاندیزونه شوي وي هغه هم منل شوي نه دي او د تهدید او ترخو ځوابونو سره مخامخ شوي دي او چا ورته حق او حقوق نه دي ورکړي او د تریخ ژوند سره مخامخ شوي دي.

ګواریان اوس د کونړونو ولایت په دوو ولسوالیو غازي اباد او ناړۍ کې غرنیو سیمو کې ژوند کوي

# د اریایانو کوچېدل او اوسني ځایونه

په دې خبره کې نور نو شک نه شته چې نورستاني، ګوار او پشه یي ولسونه چې د الینا د لویې کورنۍ غړي دي او د الینایانو په نامه یادېږي او په دغه نومونو یاد شوي چې اصلي اریایان ګڼل کېږي.

۱- چې د اریانا ویجه ځنې د بهارانه، شیواها، پکت ها، بهالانا قبایلو سره د باختر نه په طرف د هندوکش کوچېدلي.

بهاراته او شیواها د سیند د دریاب په لور تلیی او پکت ها، بهالانا قبایل د هندوکش ځنې تېر شوي د سپین غر په شاوخوا کې ځای په ځای شوي.

ګواریان او نورستانیان جنوبي هندوکش ته د دغو قبایلو سره یوځای اوسنیو ځایونو ته کوچېدلي او راغلي دا چې د نورستانیانو او ګواریانو دغه ځایونه د مالدارۍ لپاره مساعد وګڼل شو خو ښ شو د نورو اریایي قبایلو سره نورو سیمو ته یې د کوچېدلو ځنې صرف نظر شو او دلته پاتې شو چې د هندوکش جنوبي او اوسني کونړ سردرې دي او د مالدارۍ لپاره ښه څرځایونه او زراعتي ځمکې لري چې نورستانیان او ګواریان د هماغه پخوانیو الینایانو اولاده ده او خپل اصل اریایي کلتور لرونکي ولسونه دي، چې دغه ولسونو ته څېړونکو، تاریخ پوهانو د تاریخ په رڼا کې د هسکو

غرونو اوسپډونکي اصلي اريايان ورته ويلی شوي دي، خو د راتلو ثابت تاريخ يې نه دی څرګند، د زمانو پېړۍ پېړۍ مخکې کشمکشونو او ازمونونو اوسني ځايونو ته راوستي او دغه ځايونه يې د خپل ژوند لپاره غوره ګڼلي دي.

ګواريان قوي او چالاک ولسونه دي، ځانته ژبه، ځانته رواجونه او دودونه لري. زياتو خلکو دغه کوهستاني ولسونه د نرسات په نوم هم ياد کړي او اوس هم ورته کوهستاني وايي.(۵)

په ګواريانو کې بېلابېل قومونه شته لکه:

۱- صاحبداري – Sahib dari

۲- ملامست داري- Mulamast dari

۳- غريب داري- Garib dari

۴- فقير داري- Fakir dari

۵- جانبداري - Janabdari

۶- سرفرداري – Sarfar dari

۷- ملاداري – Mula dari

۸- مانتو مزداري- Mantu maz dari

۹- سونيا داري- Sunia dari

۱۰- ساوخېل- Sawkhil

۱۱- څوکيتي - Chokiti

۱۲- هنداو - Hendaw

۱۳- بران داري- Bran dari

۱۴- ګبري - Gabari

۱۵- لغمان داري – Laghman dari

او داسې نور قومونه شته چې ځانونه د ګواريانو پورې تړي او په خپل قام او مليت وياړ کوي، هغه قومونه چې د دير، چترال او سوات کوهستاني قومونو کې شته متاسفانه د هغو نومونه رانه پاتې شو. هالته هم د ګواريانو اړوند ډېر غټ قومونه شته چې په وروستيو وختونو کې به د هغو په اړه معلومات وړاندې شي.

د ګواريانو مرکزي ځای د کونړونو ولايت شمال شرق ته د ناړۍ ولسوالۍ ده، چې ددې غرنۍ ولسوالۍ شمال او جنوب خواته په کلو او باندو کې ژوند تېروي، چې دا ولسونه په خپلو کې پوره يووالي او اتفاق لري اوس چې د ځانځانۍ لاره غوره نه کړي او د يووالي او پيوستون د خوږې مېوې څنې ګټه واخلي. د ملي ارمانونو فرهنګي او ادبي ټولنه چې ددې ولسونو په سيمه کې د ۱۳۷۲ل کال د حمل راهيسې ددې ولسونو د يووالي او پرمختګ او بيدارۍ لپاره ډېر ګټور کارونه ترسره کړي او دغه کار په ادبي او فرهنګي توګه روان دی. همدغه فرهنګي او ادبي ټولنه د ولسونو د مشرانو او ځوانانو سره پوره پوره اړيکي لري او د افغانستان د اسلامي جمهوريت د اساسي قانون په رڼا کې د ګواريانو او د سيمي ولسونو ته د وطن د ملي او تاريخي ورځو په وياړ د هېوادوالو پوره پيوستون لپاره او د هېواد په غېږه کې د ټولو ولسونو د نېکمرغۍ او پرمختګ، سولې او امن د ټينګښت په لاره

کې ډېر لوړ ګامونه پورته کړي چې د ولسونو توجه او پام يې را اړولی دی او د ولسونو د مشرانو او ځوانانو په مشوره د ادبي او فرهنګي ټولنې چارې ورځ په ورځ ښې کېږي او د بل هر وخت څخه نن سبا ددې سيمې ګواريان او نور ورونه ولسونه د هېواد په غېږه کې د سولې او امن د ساتلو او د ولسونو او قومونو د يو موټي کېدلو لپاره په ګډه کارونه کوي.(٢)

مخکې مو وويل چې د ګواريانو مرکزي يا مرکزيت په ناړې ولسوالۍ کې موقعيت لري چې خپله د ناړې کليمه سوچه يوه ګواري کليمه ده چې له ناړ څخه اخيستل شوې ناړ Nar په ګواري ژبه کې د بنياد يا تهداب يا بېخ زيله (ريشه) معنا ورکوي.

ناړې د (راسا) سين شرق خواته دنګ او اوچت غر چې په لاندې برخه کې يې ډل شوی غټ ناو پروت دی په ناړې کې يانې په همدغه مرکزي ساحه کې درې بانفوسه کلي يو له بل سره نښتي دي:

١- لر کلی د ناړې

٢- منځ کلی د ناړې

٣- بر کلی د ناړې

په پورته نومونو سره يادېږي ددې درېو کليو ته مخامخ د ناړې ولسوالۍ موقعيت لري چې غرب خواته د سين په غاړه د هسکو غرونو په لمنه کې پروت دی.

د ناړې کلي څلورو خواوو ته شمال ته سونکله او بر کڅ او شرق ته يې ماچي منه او شنګر او شاليکوټ او غرب خواته يې انچي ګل

او زرو کښځ او جنوب خواته یې شامصر، دانګه پور او لره جبه موقعیت لري چې البته دا حدود یوازې د مرکزي کلو دي هغه ټول کلي چې ګواریان په کې د ژوند شپې تېروي جایدادونه لري خپلې ځمکې او ورشو ګانې او غرونه رغونه او کښونه لري په لاندې ډول دي:

۱- د ناړې مرکزي منځ کلی
۲- د ناړې لر کلی
۳- د ناړې بر کلی
۴- خیاط اباد (کانخه دره) (تور کمر)
۵- لعل مېنه، د حاجي لعل زمان خان کورنۍ اباد کورونه
۶- فقیر اباد، د ولسوالۍ مقام شمال ه
۷- قادر مېنه، د سیند په غاړه کورونه د پُل جنوب خواته
۸- بریکوټ بر کلی
۹- بریکوټ لر کلی
۱۰- شام دم
۱۱- دوکلام مرکزي
۱۲- دوکلام بازار کلی
۱۳- دوکلام لیندۍ غاړه (الګوده)
۱۴- نشه ګام (پلازګوار)
۱۵- ارنوی
۱۶- ارنوی کښځ

۱۷- ساو
۱۸- ساو کڅ
۱۹- دره باټ (قاضي مېنه)
۲۰- رام رام
۲۱- سوار دم
۲۲- قاري نواب مېنه (د ناړې پله خواته)
۲۳- عبدالخالق مېنه (زرو کڅ سین په غاړه)
۲۴- صمد مېنه، د مدیر عبدالغفار کورونه
۲۵- رحمن مېنه، د ولسوالۍ شاوخواته محل
۲۶- وزیر مېنه (برکڅ کې د نامو شهد جنوب خواته)
۲۷- افضل مېنه ( د نامو شهد شمال خواته)
۲۸- محمدجان مېنه (د عرب الدین کلا)

په پورته ذکر شویو کلو کې ټول ګواریان او سېږي چې د هر کلي ځانته ساحه معلومه ده او خپل حدودات لري.

## د ناړې ولسوالۍ څلور خواوې په لاندې ډول دي:

شمال ته ارنوی او نورستان، جنوب ته څونک او ساو، شرق خواته دیر براول باندې او غرب ته ختیځ نورستان موقعیت لري.

ناړې د هسکو او رنګینه سردرو په منځ کې چې شاوخوا ته د خونانو او غوراځکو او مومانو او د نښترو ځنګلونه له ورایه ښکاري او د ناړې ښکلا ته یې لاپسې ښکلا ورکړې ده، د سردرو ځنې د یخو اوبو چیني د ناړې په لور بهېږي او د راسا سین ته په

نخښېدو راروانې وي د چينو اوبو ددې ولسوالۍ د ولسونو ژوند ته ډېره اسانتيا برابره کړې ده. پرته له دې چې د چينو اوبو ځنې ولسونه د څښلو لپاره ګټه اخلي، خپلې زراعتي ځمکې او باغچې وربانديې هم اوبه کوي. په مرکزي ناحيه کې ډېرې زراعتي او للمي ځمکې شته چې ښه حاصلات ورکوي: غنم، جوار، شولې، لوبيا، مۍ او پمبه ډېر رواج لري او زراعتي ځمکې دوه فصله حاصلات ورکوي او ډېره مېوه لرونکې منطقه ده او د باغدارۍ لپاره ښه ځمکه ګڼل کېږي.

لاندې مېوه جات په کې ډېر پيدا کېږي:

١- غوزان - چارمغز
٢- انګور څو ډوله
٣- منې څو ډوله
۴- ناک
۵- انار
۶- شفتالو څو ډوله
٧- خوبانۍ څو ډوله
٨- الوچې څو ډوله
٩- بادام
١٠- بوهي
١١- لوکاټ
١٢- مالټه
١٣- نارنج

۱۴- لیمو
۱۵- چکوتره
۱۶- انځران
۱۷- املوک
۱۸- مرخنۍ
۱۹- توت څو ډوله
او نور ډول ډول تازه مېوې شته، په غرنیو سیمو کې او په غرونو او سردرو کې لاندې مېوه جات پیدا کېږي:
۱- ګورګورې
۲- مومانې
۳- د خونه دانې (زیتون)
۴- تیتاقې (شنۍ)
۵- غرنۍ الوچې (نانګه)
د نارۍ ولسوالۍ پاکستان ته هم د تګ راتګ څو لارې لري چې په لاندې ډول سره دي:
۱- د ساو خوړ لاره
۲- بادر مشال لاره
۳- باتاس لاره
۴- شینګر
۵- بزه ګل لاره
۶- دوکلام لاره

د دوکلام لاره یوه تاریخي او لرغوني لاره ده چې د دوکلام او د ارنوی په خوړ باندې د پُل پواسطه وسایط تېرېږي راتېرېږي. دغې لاره اوس د ترانسپورتي لارې حیثیت ځانته غوره کړی دی. په هغه وخت کې چې پاکستان لا پیدا شوی نه و، په دغه لاره باندې به دافغانستان ځنې خلک هندوستان ته کاروانونه تېرېدل، یوه تجارتي لاره وه خو ۱۹۲۰ راهیسې دغه لاره د ترانسپورتي لارې حیثیت غوره کړی دی خو پته دې نه وي دا چې زموږ په خاوره باندې لا د نورو تپل شوی جنګ او جګړې دوام لري. ددې لارې عواید تراوسه د ځینو کسانو شخصي جیبونو ته لوېږي، نو ددې لارې عواید او ګمرکي او تجارتي کارونو د سمبال لپاره توجه نه ده شوې ددې لارې ځنې چترال، دیر او پېښور ته په اسانۍ سره د جنسونو وړل راوړل او انتقال کېدی شي او د ترافیکو په مخ خلاصه ده که چېرته توجه وشي کېدی شي د تورخم غونډې دغه لاره هم یو ترانزیتي لاره شي او د کونړ ولسونو ته او د منطقې خلکو ته به ډېر تجارتي سهولت پیدا شي او ډېر عواید به زموږ دولت ته په برخه شي.

## په اجتماعي لحاظ د ګواریانو څېړنه:

د اجتماعي مشکلاتو له مخې د ګوار خلکو ژوند کاملاً د بدوی خلکو د ژوند سره ورته دی په دې خلکو کې د اجتماعي تشکیلاتو اصلاحات او ریفورم منځ ته نه دی راغلی، د دوی ورځني مسایل اوس هم په عنعنوي ډول د قومي جرګو له لارې حل و فصل کېږي،

په دوی کې د ډېر پخوانې وختونو (د جهالت دورې) روايات کېسې او نکلونه پاتې دي، خو اوس ګوارياڼ ډېر زيات د علم او پوهې سره مينه او علاقه لري او هر څوک کوښښ کوي چې خپل اولادونه په ښوونځيو کې شامل کړي او يا يې په ديني مدرسو کې شامل. ګوارياڼ علم او پوهه د ژوند لپاره رڼا ګڼي او هر څوک د خپلو اولادونو په ښوونه او روزنه کې ډېره توجه او پوره پاملرنه کوي. سره له ډېرو مشکلاتو د هر کور مشران کوښښ کوي چې اولادونه يې بېسواده پاتې نه شي د پوره معلوماتو له مخې د پنځوسو کالو راهيسې ددې ولسونو زياته توجه د ښوونې او روزنې مسلې ته پام او مخه شوې او نن سبا ټول د ګوارياڼو اولادونه په ښوونځيو کې شامل دي او د زده کړې او علم کار ته په درنه سترګه ګوري. له مشکلاتو سره سره چې (۳۰) کاله کېږي په وطن کې تپل شوي د پرديو تپل شوي جنګونه دوام لري، خو ګوارياڼو سره له ډېرو ستونزو د خپلو بچيانو د ښوونې او روزنې کارونو ته توجه او پام اړولی.

د ګوارياڼو په ژبه د ماشومانو لپاره په مورنۍ ژبه تراوسه په ښوونځيو کې څه نه شته خو د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنې له خوا او د ولسونو د مشرانو له خوا هڅې رواني دي چې ماشومانو او کوچنيانو ته په ګواري ژبه په ښوونځيو کې درسي چارې برابرې شي.

دا هم پټه دې نه وي چې د نورو مليتونو او قومونو غوندې ګوارياڼ يو مستقل قام او مليت دی خو د تعليم او تحصيل په لاره

کې د دولت له خوا ددې سرحدي ولسونو بچيانو ته چې په سرحد کې اوسېږي او ډېر يو مظلوم ملت دی کوم امتياز چا تراوسه پورې نه دی ورکړی او دولتي او حکومتي مشرانو ددې ولسونو په حق کې تر اوسه پورې سترګې پټې کړي.

ددې محروم او مظلوم ملت نه تر اوسه پورې چې ډېر علمي کدرونه او تحصيل کړي کسان هم لري، خو په قومي انډول چا ورته خپل حقوق نه دي ورکړي، نه کوم ولسوال، والي، قوماندان، سناتور او وکيل نه لري، نو د هغې ټولنې اجتماعي قوانين به څنګه اصلاح شي، کله چې اجتماعي قوانين اصلاح نه شي نو ټولنه به څنګه اصلاح شي او څنګه به پرمخ لاړه شي، نو ښکاره خبره ده کله چې ټولنه پرمختګ ونه کړي نو د هغې ژبه به څنګه وړاندې لاړه شي، نو په دې اساس ويلای شو چې ګواري ژبه هم ډېره وروسته پاتې ده.

## په سياسي لحاظ د ګواريانو څېړنه:

کله چې په يوه مملکت کې يوه ټولنه په داسې حال کې چې په نسبي ډول په اقليت کې هم واقع وي، د هغو اقتصاد هم کمزوری او ضعيف وي د علميت له مخې وروسته پاتې وي، اجتماعي تشکيلات هم موجود نه وي، نو کله کېدی شي چې د داسې ټولنې خلک دې د خارجي خو لا څه چې اقلاً د داخلي مسايلو په سياست دې هم پوه وي.

ځکه چې هغوی بې شعوره، بې احساسه، بې علمه، ناپوهه او له مدنیت لرې لوی شوي وي نو وایو چې د ګواري ټولنې خلک له سیاست څخه بې برخې دي.

ځکه سیاست اصلاً د تګلارې او پوهې په نامه دی. کله چې د یوې ټولنې خلک له سیاسته بې برخې وي نو د ژبې موقف به یې په سیاسي لحاظ هم ضعیف او وروسته پاتې وي، اقتصاد او سیاست او اجتماعي قوانین چې د انساني مدنیت مهم عناصر دي د ژبې په عراده په خلکو کې ګرځول کېږي او کله چې د کومو خلکو دا مهم عنصرونه په ژوند کې موجود نه وي، نو ژبه به یې خلکو ته څه شی په اوږو وګرځوي او څنګه به وروسته پاتې نه وي.

## په ادبي او هنري لحاظ د ګواریانو څېړنه:

نن عیسوی ۲۱مه پېړۍ ده او په ګران هېواد کې په سلو کې تقریباً ۵ باسواده شته چې هغه هم مات ګوډ په نظر راځي. کله چې په یوه ټولنه کې پوره سواد نه وي او بې سوادي حکمفرما وي او سواد موجود نه وي، هالته لیک لوست نه وي هلته پرمختګ صورت نه شي موندلی که په خپله ژبه وي که په نورو ژبو وي، هلته هنري او ادبي مسایل بالکل درک نه لري او که وي هم د اجتماع په درد نه خوري او خپله ټولنه د مشکلاتو څخې نه شي خلاصولی.

نو ویلای شو چې ګواریان د هنر او ادب په لحاظ وروسته پاتې شوي، په دې ژبه کتابونه نه شته، مجلې نه شته، جراید نه شته،

ددې ژبې پرمختګ لپاره ددې ژبې ویونکو لپاره هیڅ ډول فرهنګي، سیاسي، علمي او ادبي کارونه نه دي ترسره شوي، خو افسوس چې د نړۍ په نورو ټولنو کې خبره برعکس ده. هلته د ژبې د پرمختګ لپاره قوانین شته، په ژبه باندې کتابونه، مجلې، ورځپاڼې، راډیوګانې او ټلویزیونونه شته، په زړه پورې پروګرامونه جوړوي او نشر ته یې سپاري او د ژبې ویونکي خپل پروګرام په خپلو سترګو ګوري، اوري او غوږ ورته نیسي. خپلو ډول خپرونو ته په دقت سره ګوري کنټرول یې کوي، د ګواري ژبې او ادب په اړه ډېرې ستونزې شته چې ګواریان ورسره همدا اوس لاس او ګریوان دي.

# په افغانستان کې د ګواري ژبې موقف

دا خو ټولو ته څرګنده ده چې په افغانستان کې د ډېرو ژبو ویونکي ژوند کوي او د هېواد په غېږه کې په بېلابېلو سیمو، ولایتونو او منطقو کې د ژوند شپې او ورځې تېروي. دلته موږ یوازې د ګواري ژبې په هکله خبرې کوو.

ددې مطلب د حل لپاره باید چې د ګواري خلکو د ژوند د اقتصادي، اجتماعي، سیاسي او فرهنګي اړخونه وڅېړل شي نو په خپله به دا مسله حل شي چې ددې خلکو ژبه ولې دومره وروسته پاتې ده؟ ځکه چې ژبه د انسانانو له اقتصادي، اجتماعي، سیاسي او فرهنګي او بلاخره ټولو اړخونو سره مستقیماً اړیکي لري، نو لازمه ده چې د ګواریانو د اقتصادي ستونزو په اړه رڼا واچوو:

## په اقتصادي لحاظ د ګواریانو څېړنه:

په عمومي توګه د ګواریانو اقتصاد ډېر کمزوری دی او په افغانستان کې بې له څو محدودو کسانو څخه ټول ملیتونه په اقتصادي مشکلاتو کې راګیر دي، خو دلته موږ یوازې د ګواریانو د اقتصاد په هکله خبرې کوو، چې مخکې ویل شوي چې ګواریان د کونړ ولایت په شمال شرق کې په غرو رغونو کې ژوند کوي په رښتیا سره چې دلته ډېرې زراعتي او للمي ځمکې شته خو ډېرې داسې کورنۍ او کسان شته چې هېڅ ځمکه او جایداد نه لري او ډېرو مشکلاتو سره مخامخ دي. دا خلک کوم صنعتي دستګاه او

فابریکې نه لري او علاوه له دې څخه کوم خاص تجارتي سیستم نه شته او د هېواد د لویو ښارونو او عمومي سړکونو ځنې چې په لرې غرنۍ ځایونو کې پراته دي د ټولو ګواریانو اقتصادي حالات برابر نه دي او کمزوري دي، ځینې لا ډېر داسې کسان شته چې یوه ټوټه ځمکه د کور لپاره نه لري.

ګواریان تر اوسه پورې د ژوند د اسانتیا لپاره عصري سامان الات نه لري، د حمل او نقل وسایط نه لري د ډېرو ستونزو سره مخامخ لیدل کېږي او په سرحدي کلو او غرونو کې ژوند کوي.

پټه دې پاتې نه وي چې زیاتو ولسونه د ختو او ډبرو په ابتدایي کورونو کې ژوند تېروي. بې لباسه، بې ډوډۍ، بې کوره، بې صحته د هر ډول تکلیفونو او کړاوونو سره د ژمي په یخنۍ او دوبي کې له ګرمۍ سره ترخې شپې او ورځې تېروي.

کله چې په ټولنه کې د کومو خلکو تولیدي منابع نه وي نو هغوی به تولید له کومه کړي. کله چې د چا تولید نه وي، نو د هغوی به اقتصاد څنګه ښه شي او څنګه به پرمختګ وکړي، کله چې د چا اقتصاد ښه نه وي نو د هغوی به ژوند حتمي خراب وي، کله چې د چا ژوند خراب وي، نو هغوی کله کولی شي چې د خپل مملکت له نورو خلکو سره ارتباط له متمدنو ټولنو سره تګ او راتګ او د علم او فرهنګ د هغه مملکت څخه استفاده وکړي.

اقتصاد په ژوند کې مهم رول لوبوي، اقتصاد دی چې انسان ته د تفکر، علم او ادب او د پوهې زمینه برابروي. نن د اقتصاد پواسطه

خلک د نورو خلکو سره ناسته ولاړه کوي، اړیکې پیدا کوي، د نورو خلکو د علم او هنر څخه ځان خبروي او خپل علم او هنر ته د پرمختګ زمینه برابروي. د اقتصاد په برکت د علم او پوهې درجه لوړېږي او په ټولنه کې یو مثبت تحول منځته راځي. اوس که موږ فکر وکړو دا پورته امکانات د ګوارو لپاره بالکل نه شته او دا ولسونه ډېرې ستونزې مخې ته لري.

څومره چې په ټولنه کې اقتصاد او علم، پوهه او هنر وړاندې لاړ شي په هغه اندازه ژبه هم مخ په وړاندې علمي ګامونه اخلي او غیر له دې ژبه په خپل ځای بې حرکته پاتې کېږي، نو ویلای شو چې د ګوارو د ژبې د وروسته پاتېوالي یو مهم علت هم د اقتصاد کمزورتیا ده. لنډه دا چې دا ولسونه د اقتصاد له پلوه ډېر کمزوري دي، خو باید وویل شي چې په دې وروستیو کلونو کې زیات ګوار خلک د اقتصاد د پیاوړتیا او ښه کېدو لپاره پوره توجه او پام کوي، ځینې تجارتي کارونه پیل شوي چې هغه هم په ابتدایي مرحله کې دي په ګواریانو کې داسې څوک نه شته چې هغه ښه اقتصاد ولري او د بڼای سړي په نوم یې درمعرفي کړم.

## ګواري ژبه:

دا ژبه د لرغونو زمانو راهیسې په اریایي ژبو کې شامله ده. دې ژبې ته (کوهستاني) او (نرساتي) ژبه هم ویل کېږي.

د «زبان های مردم جهان» په نامه اثر په استناد چې د ژبو د وېش په برخه کې د دايرة المعارف حيثيت لري دا خبره جوتېږي چې نن سبا په نړۍ کې په څه دپاسه درې زره ژبو باندې خبرې اترې او ويناوې کېږي، چې له دې ډلې نه نږدې سل ژبې داسې دي چې ليک او لوست پرې کېږي او نورې پاتې ژبې د وينا ژبې دي، چې ليک او لوست نه لري او د نړۍ د پنځه ويشت ډوله خط نه په يوه هم نه ليکل کېږي. ددې ټکي روښانه کول ډېر ضروري دي چې په دغو څه دپاسه درې زرو ژبو کې هېڅ يوه هم له بلې نه ښه او بهتره نه ده، بلکې اصلي خبره د ژبو فرهنګي نفوذ دی او دا د ويونکو په شمېر او په سياسي او اقتصادي برخو کې د هغو په اغېزه او تاثير پورې اړه لري، نو ځکه ويلای شو چې هر انسان په خپلې مورنۍ ژبې پورې پيوند لري لکه د کارکولو سامان الات چې په کارګر پورې اړه لري دغه وړ ژبه په انسان پورې پيوند لري. بله خبره دا ده چې په نړۍ کې نه سوچه ژبه شته او نه داسې ژبه وجود لري چې له بشري ټولنې ځنې لرې وي په هوا کې پيدا، رالويه او تکامل وکړي، ټولې ژبې په ژوره توګه يوه له بلې سره نښتې دي او يوه په بله اغېزه او تاثير لري له دې جملې نه ښايي چې يو شمېر هغه ژبې چې خپزونې نه لري د ورکېدو او نابودۍ په سمندر ورلاهو شي او هغه ژبې چې ويل کېږي او خپرونې لري ورته کار کېږي هغوی د ژوند کولو تاريخي موقع او چانس لري.

پوهان په دې خبره پوهېږي چې هر قوم يو نوم او ژبه لري چې په هغو د بل قوم نه بېلېږي. ژبه د يو قوم د پېژندنې ستره او تاريخي نښه ده، نو په دې اساس ګوارياڼ يو مستقل قوم دی او ځانته ژبه لري. اوس به راشو چې ژبه څه ته وايي.

**ژبه:** ژبه هغه غږونه دي چې د دغو په وسيله هر ولس د خپلو مقاصدو تعبير کوي، يا هغه اصطلاحي ويناوې دي چې د يو قوم په ژبه جاري وي چې په عربي کې ورته لسان يا لغت وايي او له يوناني توغوسن څخه به جوړ شوې وي چې معنا يې کلمه ده. په اروپايي اصطلاح يې لنګويج Language بولي. ددې غږونو انواع د ملتو په اندازه مختلف او هم ډېر دي، نو ځکه په نړۍ کې ډېرې او ډول ډول ژبې پيدا شوي او هر ولس ته خپل غږونه اسان او نور پردي غږونه ورته ګران دي.

په غونچه مجله کې د ګواري ژبې په هکله داسې ليکل شوي:

## ګواراباتي (کوهستاني) ژبه:

ددې ولسوالۍ ولسونه په زړه پورې سردرو کې ژوند کوي چې هرې خواته يې د ليدو وړ رنګينه منظرې په سترګو کېږي. کونړ د ګواراباتي ژبې يوه سوچه کلمه ده چې کو د خونه په نامه او نړ په ګواري ژبه د ناړ څخه اخيستل شوی چې د خونانو وطن يا د خونانو د خاورې معنا ورکوي او په نورستاني ژبه هم دغه معنا ورکوي.

ګوارباتي هم یوه سوچه کلیمه ده چې ګوار د سوچه، پاکیزه او خالص، اصل معنا ورکوي او (باتي) په ګواري کې ژبې ته ویل کېږي چې ګوارباتي د ګواري ژبې معنا ورکوي.

ناړی هم یوه سوچه ګواري کلیمه ده چې د نغرلام څخه جوړه شوې ده چې پخوانیو ولسونو د (نایي لام) او نغرلام، نایي لام کلیمه ورو-ورو د ناړی لام په نامه اوښتې. نغر په ګواري ژبه کې د بنیاد او تهداب او ریښې په معنا هم راځي او لام چې یوه سوچه ګواري کلیمه ده د کلي او چم معنا ورکوي، نو ناړی د ګواریانو د اوسېدو یوه مرکزي لرغونې خاوره ده او د ګواریانو مرکزي ټاټوبی ګڼل کېږي.

په ناړی کې یوه ډېره په زړه پورې د لرغونو زمانو یوه په ډبرو او خاورو جوړه شوې ودانۍ ده، چې د شاهي ماڼۍ په نامه یادېده او دا د ګواریانو مرکزي کلا وه چې ډېر لوړ او پلن دېوالونه یې لرل. د محمدظاهرشاه د واکمنۍ پورې ددې ودانۍ زیاتې برخې ښکارېدې، خو وروسته په دې درېو لسیزو کې د ځانځانۍ او تنظیمي جګړو په دوران کې دغه تاریخي لرغونې ودانۍ بالکل خرابه شوه او ددغه محل څخه ولسونو د ځان د ابادۍ د جوړولو لپاره ډبرې انتقال کړې او په دغه محل کې اوس ډېر کورونه جوړ شوي.

په بریکوټ کې هم دغه ته ورته یوه ودانۍ وه خو هغه هم اوس خرابه شوې او ښه نښانه یې نه معلومېږي.

په ګواري ژبه باندې او سمهال په افغانستان کې څلو ښت زرو څخه زيات کسان خبرې کوي او نن سبا دغه ژبه ځينې ګاونډيو کلو او ښارونو ته ننوتی او ورځ په ورځ يې ويونکي ډېرېږي.

ګواري ژبه يوه خوږه نرمه او ژوندۍ ژبه ده. په اسانۍ سره غږونه او خبرې اترې اوريدل کېږي. يوځل لازمه ده چې پوهه شو چې ژبه څه ته وايي.

## ژبه څه ته وايي او څنګه پيدا شوې:

ژبه هغه غږونه دي چې ددغه پواسطه هر ولس د خپلو مقاصدو تعبير کوي يا ژبه هغه وسيله ده چې د هغه اصطلاحي ويناوې دي چې د يوه قوم پر ژبه جاري وي، چې په عربي کې ورته لسان او يا لغت ويل کېږي.

ژبه د اختياري وييزو غږونو د لړۍ هغه جوړ شوی سيستم دی چې د انسانانو د يوه ټولګي له خوا يو بل سره د پوهولو لپاره ورڅخه کار اخيستل کېږي او د انساني چاپېريال، شيان، پېښې او کړه وړه په پوره او کره ډول افاده کوي.

ډاکتر هربرت ديپنزل (Dr. Harbart-Depnazal) د ژبې تعريف داسې کوي: ژبه د صوتي علايمو او سمبولونو داسې يو اختياري، شفاهي سيستم دی چې د هغه په واسطه د يوې ټولنې غړي په خپل ثقافت کې دننه يو بل سره مفاهمه کوي.

بلاک (Bilak) او ټراګو (Tragu) په دې اړه وايي:

ژبه له غږیزو سمبولونو څخه داسې جوړ شوی سیستم دی چې یو ټولنیز ګروپ د هغې پواسطه له یو بل سره مرسته کوي.

د پورتنیو او نورو ګڼو تعریفونو څخه داسې څرګندېږي چې ژبه د یو لړ اختیاري ویزو، غږونو یوه مجموعه ده چې یوازې انسانان یې د یو بل د پوهولو راپوهولو لپاره ورڅخه ګټه او کار اخلي او د همدې ژبې په واسطه له یو بل سره پوره مرسته او همکاري کوي.

## د ژبې ارزښت:

د ژبپوهانو په نظر ژبه د بشري تمدن او کلتور د زنځیر هغه لومړنۍ کړۍ ده، چې نورې کړۍ یې په ځان پسې ورتړلې دي او عمر یې د اوسنیو انترپولوژیکي او نورو بشري علومو د موندلو له مخې سلو زرو کلونو څنې زیات اټکل کېږي، خو د ازمېښت په اړه یې همدومره کافي ده چې زموږ پروردګار عالم په قران عظیم الشان کې فرمایي: «خلق الانسان علمه البیان» ژباړه: لوی خدای(ج) لومړی انسان پیدا کړی او بیا یې خبرې ورزده کړي یانې لومړی نعمت چې انسان ته ورکړ شوی د انسان پیدایښت دی او دویم لوی نعمت ژبه او بیان دی چې الله پاک انسان ته ورکړې او له همدې ژبې له برکته په نورو موجوداتو کې انسان لوړ او غالب دی.

په رښتیا سره که په ژوره فکر او سوچ وشي ژبه یو لوی نعمت دی او په انساني ژوند کې ډېر زیات ارزښت لري. ژبې په نړۍ کې څو څو ډوله دي په دې اړه ژبپوهانو ویلي چې ژبې د سموالي او تهذیب په درجه په دوه ډوله دي.

۱- ښکته ژبې
۲- لوړې ژبې

مونږ اوس يوازې او يوازې د ګواري ژبې په هکله خبرې کوو، ګواري ژبه د اريايي ژبو د جملې څخه يوه لرغونې او سوچه ژبه ده چې تراوسه ژوندۍ ده خو د افسوس خبره ده چې پرمختګ او وده يې نه ده کړې څکه په تېرو بحثونو ورباندې خبرې وشوې.

په ګواري ژبه باندې زمونږ د هېواد ډېرو ژبپوهانو استاد عبدالحی حبيبي، استاد محمدصديق روهي، اروانښاد استاد دولت شينواري، پوهاند استاد مجاوراحمدزيار او نور ژبپوهانو تحقيقات کړي دي او ګواري ژبه يې د اردي ګروپ پورې تړلې او يوه سوچه اريايي ژبه يې ګڼلې ده چې د لرغونو زمانو راهيسې په دې ژبه باندې ولسونه خبرې اترې کوي. ډېرو بهرنيو ژبپوهانو لکه مارګنسترن نامتو ناروژي ژبپوه په اريايي ژبو باندې او نورو بهرنيو ژبپوهانو ډېر څېړنې کړي او ګواري ژبه يې اريايي لرغونې ژبه بللې ده. لوی استاد اروانښاد عبدالحی حبيبي په دې نظر دی چې اريايي اقوامو په (اريناويجه) کې يوه ځانته ژبه درلوده او هغه (اريک) وه چې له هغې څخه وروسته هندي، ايراني او بخدي ژبې راوتلې دي.

استاد علامه حبيبي دا هم ويلي چې دا ژبه اوس ورکه ده خو سانسکريت ژبه د هغې څخه راوتلې ده.

لوی استاد علامه حبيبي دا خبره هم کړې ده چې:

اصلي اريايي ژبه چې د ټولو اريايي ژبو مور يا انا بلل کېږي. لږ تر لږه تر ميلاد درې زره کاله دمخه ويل کېده او د دوی مشترکه ژبه وه، خو اوس يې هيڅ نښه او بولګه نه ده پاتې. له دې جرګته چې د اريايانو تاريخ او ليکنې د قبل الميلاد تر ۱۴۰۰ يو زر او څلور سوه کاله دمخه نه رسېږي نو ويلای شو چې سانکسريت اوستا او زره پارسو درېواړه له دغې اصلي اريايي ژبې څخه زېږېدلي دي.

په همدې ترتيب اروانباد دوست شينواري په اريايي ژبو کې په زره پورې څېړنې سرته رسولي چې ګواري ژبه هم په کې شامله ده. د دغو ژبو فونيمونه او مورفيموه يې يو له بل سره پرتله کړي دي د اريايي ژبو د بدني جوړښت په برخه کې ډېر ګټور او روښانه څېړنه سرته رسولې ده.

## په ګواري ژبه کې نوي چاپي اثار:

۱ - سون او روپ ( سره زر او سپين زر): د لومړي ځل لپاره دا په ګواري ژبه لومړۍ چاپي شعري ټولګه ده چې د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې په نوښت په ۱۳۸۶ل کال کې چاپ شوه په دې شعري ټولګه کې چې (۱۲۲) مخونه لري په زړه پورې ادبي او هنري شاعري شوې ده، چې په لوستلو او اورېدلو سره د ګواريانو ادبي مينه پرې ماتېږي. دغه اثر يو په زړه پورې شعري ټولګه او د افغانستان ټولو فرهنګيانو لپاره د وياړه ډک کارګنو او د هېواد د مطبوعاتو په زرغون اسمان کې يو ځلېدونکي ستوري حيثيت لري.

په دې کتاب باندې د هېواد نامتو ليکوالو او څېړونکو هر يو

محمد نبي صلاحي، د قلم ټولنې رئيس محمد حسن حسام، د وطندار جريدې رئيس محمدزمان کلماني، څېړنوال سلمان سون ارا او ميرزمان ډيا ليکنې کړې دي.

۲- ګواري ژبه څنګه وليکو: دا کتاب يا دا اثر هم يو په زړه پورې تاريخي او ادبي کار دی چې د سون او روپ وروسته چاپ ته رسېدلی دی او د ګواري ژبې د ليکلو او لوستلو لپاره يې ښه ښه ميتودونه او لارښوونې په کې شوې. دا کتاب ۱۸ عنوانه لري چې حاجي محمد عثمان اټکل، استاد امان امان نورستانی، استاد سيد حميدالله پاچا او شېرعلم امله وال پرې په زړه پورې ليکنې کړې دي، چې ګواريانو ته د ګواري ژبې د ليکلو او لوستلو په برخه کې پوره پوره لارښوونه شوې. دا کتاب هم يو تحقيقاتي اثر دی چې د ګواري ژبې ليکونکو او لوستونکو لپاره د لارښود اثر حيثيت لري.

۳- پلل: يو بل شعري کتاب دی چې تراوسه چاپ شوی نه دی.

۴- ګواريان: دا د سانين يو تحقيقاتي چاپي اثر دی چې چاپ ته چمتو دی، د ګواريانو او د ګواري ژبې په هکله پوره پوره معلومات لري.

۵- قلم: دا يوه په زړه پورې د کوچنيانو لپاره شعري ټولګه ده چې تر چاپ لاندې دی.

زموږ په ګران هېواد کې درې لسيزې وړاندې پښتو او دري دواړه رسمي ژبې وې او د افغانستان په دولتي او حکومتي ادارو کې په دواړو ژبو باندې ليکل لوستل او دفتري کارونه کېدل، خو د

افغانستان د نوي اسلامي جمهوريت د كرزي صاحب د واكمنۍ په دوره كې د اساسي قانون په تصويب سره د افغانستان ټولې ژبې رسمي ژبې وپېژندل شوې يانې پرته د پښتو او دري كوم محلاتو او سيمو كې چې ولسونه په خپلو نورو ژبو غږېږي خبرې وربانديې كوي هغه ژبې د درېيمې ژبو په نامه ياد شو او ليكل او لوستل وربانديې كېدی شي او دا د هغه ولسونو او ژبې ويونكو حق وګڼل شو. د نوي اساسي قانون په رڼا كې د پښتو-دري نه علاوه په نورو ژبو هم ډېر كتابونه، مجلې، اخبارونه او جريدې راووتل چې اوس د ښوونې او روزنې د وزارت له خوا د نوي اساسي قانون په رڼا كې د ټولو ژبو ويونكو لپاره د اول ټولګي نه د درېيم ټولګي پورې د تعليمي نصاب رياست له خوا چې د ښوونې او روزنې د وزارت پورې تړلې اداره ده، ماشومانو او كوچنيانو ته په خپله ژبه نوي درسي كتابونه چاپ شوي او يا د چاپ لاندې دي. په ګوارې ژبه باندې د (۱۳۶۰)ل كال څخه راپدېخوا په مجلو، ورځپاڼو او جريدو كې شعرونه او مضمونونه خواره شوي چې ابتدايي حالات سانين د پښتو او ګوارې ژبې ليكوال او شاعر د ګوارې ژبې په هكله د خپل وس مطابق هلې ځلې كړي دي او شعرونه او مضامين يې د افغانستان د ليكوالو او شاعرانو د ټولنې نشراتي اركان ژوندون او نورو مجلو او جريدو او راډيو او ټلويزيون له لارې خپاره شوي دي.

د محمد نواز حقيقت سانين په ګواري ژبه لاندې کتابونه ليکل شوي دي. په همدې ترتيب سره محمد نواز حقيقت سانين په ګواري ژبه ډېر نور څه هم لري چې اوس ناچاپ پاتې شوي:

۶- پښتو-پشه يي-انګرېزي-ګواري قاموس:

دا قاموس د يو تن کورياېي ليکوال له خوا ليکل شوی چې محمد نواز حقيقت سانين ددې قاموس سره ګواري ژبه زياته کړې ده او د چاپ لپاره چمتو شوی په دې قاموس کې پښتو پشه يي ګواري ژبه يو له بل سره د لغاتونو په برخه کې مقايسه او پرتله شوې ده.

۷- ګواري رواجونه او دودونه:

دا يو ښکلی او کلتوري ارزښتناکه اثر دی چې ډېر په زړه پورې د لرغونو وختونو مضامين او عنوانونه لري د چاپ لپاره چمتو شوی.

۸- ګواري ژبې پښتو قاموس:

دا يو ډېر ارزښتناکه اثر دی چې د ګواري ژبې د لغاتونو د خزانې حيثيت لري او څو زره ګواري سوچه لغاتونه پښتو شوي او دغه قيمتي اثر د چاپ لپاره چمتو دی.

۹- ګواري پښتو متلونه:

دا هم د ګوارو ولسونو د شفاهي ادب او کلتور په برخه کې ډېر ارزښتناکه ادبي اثر دی چې د محمدنواز حقيقت سانين له خوا ترتيب شوی، چې ګواري متلونه په کې راټول شوي او د پښتو ژباړې سره چاپ ته چمتو شوی.

۱۰- کوهستاني شاعران:

دا یو په زړه پورې شعري مجموعه ده چې د کوهستاني ژبې ویونکو د شعرونو بېلګې دي او کوهستاني شاعران فرهنګیان او روښنفکران په کې معرفي شوي دي.

## په ګواري ژبه د خپلوانو نومونه:

| ګواري | پښتو |
| --- | --- |
| باب | پلار |
| جای | مور |
| سه سی | خور |
| بلیایه | ورور |
| پاپی | ترور |
| بوډه | نیکه |
| بوډی | نیا |
| نانی | ورینداز |
| موما | ماما |
| مومانی | مامي (د ماما ښځه) |
| دد | تره |
| ننا | مشر ورور |
| لالی | کشر ورور |
| لمسی | نواسی |
| لمسی | نواسی |

## په ګواري ژبه د مېوه جاتو نومونه:

| ګواري | پښتو |
|---|---|
| خرما | خرما |
| لاک | انګور |
| بوبای | منه |
| دایم | انار |
| تانګوړه | ناک |
| الوچه | الوچه |
| کینت | انځر |
| سونزو | مرهنۍ |
| لیموړی | غوز |
| ګورو | ګورګورې |
| هارو | شفتالو |
| کانسور | مومانۍ |
| توروک | تیتاقې (شنۍ) |
| ام | ام |
| نارنج | نارنج |
| مالټه | مالټه |

## په ګواري ژبه د خوراکي شیانو نومونه:

| | |
|---|---|
| ګواري | پښتو |
| ګوم | غنم |
| ژو | وربشې |
| جوار | جوار |
| برابرینګ | لوبیا |
| ټونډول | وریجې |
| چیر | شیدې |
| وشیب | شرومبې |
| ملیده | غوړي |
| ککړه چیر | ماسته |
| کیلای | پنیر |
| شا | سابه |
| ماش | ماهي |
| کنته | پیروی |
| نه لیل | کوچ |

## د ګواري ژبې لیکوال او شاعران

۱ - مرحوم ملک سید علي خان: دغه لیکوال د نن نه (۸۰) کاله دمخه له دې نړۍ نه سترګې پټې کړي. دده کوم چاپي اثر او قلمي نسخې نه دي پاتې. مرحوم استاد امیرمحمد خان وایي چې نوموړی یو ښه لیکوال او شاعر تېر شوی او خبرو یې په خلکو ښه

تاثیر درلود او په پښتو، دري، اردو، عربي او ګواري ژبو ښه پوهېده او لیکل لوستل یې کولی شول او نوموړی د ناړې د مرکزي کلي اوسېدونکی و.

۲- ملک جمدرخان: د نشه ګام یو قومي او قابل شخصیت و چې د وخت یو ښه لیکوال او د میرزا په نوم یې شهرت درلود. د نشه ګام حاجي صاحب صالح وایي چې نوموړی په پښتو، دري، عربي، اردو او ګواري ژبه ښه پوهېده خو د نوموړی کوم اثر او لیکنې نه دي پاتې شوي.

۳- میرزا مسلی: د ارنوي یو ښه لیکوال او میرزا په نوم شهرت درلود او د اردو ژبې ګواري ژبې او دري ژبې په اړه یې څېړنې کولې، دده ځنې هم کوم قلمي یا چاپي نسخه نه ده پاتې شوې.

۴- عبدالواحد: چې مشهور په لعلي میرزا و، د پلار نوم یې غلام حیدر و، نوموړی د خپل وخت ښه لیکوال او ډېر شاګردان یې هم روزلي و په اردو، عربي، دري او ګواري ژبه ښه پوهېده او ۸۰ کاله دمخه یې د هند ځنې جاپان، فرانسه، ترکیه، لندن ته سفرونه کړي و. په انګرېزي ژبه هم پوهېده. یو جهان ګشت عالم او پوه شخصیت و په ختیځ پښتون مشوانی و خو ټول ژوند یې له ګوارو سره تېر کړي و. د


الحاج شیر علم واحدی

میرزا نورمحمد خان په وینا چې د هغه استاد پاتي شوی و داسې ویل:

لعلي میرزا په دویم نړیوال جنګ کې ټپي شوی و او په فرانسه کې ډېر وخت په روغتون کې بستر او د تداوۍ لپاره پاتې شوی و. لعلي میرزا د افغانستان د استقلال په څلورمه جبهه کې د لوژستیکي چارو عمومي محاسب پاتې شوی و او د چترال او د کونړ په جګړو کې یې برخه درلوده د هغه درې زامن وو هر یو مرحوم پیرمحمد خان واحیدي چې یو لایق ښوونکي په توګه یې ډېر شاګردان روزلي وو، بل مرحوم ګل محمد خان واحیدي و د ښه قلم خاوند و او الحاج شېرعالم واحیدي چې اوس د مالیې په وزارت کې مدیر دی.

## د ګواریانو مېشت ځایونه:

ګواریان د کونړ ولایت په نارۍ ولسوالۍ او غازي اباد په ولسوالۍ کې ژوند کوي. مرکزي ساحه یې د نارۍ مرکزي کلی دی، چې په تېرو زمانو کې نایي او نارۍ په نومونو یاد شوی او غټ کلي یې د نارۍ، بریکوټ، ساو، نشه ګام، دوکلام، ارنوی او نورو وړو وړو کلیو کې او د خیبر پښتونخوا په دوو غټو او پرنفوسه محلاتو کې لکه د دیر مرکزي شاوخوا کلو کې د دیر دره کوهستان کې، لکه ډوک دره کې بېلابېلو کلو کې پاتراک، کمرات، بریکوټ، لاموتی، جندري خوړ، بیاړ، تل، کلکوټ او نور واړه واړه کلي شته او د سوات سمسوره دره چې ډېره ښکلې دره ده او مشهور ځایونه لکه

کالام او نور دا د ګواریانو (کوهستانو) د ژوند اصلي ځایونه دي، خو زما په خپل ګمان سوات او دیر ته ګواریان د ناړۍ د مرکزي ساحې څخه د باټاش په لاره کوچېدلي. ډېر زیات ګواریان چې اوس په دیر او د دیر په مرکزي ساحو کې ژوند کوي په ذکر شوې لاره باندې تللي او اوس د کوهستاني باټاشیانو په نوم یادېږي دا ځکه چې د باټاش په لاره هغو سیمو ته کوچېدلي دي.

د دیر مرکزي کوهستاني اوس په پښتو ژبه خبرې کوي او د دیر کوهستان او د سوات کوهستان ولسونه په خپله ژبه کوهستاني خبرې کوي او خپل کلتور او عنعنات او رواجونه یې تراوسه په ښه شان ساتلي دي.

۱-کمرات د کوهستان ختیځ خواته یوه لویه دره ده چې د کوهستان قام پورې اړه لري په دغه دره باندې د کوهستان سین دیر خواته روان دی دغه دره ډېره سمسوره او شنه ده، ښکلې او زړه وړونکې منظرې لري، هواره شنه چمنونه لري او د ښکاریانو او سیلانیانو لپاره غوره محلات لري.

## د ګواریانو نفوس:

د ګواریانو د نفوس په هکله باید وویل شي چې د افغانستان د کونړونو په ولایت کې د ناړۍ ولسوالۍ او د غازي اباد په ولسوالۍ کې ژوند کوي په تېرو رژیمونو کې دغه ولسونو او قام ته توجه نه ده شوې او د پښتنو ورونو سره په ګاونډ کې شپې او ورځې تېرې کړي او چا د شاړو او چا د کوهستاني قام په نوم سره یاد کړي او په

تذکره کې ورته تاجک او یا پښتون لیکلي دي. په افغانستان کې ددې ولسونو نفوس د پنځوس زرو په شاوخوا کې اټکل کېږي خو دا ولسونه او قام په خیبر پښتونخوا کې ډېر زیات دي لکه ارنوي، ګډ ، خوړ، د دیر کوهستان او سوات کې په غرنیو سیمو کې او د دیر په مرکز کې ډېر اباد کلي کورونه لري زما په ګمان ددې ولسونو ټول نفوس په اوسنیو وختونو کې تقریباً یو ملیون ته رسېږي، خو دا احصایه به هغه وخت دقیقه شي چې پوره احصایه یې ترسره شي. پټه دې نه وي چې یو شمېر ولسونه چې په کونړ او د سرحد دواړو غاړو ته مېشت دي د دیګانو او د ګوډوجو په نوم یاد شوي دغه ولسونه زما په اند چې زیات خلک یې په ذکر شویو نومونو یادوي ګواریان دي، خو که چېرته دغه قومونه د ادبپوهانو او ژبپوهانو له خوا وڅېړل شي دا به ثابته شي چې دا ولسونه ګواریان دي.

## د کوهستانو نژاد:

ګواریان په مذهبي لحاظ دا خلک په ټول اصلي اریایي نژاده دي او خبره نړیوالو او د هېواد نامتو څېړونکو د کلونو کلونو څېړنو وروسته ثابته کړې ده. په رنګ غنمرنګه دي، متوسط قدونه لري لوړې پوزې لري، غټې سترګې لري، د وېښتانو رنګ د اکثرو تور دی د پوره حوصلې خاوندان دي، مېلمه پال، زیرک، بشردوست او خیرخواه خلک دي.

## د کوهستانو مذهب:

په مذهبي لحاظ دا خلک په سلو کې سل فیصده سني مسلمانان دي او د امام اعظم ابوحنیفه د مذهب پیروان دي او خپل مذهبي چارې په مشوره، اتفاق او محبت سره پرمخ بیایي په منطقوي او دولتي ستونزو باندې د اسلام د اصولو مطابق تصمیم او پرېکړې کوي او یو او بل ته قناعت ورکوي. دا خلک په اوسنیو وختونو کې زیات تبلیغیان دي چې ورځ په ورځ د دې لارې لارویان ډېرېږي او د دعوت تبلیغ په لاره روان دي.

# حکومتداري

## په جنوبي هندوکش او کونړ کې درې اداري

د نورستانو پخواني اجداد پخوا د الینا په نوم یادېدل چې د هندوکش لوړې جنوبي برخې یې اشغال کړې وې او د هغه زمانو او عصر ویدي څخه تر نن پورې په خپلو ځایونو کې اباد او مېشت دي. البته په لږو محلي تغیراتو سره په خپلو ځایونو کې اوسېږي.

الینایانو په سختو او پېچلو او تنګو درو کې د ژوند شپې کړې دي او د زمانو په تېرېدو سره د قبایلو سره په علت د ځینو ستونزو اړیکي نه دی نیول شوی، چې ددې کار له امله نژاد، ژبه او کلتور او رسم و رواج او پخواني اریایي عادات د نورستانو په منځ کې په خپل حال محفوظ پاتې شوی دی، چې ددې کار له امله ځینې پوهان نورستاني د نژاد له مخې (هوموالپینوس) یعنې غرنی اریایي په نامه یادوي.

کوم اطلاعات او داستانونه چې د ګوار یا ګور قبیلې سره شته ویل کېږي چې پخوا زمانو کې نورستاني د ګاونډیانو له خوا د الینا په نوم یاد کړي دي په دې داستانونو کې په روښانه توګه ښکاره خبره ده چې د هندوکش په جنوبي برخه کې چې پرته د شک د کونړ د ټولو درو په شمول هوارې او غرونه ټولې برخې په پخوا زمانو کې د درېو(۳) ادارو له خوا اداره کېدل چې په لاندې ډول دي:

۱- د الینا اداره: دا د نورستانو د اجدادو د پاچاهۍ اداره وه.
۲- د منګول اداره: دا د چترالیانو د اجدادو پاچاهۍ اداره وه.
۳- د ګوارو اداره: د ګواریانو د کوهستانو د اجدادو اداره وه.

د تاریخ ځنې څه پټ پاتې نه دي دا روښانه خبره ده، چې ذکر
ـوې درې اداري په خپل وخت او زمان کې د هندوکش جنوبي
خواته او د کونړ په ټولو درو کې کلکه حکومتداري تېره کړې ده چې
ا حالات د داستان او کیسو په شکل پخوانیو مشرانو کیسې د یو
سل نه بل ته پاتې شوي دي، چې نننی وخت کې د تېرو دریوارو
دارو په اړه ډېرې څېړنې په کار دي، چې دا اداري د کومو
میراطورانو په زمانه کې له منځه تللي؟

دا خبره ښکاره ده چې د الینایانو اولاده اوسني نورستانیان دي
چې د امیر عبدالرحمن خان په وخت د اسلام د مبین دین په منلو
سره مسلمانان شوي او کافرستان نوم په نورستان بدل شوی.

منګول اداره دغه ولسونو ته چترالیان ویل کېږي چې د پاکستان
سلامي جمهوریت یو مستقل ولایت (ضلع) ده.

ګوار اداره، دا ولسونه ګواریان دي او د کوهستان په نامه
یادېږي چې د کونړ ولایت شمال خواته او د ختیځ نورستان او چترال
جنوب خواته ژوند کوي چې دریوارو پخواني ادارو ولسونه اوس هم
په ګاونډ کې د ژوند شپې تېروي.

# ناړۍ

## د کواریانو مرکزي تاټوبی

۱ - موقعیت: ناړۍ مرکزي کلی د کونړ ولایت د مرکز اسعداباد څخه شمال لوري ته (۷۵) کیلو متره واټن کې موقعیت لري چې د بحر د سطحې څخه (۱۰۰۰) متره لوړوالی لري چې ټول مساحت يې



(۳۷۷) کیلو متره مربع دی او (۷۱) درجو او (۳) دقیقو د شرق طول البلد او (۳۵) درجو (۱۳) دقیقو په شمالي عرض البلد کې موقعیت لري. د ناړۍ د ولسوالۍ څلور خواوې په دې ډول دي: د ختيځ لور

ته د پاکستان خیبر پښتونخوا د دیر او براول منطقه او لویدیځ لور ته یې د نورستان ولایت غرنۍ سیمه او جنوب لوري ته د غازي اباد ولسوالۍ او دانګام ولسوالۍ او د شاهي غر جګه څوکه او شمال لوري ته د پښتونخوا د ارندو تحصیل او چترال او د ختیځ نورستان د کامدیش ولسوالۍ پرته ده.

۲- جیولوژیکي جوړښت: د ناړۍ ولسوالۍ د شرقي هندوکش د غرونو په جنوبي لمنو کې پرته ده او دا غرونه د (پالوزویک) په عهد کې د بحر د اوبو لاندې وو چې دا بحر د (تیتیس) یا منیروجن په نوم یادېده او د مدیترانې د بحر شرقي څنډو ته د چین شرقي سواحلو پورې غزېدلي وو، چې وروسته د غرونو جوړېدلو فعالیتونه چې د (تریاسیک) دورې په اخره کې شروع شو، دې ساحې وکولای شو چې د بحر د اوبو څخه راووځي ورو ورو ارتفاع واخلي چې بیا د (ترشري) دورې په اخره کې د (Orcgenie movement) په نتیجه کې بعضې درزونه (Faults) انتي کلاینونه (Anticline) او سینکلاینونه (Syncline) په دغو غرونو کې شنې او سمسورې درې جوړې کړې. که چېرې موږ د تیتیس بحر په وسطي ژوروالي (۳۰۰۰) متره او د شرقي هندوکش وسطي لوړوالي (۴۵۰۰) متره قبول کړو نو دغې ساحې د (تریاسیک) دورې نه تراوسه پورې (۷۵۰۰) متره پورته حرکت کړی دی.

۳- غرونه: لکه څرنګه چې مو وویل دغه سیمه یوه غرنۍ سیمه ده چې اوارې ځمکې په کې ډېرې کمې په سترګو کېږي، نو په دې

اساس ډېره ځمکه يې غرونه تشکيلوي چې د سيند د سطحې څخه شروع د سيند دواړو غاړو ته په تدريجي شکل لوړوالى يې زياتيږي.

د غرونو په هسکو نقطو خاتمه پيدا کوي چې په زړه پورې او حيرانونکې منظرې تشکيلوي. ددې منطقې غرونه د شرقي



هندوکش د غرونو په جنوبي لمنو کې موقعيت لري او لړۍ يې د هغو سره تړلې دي.

د نارې په سيمه کې ډېر غرونه شته چې د هغو له جملې موږه د مشهورو او لوړو غرونو يادونه کوو. په دې منطقه کې تر ټولو لوړ او حاکم غر د بامبير (Bambir) غر په نامه يادېږي، چې لوړوالى يې د بحر څخه (۳۷۳۵) مترو ته رسېږي. دغه ښکلى غر د نارې

ولسوالۍ ختیځ لور ته موقعیت لري چې د ډېرې سړې هوا له امله ددغه غر په سر کې نباتات یعنې ځنګل وجود نه لري او ډېرو واورو ورېدو له امله دایمي یخچالونه تشکیلوي چې د اوبو ډېره ښه زېرمه جوړوي.

بل د شاهي (Shahi) غر دی چې دا د نارۍ د ولسوالۍ او د دانګام ولسوالۍ سرحد سره بېلوي د ژمي په موسم کې ډېره واوره پکې ورېږي ددې غر لوړوالی د بحر له سطحې څخه (۲۸۰۰) متره دی. دغه غر په بشپړ ډول په ځنګل پوښل شوی او لړ یې د شمالي لور ته غزېدلی او د ډولي غر او د باټاش غر د بامبیر غر سره وصل دی.

له دې ځایه د غرونو لړۍ پیل د کرچیګل، شنګر او د بزه ګل د غرونو شمالي لوري ته اوږدېږي او د لواړي تاپ غرونه چې د پاکستان په خاوره کې موقعیت لري وصل کېږي چې په ځنګلونو پوښل شوي او د نارۍ ولسوالۍ لویدیځ لوري ته د غرونو لړۍ د ځونګ له درې څخه پیل د انچیګل او خمځي ګل د غرونو څخه تېرېږي او د کوتیا کوما کاریکل هسکو غرونو سره چې د نورستان ولایت پورې اړه لري وصل کېږي او دا غرونه په بشپړه توګه په ځنګلونو پوښل شوي او ددې غرونو ډبرې او ګړنګونه د ګنیز میکاشیست او شنه شیست څخه تشکیل شوي دي چې ددغو تیګو او ډبرو شتوالی د پریکامبرین عهد په دې ولسوالۍ کې تثبیتوي، خو دا خبره باید ومنو چې د نارۍ په ولسوالۍ کې غرونه او درې په

اساسي او مسلکي لحاظ پوره پوره چاندي لټول ډېر امکانات شته چې قیمتي معدنونه او کانونه به ولري.




ددغه غرونو په بېلابېلو سیمو کې د مالدارو خلکو له خوا بانډې جوړې شوي چې ځینو ځایونو کې ژمي او دوبي کې او په ځینو

ځایونو کې یوازې د دوبي په موسم کې د څرځایونو په حیث ورځنې کار اخلي د دې ولسوالۍ غرونه چې په ځنګلونو او ډول ډول شنو ونو پټ دي ددې سیمې ولسونه ورځنې ډېره ګټه اخلي. هغه حیوانات چې په دې غرونو کې پیدا کېږي عبارت دي له:

۱- زمری
۲- لېوان
۳- پړانګان
۴- ګیدړان
۵- سورلنډي
۶- شادوګان (بیزو)
۷- شکنبان
۸- غرڅه
۹- سوی

هغه ځځندګان چې دلته پیدا کېږي:

۱- ماران څو ډوله
۲- لړمان
۳- غونډلان
۴- چرمښکې
۵- موږکان
۶- شاکاسه
۷- جشکی

۸- سمساره

هغه الوتونکي مرغان چې دلته پیدا کېږي:

۱- طوطیان
۲- سحرایي چرګان
۳- تېپوسان ډول ډول
۴- کارغان
۵- ښکاري بازان څو ډوله
۶- زرین مرغان
۷- سحرایي کوترې څو ډوله
۸- ښاروګانې
۹- ښاخکې
۱۰- مرغۍ څو ډوله
۱۱- زرکان
۱۲- مرزان

## ۴- سیندونه:

په عمومي توګه ناړۍ د اوبو د شتوالي له پلوه ډېره بډایه ده ولې بیا هم د زراعتي ځمکو د خړوبولو لپاره ستونزې شته. ددې ولسوالۍ شمال ته په دوابه کې د چترال او د لنډي سین سره یوځای کېږي چې د کونړ د سین په نامه شهرت لري. د چترال سین د شرقي هندوکش د شرقي لمنو څنې سرچینه اخلي او د نورستان لنډي سین

د شرقي هندوکش د شرقي لمنو څنې سرچينه اخلي او د ناړۍ ولسوالۍ په زړه باندې تېرېږي چې تقريباً (۳۵) کيلو متره واټن وهي. د ځمکو د زراعتي کېدلو په برخه کې ورځنې کار نه دی اخيستل شوی او دواړه سيندونه ښه خوارږه ماهيان لري. په دې ولسوالۍ کې يو لړ واړه خوړونه هم شته چې د کونړ د سين سره يوځای کېږي:

۱- د دوکلام خوړ د ارنوي خوړ په نامه هم يادېږي

۲- د بريکوټ خوړ

۳- د کوټيا خوړ

۴- د ناړۍ خوړ

۵- د ساو خوړ

## ۵- د ناړۍ اقليم:

د ناړۍ ولسوالۍ يوه غرنۍ سيمه ده د هېواد شرقي لور ته موقعيت لري. ددې ولسوالۍ غرونه په ځنګلونو پټ شوي چې ددې منطقې په اقليم باندې لا هم مثبته اغېزه کوي په ټوليزه کچه ددې ولسوالۍ تودوخې لوړه درجه د سانتي ګراد په حساب مثبت (۴۰) او ټيټه منفي (۵) درجو ته رسېږي.

## ۲- د ناړۍ ولسوالۍ بشري بڼه:

د تاریخي او مستندو اسنادو له مخې ددې منطقې اصلي اوسېدونکي ګواریان (کوهستاني) او نورستاني دي خو د وخت په تېرېدو سره نور قومونه لکه پښتانه، ګوجر دغې منطقې ته د تاریخ په بېلابېلو دورو کې راغلي او دې منطقه کې مېشت شوي دي، چې په اوسني وخت کې په دې ولسوالۍ کې څلور قومونه کوهستاني، پښتانه، نورستاني او ګوجر قومونه ژوند کوي چې په عمومي توګه ددې ولسوالۍ نفوس تشکیلوي.

# بي بي ګلزار ابۍ

په ګواريانو کې د ګلزار نوم لکه لمر روښانه دی او د بي بي ګلزار د نوم سره هر څوک اشنا دی دا په ګواريانو کې د يوې درنې کورنۍ څخه ده پلار يې هم د وخت نامتو هوښيار او مجاهد شخصيت تېر شوی د قام د مشرانو له جملې څخه و. کله چې د بي بي ګلزار پلار په حق ورسېد دغه يوه لور ترې پاتې شوه نور اولادونه يې نه درلودل.

بي بي ګلزار د خپل پلار تر سيورې لاندې لويه شوې وه، پلار يې روښانه فکر درلود او ډېر وخت يې په قام کې د يو مشر په توګه د ولسونو په منځ کې ولسي او قومي دندې ترسره کړې وې.

بي بي ګلزار ته چې پلار يې يو ديني عالم تېر شوی و ښه تربيت او ديني علوم زده کړي وو، پلار يې په پښتو، دري، چترالي او نورستاني ژبو پوره پوهېده د ولسونو او قومونو منځ کې د پوره شهرت خاوند و.

کله چې د بي بي ګلزار پلار په حق ورسېد ولسونه راټول شو او د پلار په ځای يې په بي بي ګلزار د مشرۍ په توګه دعا وکړه.

بي بي ګلزار په هغه وخت کې د خپل پلار او نورو ديني عالمانو څخه پوره ښوونه او روزنه کړې وه، په پښتو، دري، عربي ژبو پوهېده او د ګلستان او د بوستان او نور کتابونه يې ويلي وو او په ليک لوست کې ډېر لوړ مقام درلود او خط يې ډېر خوش نويس و د قام ولسونو ته د نېکو اخلاقو او ايمانداری او شجاعت په اساس

ډېره ګرانه او د پوره محبوبیت خاونده وه. ډېره هوښیاره، پوهه او باتدبیره ښځه وه په دیني مسایلو، میراث او حقوقي مسلو باندې پوره پوهېده. دا د ملک ګل سید مېرمن او د حضرت علي مور وه، پلار یې محمد سید نومېده چې په ګوارو کې یوه درنه کورنۍ وه او په پیرشا دارۍ کورنۍ باندې یې شهرت درلود.

نوراحمد دین ملنګ د بي بي ګلزار په اړه د مشرانو په روایت داسې ویل: بي بي ګلزار سربېره پر دې چې په دیني علومو کې پوره پوهېده ډېره مهربانه، عادله او سنجیده ښځه وه، د هغه د خبرو او پرېکړو او امر څنې هېڅوا سرغړونه نه کوله او د هغه امر به حتمي منل کېده. هغه ډېر وسله وال کسان لرل چې د هغه ملاتړ ګڼل کېده.

نوراحمددین ملنګ ویل: چې هغه د ناړۍ په کلي کې چې کله غلام حیدرخان چرخي د نورستانیانو د حال احوال لپاره بریکوټ نورستان ته راغلی و او جنرال عبدالوکیل خان نورستاني د دواړو سره په بېلابېلو وختونو کې د قومي مسایلو او د جهاد د بري لپاره د نږدې کتلي وو.

نوراحمد دین ویل: کله چې غازي امان الله خان کابل کې د افغانستان خپلواکي اعلان کړه. بي بي ګلزار غازي امان الله خان ته د بریکوټ د پوځي قوماندانانو په لاس د مبارکۍ لیک استولی و، چې هغه لیک غازي امان الله خان ته ور رسېدلی و. غازي امان الله خان د مشرقي پوځیانو ته امر کړی و کله چې د بریکوټ ناړۍ څنې

بي بي ګلزار شاهي ماڼۍ ته راځي دوه تنه افسران او درې تنه عسکر د هغه په درناوي او د هغه امن په خاطر موظف کړي.

د بي بي ګلزار لیک غازي امان الله خان ته رسېدلی و هغه وخت کې په بریکوټ دوکلام او ناړۍ کې ډېر پوځیان موجود وو.

بي بي ګلزار کابل ته د تګ پرېکړه وکړه او د هغه د تګ لپاره اسونه چمتو شو د هغه سره په دې تاریخي سفر کې څو تنه نور مشهور مشران ګواریان هر یو ملک سید علي خان، ملک همایون، مولوي حضرت سید او مرزا حیاالدین اتېک د کابل په لور روان شو.

نوراحمددین وویل چې بي بي ګلزار په کابل کې شاهي ماڼۍ کې د غازي امان الله خان سره د نږدې لیدلي و. غازي امان الله خان ته یې د خپلواکۍ مبارکي ورکړې وه او هغه ته یې وړاندیز کړی و چې زموږ د سیمې ولسونه عواید نه لري ځمکې حاصلات نه کوي ولسونه حکومت ته د مالیاتو د ورکولو ستونزو سره مخامخ دي. غازي امان الله خان د بي بي ګلزار او ورسره ورغلي مشرانو سره ډېرې خبرې اترې کړې وې او د کونړ حکومت ته یې د ناړۍ په حصه کې هدایت ورکړي وو چې پنځه کاله دا ولسونه د مالیاتو د ورکولو څخه معاف دي.

بي بي ګلزار د خپلو نورو مشرانو سره د شاهي ماڼۍ د مهربانۍ په منني سره غازي امان الله خان ته دعا وکړه، چې د کابل نه کونړ ته د راتلو په وخت کې غازي امان الله خان په داسې حال کې چې د غازي امان الله خان مېرمن ملکه ثریا هم ورسره وه. بي بي ګلزار ته د

زرو (بهادري) او پوه توره چې د سپینو زرو پوښ یې درلود، حاجي صاحب ملک عصمت الله چې د بي بي ګلزار لمسی دی داسې وویل: دغه تاریخي توره چې غازي امان الله خان په خپل لاس د ډالۍ په توګه بي بي ګلزار ته ورکړې وه، زما مشر ورور حاجي شاطماس خان سره ده او هغه به د خپل کټ سر ته ایښې وه، خو متاسفانه کله چې زموږ په هېواد کې خلقي بدلون راغی شورویانو یرغل وشو، موږ چترال ته مهاجر شو دغه تاریخي یادګاري توره تراوسه نادرکه ده او د مالیاتو د بخښنې فرمان او د ملکې ثرثا له خوا ورته یوه جوړه د وریښمو جامې او نورو مشرانو ته یې یوه یوه توره (شمشېر) او نور سوغاتونه ورکړل، چې بېرته د بي بي ګلزار کونړ او ناړې ته د راتګ په وخت کې ډېر مشران اسمار ته مخې ته ورغلي وو.

## ملک مرزا سید علي خان:

نوموړی مرحوم ملک سید علي خان د ګواریانو یو مشهور دیني عالم تېر شوی و چې د ملک ګل سید خان زوی او په ختـه ګوار و، چې د هغه وخت په هندوستان لاهور او پېښور کې دیني علومو زده کړې پای ته رسولې وې د سیمې او منطقې لوړ دیني اسلامي عالم ګڼل کېده هغه په عربي، پښتو، دري او اردو ژبو پوهېده، روانې خبرې او لیک لوست یې پرې کولای شو او د بي بي ګلزار مشر زوی وی.

ډېره ژوره مطالعه يې لرله او ډېر شاګردان يې لرل، د ديني عالمانو سره به يې تل مشورې کولې، ډېر خوارۀ نظمونه يې هم ليکل، چې ليکل شوي اسناد يې نه دي پاتې.

مرزا نورمحمدخان د مشرانو په روايت چې مرحوم سيدعلي خان په رياضي او د نجوم علم کې ډېر ښه پوهېده ښه خوش نويس هم و، د ناروې د حضرت علي خان مشر ورور و خو هغه اولاد نه درلود. په خپل وخت سره هغه د شالوزو د کندې مشري کړې وه، د قومونو او ولسونو په منځ کې د لوی علميت په اساس ډېر محبوبيت درلود، هغه يو قدردان، نرم، نېک خويه او ايماندار شخصيت و، هغه د افغانستان د استقلال د څلورمې جبهې د قرارګاه د مالي لګښتونو مشري په غاړه درلوده هغه يو ښه محاسب و هغه د چترال او ارنوي په غزاګانو کې برخه لرله او خان مرزمان خان سره يې نږدې اړيکې لرل.

مرحوم سيدعلي خان د ناڅاپي ناروغۍ له کبله په ناړې کې په ۱۹۲۲م کال کې د (۴۸) کالو په عمر ددې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې (الله دې وبخښي).

# د اکوړي فیصله

مخکې ویل شوي چې د ناړې مرکزي ولسونه د لوی خدای(ج) پ
فضل او رحم سره اکثریت روښانفکران تشکیلوي او د علم او پوهې
او ادب سره مینه لري. په ۱۳۶۰ل کال د جهاد لپاره پاکستان چترا
ته مهاجر شو، دا چې د ناړې مرکزي خلک ډېرې زیاتې زراعتي ا
للمي ځمکې لري، نو یو شمېر کسانو چې اصلاً د جهاد او
مهاجرت په مفهوم نه پوهېدل د اسلامي احکاماتو کافي خبرتیا یې
نه لرله او د ناړې زراعتي او للمي ځمکې یې څو کاله خودسران
کرلې او رېبلې، نو ځینو کسانو د ناړې زراعتي ځمکې او للمي
ځمکې خپلې شخصي وګڼلې او په خپله خوښه یې د بل چا د پلرون
میراثي ځمکې په خپلو کې ووېشلې او ویل به یې چې د ناړې کلي
زراعتي ځمکې موږ ته په جهاد کې پاتې شوې او په خپلو کې یې
پرېکړه کړې وه چې د ناړې ولسونه پوهه هوښیار او نرم خلک د
دښمني نه غواړي، مرګ او ژوبله نه کوي، نو لازمه ده چې موږ
ناړې ولسونه کلي او ځمکو خواته راتلو ته نه پرېږدو، رښتیا خبر
داده چې ډېرو کسانو او وسله لرونکو ګروپونو د ناړې د خلکو پ
ضد خپل ناروا، شوم، غیری انساني اعمال په ډېرو وحشتناک
ډولونو سره ترسره کړل، خلکو ته لارې نیول، ډزې کول، د خلکو پ
کورونو د بمونو اچول او نور غیری انساني اعمال ترسره شو او د
غلط او غیری انساني حرکتونه خاص ددې لپاره ترسره شو چې

ناړۍ خلک خپل کلي او جايداد ته رانه شي ددې کلي ولسونو د خپل کلي د خپل جايداد د خپلو ځمکو لپاره ډېر زيات کړاوونه وزغمل. د قام او ولسونو مخالفينو ډېر کوښښ وکړ چې د ناړۍ د خلکو له خوا مرګ او ويني توی شي او د ناړۍ خلکو باندې په زور او دسيسو باندې د نورو قومونو سره د ښمنۍ وروتپي خو د لوی خدای(ج) په فضل او رحم او د ناړۍ د ولسونو په پاک او پراخ نيت سره د مخالفينو او د ناحقه دعواو دسيسو پر ضد په ډېرې هوښياری سره چلند وشو.

په ډېرو مسايلو کې يې د صبر او حوصلې نه کار واخيست، خو سره له دې هم يو شمېر وسله وال کسان د خپلې خبرې او پرېکړې څنې نه ګرځېدل چې ګويا د ناړۍ زراعتي او للمي ځمکې زموږ دي او د ناړۍ ولسونو ته يې نه پرېږدو؟.

د ناړۍ د زراعتي او للمي ځمکو د نيولو لپاره بې هويته کسانو ډېرې هلې ځلې وکړې، خو څه ځای يې ونه نيو. د ناړۍ څو تنه ځوانان په دسيسو کې شهيدان شو چې اصلي مسئله همدغه وه. هغه کسانو چې د نورو زراعتي ځمکې خوښې شوې وې او خيال او خوبونه يې ليدلي وو چې دا به موږ ته پاتې شي نوره څه بهانه يې نه لرله، د شريعت خبره يې پورته کړه حال دا چې د شريعت په معنا او مفهوم نه پوهېدل. د ناړۍ ديندار، باحوصله، امن خوښو ولسونو د شريعت کولو په خبره باندې ډېر خوښ شو او د اکوړې پخوانۍ مشهورې اسلامي مدرسې ته په ۱۳۲۲ل کال مراجعه وکړه د اکوړې

د ديني مدرسې د استادانو او عالمانو سره کېناستل او خپلې ستونزې يې ورته وويلې، د مدرسې مشهورو عالمانو په ډېره مهربانۍ د اسلام د سپېڅلي دين په رڼا کې د نورو ديني عالمانو په راغونډولو او ګډون سره په ګډه يوه غوڅه فيصله په لاس ورکړه چې په فيصله کې داسې ذکر شوي وو:

د ناړۍ خلک ديندار مسلمانان او اوس مهاجر او مجاهدين دي د دوی ټول کليوالي، ميراثي او وطني حقوق محفوظ دي هېڅوک د دوی په للمي او زراعتي ځمکو او کورونو او حدود اربعه باندې د دعوا حق نه لري هر چا چې ددې ولسونو ملکيتونو ته لاس ونه اوږده کړي او دعوه او جنجالونه کوي دا حرکتونه د اسلام د مبين دين د احکامو خلاف ورزي ده او د جهاد او وسلې نه بې ځايه کار اخيستل د مسلمان کار نه دی. د ناړۍ د ولسونو ملکيت ته لازمه ده چې په درنښت وکتل شي، مسلمان بايد مسلمان ته درناوی وکړي او پردی مال او جايداد ته خپل ويل ناروا عمل دی د ناړۍ زراعتي او للمي ځمکې او جايدادونه د ناړۍ ولسونو پورې اړه لري.

دا پرېکړه د اکوړي د پرېکړې په نامه ده، د اکوړي ختک مدرسه د پېښور ښار شمال خواته او د دير جنوب لور ته په نوښار کې موقعيت لري دغه يو پخوانۍ او مشهوره مدرسه په ټوله پښتونخوا کې ښکاره او د پوره شهرت لرونکې د ديني علومو زانګو بلل کېږي چې ديني ډېر مشهور او پوهه عالمان په مدرسه کې د استادانو په توګه کار کوي. د اکوړي د فيصلې وروسته هغه کسانو چې د نورو

زراعتي، للمي ځمکې، کلي، کورونه يې خوښ شوي وو لاسونه يې د بل چا د جايدادونو ته ول شول خو د خپلو دسيسو او ورانکارو اسلام ضد ناروا اعمالو ځنې يې لاسونه ته ول نه کړل چې نور به يې څه نوي خوبونه ليدلي وي؟

د اکوړي د مدرسې په دغه پرېکړه کې چې يوه اسلامي پرېکړه وه د ملک محمدزرين رول د ستاينې وړ دی.

# په ګوارو کې د خور او لور حقونه

ګوار ولسونه د خور او لور او خصوصاً د تورسرو ښځو ډېر زيات درناوی کوي خور او لور او ښځو ته په ډېره درنه سترګه ګوري او څوک چې خور لور او ښځو ته درناوی نه کوي ګواريان ورته بې ننګ بې ناموس او بې غيرت وايي او په سپکو سترګو ورته ګوري همدا سبب دی چې په عمومي ډول سره د ښځو درناوی او د ښځو د عزت او د حيا او ابرو ساتل ګواريان خپله سپېڅلې انساني دنده ګڼي. په ګواريانو کې د خور، لور او ښځو پوره پوره درناوی کېږي او د ژوند د هر ډول ستونزو او تولنيزو چارو کې ورسره کورونو کې مشوره کېږي، د ښځو خبرې اورېدل کېږي او د هغو مشورې منل کېږي او ګواريان په ګوارې ژبه يو مشهور متل لري وايي «کين چی شيګالی نه تړپل نه پيانون بو دنيا نه پيانی ميت» يانې چا چې د ښځو لمن ونه پېژنده هغه دنيا نه پېژني په دې کوچني متل کې ډېر کتابونه پراته دي بل ګوارې متل د ښځو په اړه داسې دی چې: «زينتی ليک بی شيګالی يی نه تنه» بې له ښځې ژوندون نه شته. ګواريان ژوند د ښځو سره تړلی او بې له ښځو ژوند په رښتيا هم نه شته.

په ګواريانو کې ښځو ته د ميراث وېشلو مسله نه شته خو که کومه ښځه وغواړي چې د خپل پلار څخه د ميراث غوښتنه وکړي ممانعت هم نه شته د اسلامي شرعي قانون له مخې ورته پوره حقوق ورکول کېږي خو په ګواريانو کې د ښځو ټول حقوق د نرانو له خوا

پوره په درناوي سره منل شوي. يوه ډېره په زړه پورې خبره داده چې په ګواريانو کې د ښځو خرڅول په زور نکاح کول نه شته.

د واده مسايل او د ولور مسايل د اسلامي اصولو مطابق په ډېره اسانتيا سره ترسره کېږي چې د هلک کورنۍ ته په کې کوم خاص تاوان نه پيدا کېږي.

ښځو سره ډېره په مهربانۍ او صله رحمۍ او په ښو سلوکو چال چلند کېږي په اخترونو کې او نور د خوښيو په ورځو کې هر څوک په ګوارو کې خپل خور لور د مېړه د کور څنې خپل کور ته د څو شپو لپاره راولي، جامې ورته کوي د هغه اولادونو ته جامې کوي او بېرته د مېړه کور ته د تګ په وخت کې ورته ډېر سوغاتونه ورکول کېږي او په خاصو مراسمو سره يې د مېړه تر کوره بدرګه کوي.

په همدې ترتيب که چېرته د خور او لور د پلار کورنۍ کې غم او يا څه مړينه او نورې پېښې منځته راشي خور او لور راغوښتل کېږي او د خپلې پلرنۍ کورنۍ سره د غمرازۍ شپې يوځای تېروي.

# ګواريان د ښځو او نجونو
# د علم او پوهې په برخه کې

ګواريان د ښځو او د نجونو د علم او پوهې په برخه کې ډېر روښانه دريغ لري او د ښځو او نجونو د علم او پوهې مسلې ته ډېر ارزښت ورکوي او په دې پوهېږي هر څومره چې ښځې په علم او پوهې باندې سمبال شي کورنۍ او ټولنه کې ستونزې له منځه ځي. په نارۍ، بريکوټ، ساو، نشه ګام او دوکلام په ټولو کلو کې ګواريانو ښځې شته چې ديني علوم يې زده کړي او نورو ښځو او نجونو ته اسلامي او ديني ښوونه او روزنه کوي، خو ګواريان د هېواد په سرحد کې اوسېږي چې هلته د تعليم او ښوونې او روزنې لپاره بيا په ځانګړي ډول د ښځو لپاره شرايط برابر نه دي، خو ګواريان ښځو ته دومره اجازه هم نه ورکوي چې نورو سيمو ته د زده کړو لپاره نجونې ورولېږي. د ګواريانو په ټولو محلاتو کې د مشرانو په توجه او پاملرنه باندې ښوونځي شته چې په نارۍ، بريکوټ، ساو او نشه ګام کې د نجونو لپاره (۱۲) ټولګيز پوره ښوونځي شته او فعال دي چې ددې سيمې د لايقو او باتجربه ښځو ښوونکو له خوا ورته تدريسي چارې مخکې وړل کېږي، خو بيا هم د نجونو په ښوونځيو کې د لوړو ټولګيو لپاره د لايقو او مسلکي ښوونکو د نه لرلو په وجه په تدريسي چارو کې ستونزې شته چې ورو ورو به دغه ستونزې حل شي.

په دوکلام کې د نجونو ښځینه ښوونځي کې (۴۵۰) تنه نجونې
د بریکوټ په لیسه کې (۷۱۰) تنو ته رسېږي
په ساو کې د نجونو په لیسه کې (۲۳۰) تنه نجونې
د ناړې په نجونو لیسه کې (۸۳۲) تنه نجونې
او په نشه ګام کې (۵۰۰) تنه نجونې
په اروند کې (۵۰۰) تنه نجونې

په خپلو زده کړو بوختې دي په دې سیمه کې یو شمېر نجونې شته چې د لوړو زده کړو لپاره د کابل او ننګرهار پوهنتونونو ته د کانکور له لارې په بریالیتوب تللي او په بریالیتوب سره په خپلو درسونو بوختې دي او په دیر، دیرکوهستان او سوات کې ډېرو ښځو او نجونو لوړې زده کړې سرته رسولي دي. د ګواریانو په سیمو کې په نشه ګام، ناړې ساو، بریکوټ او دوکلام کې ډېرې ښځې او نجونې شته چې په خصوصي ډول یې دیني اسلامي لوړې زده کړې پای ته رسولې دي.

په ذکر شویو ځایونو کې ډېرې ښځې او نجونې شته چې د قران پاک حافظانې دي او په خپلو کلیو کې د نجونو لپاره مدرسې شته چې نورې نجونې او ښځې په اسلامي او دیني زده کړو لګیا دي، چې دا ډول د نجونوې مدرسې په ناړې، نشه ګام، بریکوټ، دوکلام او ارنوي کې شته چې ډېر زده کوونکي لري او نجونې ورته په مینه ورځي او خپلې زده کړې کوي خو دا خبره د یادولو وړ ده چې په نشه ګام کې د ښځو دیني او اسلامي زده کړو په سیمه او منطقه کې لوړ

مقام لري. همدا اوس د نشه ګام په کلي کې (۸۰) نجونې اسلامي لوړې زده کړې او د قران شريف حافظانې دي او خپل تعليمي سندونه يې ترلاسه کړي چې اول مقام لري. ناړې دويم او ارنوي درېيم مقام لري او د نورو کليو کليوال په سيالي روان دي.

هغه قراني بلبلې چې د قران شريف حافظانې دي د قران په ترجمه کې نوم لري او زموږ ټولو لپاره د وياړ خبره ده دادي:

۱- بي بي اسيا بنت حاجي غلام سخي - ناړې
۲- بي بي اسمان پري بنت محمد نعيم - ناړې
۳- بي بي مجاهده بنت باچا - ناړې
۴- بي بي مجريها بنت حاجي شېرمحمد- ناړې
۵- بي بي سلما بنت حاجي محمد عثمان- ناړې
۶- بي بي ريحان بنت حاجي محمدعثمان- ناړې
۷- بي بي صفيه بنت نوردالله خان - ناړې
۸- بي بي غرنۍ بنت حاجي ميرعالم خان- ناړې
۹- اختر بي بي بنت حاجي رحمت سيد - ناړې
۱۰- بي بي ناجيه بنت حاجي عبدالمتين - ناړې
۱۱- بي بي عاقله بنت ارنوی - ناړې
۱۲- بي بي ملينريا بنت حاجي خان محمد- بريکوټ
۱۳- بي بي پروانه بنت حاجي ميرزمان- ناړې
۱۴- بي بي نقيسه بنت حاجي محمدزمان- بريکوټ
۱۵- بي بي ساجده بنت سلامت خان- بريکوټ

۱۶- بي بي مصبيها بنت ميرزمان قاضي- بريکوټ
۱۷- بي بي شګوفته بنت مفتاح الدين - بريکوټ
۱۸- بي بي مرسها بنت غلام فاروق - ناړې
۱۹- بي بي خيرون بها بنت حاجي عبدالباقي فضلي - ناړې
۲۰- بي بي ګل بنت حاجي سلطان محمد - ناړې
۲۱- بي بي ذکريا بنت ګل احمد سيد - ناړې
۲۲- بي بي مروا بنت حاجي عبدالحميد - ناړې
۲۳- بي بي سلما بنت حسن خان- دوکلام
۲۴- بي بي نذيره بنت حسن خان - دوکلام
۲۵- بي بي شاهيد بنت حاجي اکرم خان- دوکلام
۲۶- بي بي شاهينه بنت حاجي ثناالله- دوکلام
۲۷- بي بي سوحيله بنت ډاکتر شېرعلي- دوکلام
۲۸- بي بي روحينه بنت حاجي نورعلم خان - دوکلام
۲۹- بي بي سمعه بنت حاجي پاچاګل- دوکلام
۳۰- بي بي سيده بنت نورغني- دوکلام
۳۱- بي بي حنيفه بنت محمدرفيق- نشه ګام
۳۲- بي بي زهره بنت ګلام شاه- نشه ګام
۳۳- بي بي سامعه بنت نعمت الله- نشه ګام
۳۴- بي بي ناهيد بنت حيات الله- نشه ګام
۳۵- بي بي نظيره بنت محمد جعفر- نشه ګام
۳۶- بي بي ساجده بنت قاضي عبدالرحمن- ساو

۳۷- بي بي عابده بنت قاضي عبدالرحمن- ساو
۳۸- بي بي شاهده بنت ګلو خان- ساو
۳۹- بي بي مسعوده بنت لطيف الله - ساو
۴۰- بي بي بها بنت خالد - ساو
۴۱- هيلۍ بنت سيد هاشم- ساو
۴۲- بي بي روحيله بنت سيدهاشم- ساو
۴۳- بي بي خالده بنت ګل امين- ساو
۴۴- بس بي بي بنت عبدالعظيم- ساو
۴۵- بي بي صاحفه بنت سيد پاچا- ساو
۴۶- بي بي صابره بنت سيد پاچا- ساو
۴۷- بي بي سليمه بنت ګلزمان- ساو
۴۸- بي بي جليله بنت ګل شريف- ساو
۴۹- بي بي حنيفه بنت يوسف- ساو
۵۰- بي بي نصيبه بنت ګلزمان- ساو
۵۲- بي بي محسينه بنت نقيب الله - ساو
۵۳- بي بي اسما بنت نقيب الله- ساو
۵۴- بي بي حميده بنت غازي- ساو
۵۵- بي بي نجيبه بنت موالحق- ساو

نورې ډېرې ښځې او نجونې شته چې په خصوصي توګه يې د خپلو مشرانو په لارښوونه اسلامي زده کړې ترسره کړې دي او اوس خپلو نورو خويندو ته درسونه او سبقونه ورکوي چې ماته يې

نومونه نه دي معلوم ټولو هغه خويندو ته چې په ديني اسلامي زده کړو لګيا دي او يا يې کړې وي ټولو ته په ټول ژوند کې د حيا ډک او د خوښۍ ژوند غواړم.

دا سمه ده چې په پلازمېنې کابل کې د ښځو چارو وزارت رامنځته شوی او په دولتي ادارو کې ښځو ته د کار کولو يو څه زمينه برابره شوې خو پوښتنه دا ده چې ايا په کابل او يا ځينو نورو ښارګوټو کې د څو محدودو ښځو لپاره د کار زمينه د ټولو افغاني مېرمنو د حقوقو د لاسته راوړلو په معنا ده؟

که د ښځو حقوق په رښتيني مفهوم سره مطرح شي نو بايد د ژوندانه په ټولو اړخونو سياسي، اجتماعي، اقتصادي او نورو برخو کې ښځې خپل حقوق ترلاسه کړای شي.

که موږ په خپله افغاني ټولنه کې د ښځو پر وړاندې چلند ته وګورو نو دا به څرګنده شي چې په رښتيا هم افغاني مېرمنې د خپلو حقوقو څخه بې برخې پاتې شوې دي په داسې يوه ټولنه کې چې جنګ کلونه کلونه ځپلې وي او وګړي يې په يوه جګړه ييز بهير کې رالوی شوي وي د ښځو حقوق لاس ته راوړل ډېر وخت او زياتو هلو ځلو ته اړتيا لري او د يوې پراخې مبارزې په ترڅ کې کولای شي خپل حقوق ترلاسه کړي. د ګواري مليت او قام په افغانستان کې يو کوچنی مليت دی او بيا په سرحدونو کې ژوند کوي ښوونځي تراوسه نه و ښځو ته د کور نه د وتلو اجازه نه وه، ښځو حقوق چا نه پېژندل خو خپله د کوهستان د خلکو کلتور او رواج دادی چې د

ښځو سره يوځای د ژوند لپاره مبارزه کوي او کوهستاني ولسونه د ښځو حقوقو ته درناوی کوي د کوهستانو په کلتور کې د ښځو مقام ته ډېر ارزښت ورکړ شوی د مثال په توګه کوهستاني ژبه باندې متل دی چې: «کینی چی شیگالی نه تیمان تینی پلل نه تی مان» یانې چېرته چې ښځه نه وي هلته رڼا نه وي، تاسو فکر وکړئ چې دا متل څومره ژور انساني مفهوم او معنا لري بل متل چې ولسونه په ګواري (کوهستاني) به وايي داسې دی چې «زینتی لیک بی شیگالی نه تنه» یانې بې له ښځې ژوندون نه شته.

پورته دواړه کوهستاني متلونه د ښځو په هکله ډېر لوړ او د معنا په لحاظ ډېر په ژور تحليل سره ويل شوي چې بې له ښځې ژوندون نه شته نو لازمه ده چې ښځو ته پوره او په روښانه فکر وکتل شي او پوره درناوی د ښځو حق دی او افغاني مېړمنو ته هم پکار ده چې په يو اواز د خپلو حقوقو د اعادې لپاره کار وکړي او د اسلامي او افغاني ټولنې په چوکاټ کې خپلو روا مبارزو ته دوام ورکړي.

# د ناړۍ سرحدي کنډک

دغه سرحدي کنډک د ناړۍ کلي ختيځ خواته موقعيت درلود او شاوخوا ته يې امنيتي پوستې وې. کله چې د ناړۍ مرکزي ولسونو د هجرت پرېکړه وکړه ددې قوماندان خواته څو تنه مشران ورغلل او هغه ته يې خپل د تګ پروګرام ووايه چې د هغه له خوا تائيد شو. دغه قوماندان محمداسلم ساپی نومېده په رتبه ډګرمن و، نوموړی يو ويښ، زيرک، باتور پښتون و، د ناړۍ د ټولو مشرانو سره ولسونو سره ډېره مينه درلوده.

محمد اسلم قوماندان د وطن په هسکو غرونو باز او د وطن ميني يو پتنګ و، نوموړی د کونړ د پېچ درې و هغه د ناړۍ خلکو ته وويل زه ستاسو په خدمت کې يم ستاسو دفاع کول د وطن د ناموس ځنې دفاع ده. محمد اسلم ساپی د خپلو افسرانو او سرتېرو سره مشوره وکړه او پرېکړه يې وکړه چې د هجرت په لاره د خپلو ملګرو سره يوځای حرکت وکړي. د کنډک افسران او سربازان يې په څو ګروپونو ووېشل او د دوکلام په استقامت روان شو، دا چې زيات سربازان د نورو ولايتونو وو په منطقه کې بلديت نه درلود کله چې د خپلې قرارګاه ځنې د دوکلام په لاره روان و د تور کمر سره ورته ډاکوانو څو څو ځايه لاره نيولې وه. دغه افسران او سربازان په لاره ډاډه روان وو توره شپه وه چې يو ناڅاپي د وسله والو غلو او

لاره وهونکو له خوا وربانديږ بريدونه وشو، ددې لپاره چې دغه سرتېرو سره مرسته وشي د يو يو ميل ماشيندارو لپاره ډاکوانو د هغو د شهادت پرېکړه کړې وه، چې د بريد او ضربو په اساس ډېر زيات کسان په شهادت ورسېدل او يو شمېر کسان سخت ټپيان شول.

يو تن ددې کنډک افسر عثمان خان په دې اړه ماته په کابل کې داسې وويل: په دغه ناروا او غيري اسلامي عمل کې زه د محمد اسلم قوماندان صاحب سره يوځاى وم چې موږ دواړه ټپيان شو، زما يوه پښه ماته شوې وه او په ټټر هم ټپي شوى وم، قوماندان صاحب هم سخت ټپي و د افسوس خبره ده چې توره شپه وه ما د قوماندان سره مرسته نه شوه کولاى.

د قوماندان لاسونه او پښې ماتې وې، نور يې حرکت نه شو کولاى زه د قوماندان خواته پروت وم، قوماندان راته وويل لږه خاوره زما خولې ته واچوه چې د وطن خاوره د دارو په ځاى وخورم څو چې ما په لاس خاوره را اخيسته قوماندان ځانته د شهادت کلمه وويله چې د ټټر په زور ورته نږدې شوم پوه شوم چې قوماندان صاحب شهيد شوى دى.

يو څو دقيقې لا نه وې تېرې چې ډاکوانو لاسي برق زموږ خواته واچاوه او راغلل د شهيدانو په وسلو ټولولو تالان جوړ کړ ما هم ځان خاموش ونيو په وينو سور شوى وم ډاکوانو ماشيندارې او مرمۍ راټول کړل او د شهيدانو جيبونه يې ولټول هر څه يې

واخیستل ټوله شپه راباندې شوګیر او په لړزه او فریاد کې تېره شوه، سهار شو هېڅوک نه ښکارېدل خپله پښه مې په خپله وتړله په هماغه غرمه د یو ځوان په مرسته د پاشنګر کڅ ته انتقال شوم بیا په هلیکوپتر کې کابل ته روغتون ته انتقال شوم. هغه خاطره هغه ترخه شپه هغه د مرګونو شپه په ژوند نه شم هېرولای؟

اسلم ساپی قوماندان ددې خاورې یو اتل بچی و، د هغه ایمانداري د هغه مېړانه د ولسونو ځنې پټه نه وه خو افسوس دا چې د وطن په پاکه غېږه کې داسې اتلان د بې رحمو ظالمانو، قاتلانو له لاسه د شخصي ګټو لپاره خاورې ایرې شو، الله پاک دې ورته جنتونه په برخه کړي او د هغه شهادت دې الله پاک قبول کړي.

# د هجرت لاره

کله چې د ناړې مرکزي خلکو په ۱۳۶۰ل کال د جوزا په میاشت کې د هجرت لاره ونیوله، د ناړې مشرانو په خپلو کې مشوره وکړه او بیا د منطقې د مشرانو سره یې هم خبرې اترې او مشورې کړې وې دا چې ناړې یو مرکزي کلی دی ډېر زیات نفوس یې درلود او د ناړې شاوخواته داسې ډلې ټپلې وې چې مستقیماً د حکومتي او په منطقه کې پوځي مشرانو سره څلیریشت ساعته په تماس کې وو.

د ناړې ولسونو په ښکاره او په ډاګه د هجرت په لاره نه شو روانېدلای نو پخواني مجاهدینو سره یې تماس ونیو چې موږ نور د دولت او حکومت سره بایکاټ کوو او د جهاد په موخه د هجرت لپاره چمتووالی لرو. پخوانیو یو شمېر مجاهدینو د ناړې مشرانو سره په جرګه کې وویل: جهاد یو اسلامي فریضه ده موږ ستاسو سره هر ډول مرستو ته تیار یو او هر خواته چې هجرت کوئ ستاسې خپله خوښه ده اول خپل د کور ماشومان او ښځې ددې منطقې څنې وباسئ بیا ورو ورو خپل سامانونه انتقال کړئ او د خپلو کورونو د حفاظت لپاره به بېرته راشئ. یو تن قومي مشر میرزا عبدالحق کاکا راته وویل موږ کلیوالو مشرانو پرېکړه وکړه چې د کور ماشومان او ښځې به ددې سیمې نه وباسو بیا به خپل د کور سامان او جنسونو پسې دوباره راځو او د کلي د حفاظت لپاره به په اتفاق سره پروګرام جوړ کړو، د سیمې یو شمېر خلکو دا خبره ومنله او ویې ویل: تاسو

چې هجرت کوئ د خپل کورونو او کليو او سامان او حيواناتو او
ورو جنسونو ځنې په اطمنان کې اوسېږئ ستاسو د دروازو خواته
به څوک نږدې نه شي او ستاسو د دروازو زنځيرونه به څوک ونه
شرنګوي.

د نارېء ولسونو په ډاډ سره هجرت وکړو، چې يو شمېر ډاکوانو
ورته لارې نيولې وې او يو شمېر ډاکوان کلي ته راننوتل دا چې په
کلي او کورونو کې څوک پاتې شوي نه وو په چور او تالان يې پيل
وکړو چې دا چور او تالان څو ورځې دوام درلود او تالانګرو بې له
ستړيا ډول ډول سامانونه يو خوا او بله خوا انتقالول چې د کورونو
فرشونه، بسترې، ظروف، صندوقونه، غنم، جوار، کټونه، غوا
غويي، ګډان، وزې تر چرګانو پورې تر مېز او څوکيو پورې چا په
کلي او کورونو کې پاتې نه کړل او د کلي کورونو ته يې اورونه
واچول او د ځينو کورونو دروازې او کړکۍ هم انتقال کړل شوې او
کلي د اورونو په لمبو کې وسوځېد.

د نارېء مېلمه پال او مسلمانو او ابرومندو ولسونو سره غيرى
عادلانه او غيرى انساني ناوړه عمل ترسره شو، خو د نارېء ديندارو
ولسونو اوس هم تر هر چا د ښه ژوند او د لوړ عزت او ابرو خاوندان
دي.

هماغه سوزېدلي کلي او کورونه د پخوا په نسبت ډېر ښه جوړ
شوي او د کلي او کورونو ښکلا لا پسې زياته شوې. رښتيا خبره ده
چې (عزت او ذلت د الله په لاس کې دی).

# د ټینګه باټ پوځي پوسته

کله چې د ناړې کلي هجرت ته پاڅېده او ولسونو د دوکلام په لور حرکت وکړو د ټینګه باټ د پوځي پوستې سربازان د جریان څخه خبرتیا نه لرله، د ټینګه باټ پوستې پوځیان د ناړې ولسونه ولیدل چې د دوکلام په استقامت د خپلو ماشومانو سره روان دي خو د پوستې پوځیانو خبرتیا نه لرله چې کلیوال پاکستان ته هجرت کوي او د کارمل د رژیم او کمونیستو یرغلګرو پر ضد د جهاد لپاره چترال ته ځي.

د شپې درې بجې ۱۳۶۰ ل کال د جوزا د میاشتې ۲۰مه نېټه وه د پوستې سربازانو پرېکړه وکړه چې موږ د خپلو خلکو لپاره د خپل ناموس لپاره دلته په پوسته کې ژوند او مبارزه کوو دا چې زموږ د کور غړي خپلوان او کلیوال هجرت وکړي نو موږ نور پوځي دنده نه اجرا کوو او د خپلو کلیوالو سره یوځای هجرت کوو، د خپلو وسلو سره د هجرت لپاره د جهاد لپاره پوسته یې پرېښوده او ټینګه باټ څنې لاندې د ناړې پله ته ښکته شول، په دې پوسته کې د بریکوټ د ۵۵ غنډ نور سربازانو هم ګډون درلود، چې د بریکوټ سربازان په سړک باندې د بریکوټ په طرف روان شول او د ناړې کلي سربازان هر یو:

۱- عبدالطیف ولد ګلزمان

۲- نوراکبر ولید محمد اکبر

۳- جمعه الرحیم ولد فضل الرحیم
۴- حسین خان ولد حضرت علي
۵- سید حسین ولد لعل زمان خان
۶- نورمحمد خان ولد اجدر خان
۷- میرولي
۸- علي احمد ولد پیرمحمد
۹- علي اکبر ولد سید اکبر
۱۰- خان محمد ولد امیر محمد

دغه کسانو د ناړې کلي ته راغلل ګوري چې ټول کلیوال د دوکلام په لور تللي وو دغه کسانو هم د خپلو کورنیو په لاره روان شول د خپل کلي څخه ووتل او د ناړې شمال خواته تورکمر کې د یو شمېر رهزنو او غلو سره مخامخ شول په ناڅاپي توګه ورباندې وسله وال یرغل او برید وشو.

د یرغلګرو او رهزنو شمېر زیات وو ددغه ذکر شویو کسانو څنې د لاس وسلې واخیستې او یو تن میرولي تېښتې شو همدلته په تور کمر کې پاتې شو ددې لپاره چې روغتون ته انتقال شي یا ورسره په اسلامي روحیه مرسته وشي تېښتې شوی میرولي خان ځوان یې یو ځل بیا د ماشیندارو په ذریعه وویشت او شهید شو. پاتې ۹ کسان په لاره کې خپلو کورنیو غړو سره د بزګل په سیمه کې یوځای شول.

عبدالطیف خیاط چې په خپله ددغه سربازانو د جملې څخه و داسې وایي: دا چې زموږ کلیوالو او موږ د اسلام د مبین دین په رڼا

کې د هجرت لاره غوره کړه ډېر شمېر د اسلام د مبین دین د احکاماتو څنې ناخبرو غلو او ډاکوانو ځای په ځای زموږ د چور او تالان لپاره کمینونه نیولي وو او ځای په ځای په لاره کې پورته کېدل زموږ د لاسونو وسلې هغو په زور او په تهدید راڅخه واخیستې او دا یې ویل چې ستاسې وسلې بېرته درسپارو په دغو غلو او ډاکوانو کې زیات داسې کسان وو چې یو بل مو د ګاونډیتوب په اساس پېژندل څنې په کې اشنایان هم وو خو متاسفانه د هغو د سترګو اوبه وچې شوې وې او حیا یې نه لرله او په لاسه کې راته د لستوڼو ماران شول او په چل او فریب سره یې زموږ وسلې واخیستې د هغو کسانو سترګې راته تر ابده ټیټې دي او ټیټې به وي او د یوې ورځې نه بلې ورځې ته حالات یې خرابېږي او اوس په ولسونو کې هغه چاته باور نه لري د هغو ناوړه اعمال خلکو ته رسوا شوي هر هغه چا چې د جهاد د مقدس نوم څنې د ځان لپاره شخصي ګټه اخیستې وي د قیامت په ورځ به د عذابونو سره مخامخ وي.

# علاقدار راورسېد؟

کله چې په ۱۳۶۰ ل کال د جوزا د میاشتې په شلمه نېټه د ناړې مرکزي ولسونه په مشوره، د الله(ج) د رضا لپاره د جهاد او هجرت لپاره د خپلو کورونو او کلیو څخه ووتل څوک په یوه لاره څوک په بله لاره او زیات ولسونه د کلي د شمال په لور د دوکلام او د چترال په نیت په لاره روان شو، چې د یو شمېر داړه مارانو او حرام نمکو وسله والو له خوا ورته څو څو ځایه کمینونه نیول شوي وو، دغه وسله والو ډاکوانو او د اسلام او انسانیت او شریعت خلاف تور پلانونه درلودل، د ناړې د مرکزي کلي نه د بزه ګل دوه جنګي پورې په لاره ډېرو تورمخو خپلې څېرې ښکاره کړې او یو شمېر کسانو ته یې وسله وال تهدیدونه وکړل، څو څو ځایه لاس او ګرېوان شول؟؟

د ناړې خلکو کلکه اراده لرله چې ماشومان او ښځې راسره دي باید بې ځایه غلط عمل ونه شي خو داړه مارو ته کتل او د هغو د هر ناوړه عمل لپاره یې په هوښیارۍ سره چمتوالی درلود.

د دوبي د ګرمۍ شپې او ورځې وې د یوې خوانه ولسونو خپل ډک کورونه او سامانونه او حیوانات په کلي کې پرېښي و چې ګوندې ماشومان او زنانه ځای په ځای شي دوباره به کورونو ته ستانه شو او د بلې خوا په لاره کې ورسره ماشومان او زنانه شته چې په لاره یوځای روان دي، چې په دې نه هېرېدونکې تاریخي سفر کې

سپین سرې ښځې، بوډاګان او د غېږې ماشومان ورسره مل دي چې په صحرايي لاره کې په توره شپه کې د تګ او مزل توان نه لري؟

د ډېرو ستونزو او پرېشانیو سره مخامخ شوي وو په هر صورت د بزګل دوه خورې ته ورسېدل نور نو په توره شپه کې د تګ چاره نه کېدله؟ د یوې خوا توره شپه وه د بلې خوا ماشومانو او بوډاګانو نور د تګ قدرت نه درلود چې ګوري ډاکوان او تورمخي حرام نمک وسله وال په غرو، رغو او ناونو کې ځای په ځای د وسلو سره ښکاري، ډاکوانو مشوره کړې وه چې کوهستاني ولسونه مرګ او ژوبله نه خوښوي یو ناځاپي به په توره شپه کې وربانديې وسله وال بریدونه وکړو د لاس وسلې او سامانونه به یې لاس ته راوړ او چور او تالان به جوړ کړو او د مرګ کندې ته به یې واچوو او د شرم او د افغانیت د قانون خلاف خبره ده. پرېکړه یې کړې وه چې نجونې به له ځان سره یوسو چې دا د ناړې مرکزي ولسونو ته په ژوند کې ډېرې ترخې او بوږنوونکې او نه هېرېدونکې خاطرې دي.

د ناړې ولسونه د ډاکوانو او تورمخو په شوم او ناوړه پروګرام باندې اشتباهي شو او تولو ته وسوسې او اندېښنې پیدا شوې وې، ډاکوان یې په سترګو ځارل چې څه به کېږي؟

د ناړې یو تن قومي مشر ملک محمد حضرت په خپلو کلیوالو باندې په هیبت غږ وکړ او چغه یې وکړه او خپل ولسونو ته یې وویل:

نن زموږ د مرګ او ایمان وخت دی هر څوک د خپل کورنۍ د غړو د حفاظت او امن لپاره مورچل ونیسئ او بې ننګه کسانو ته چې موږ ته بد ګوري او د ناوړه عمل پلان لري د مرګ د اخیري سلګۍ پورې په نره مقابله وکړئ همدا جهاد دی او ددې کار لپاره راوتلي یو، هر چا د خپلو کورنیو د غړو خواته چمتو پرېوتل او د یو لوی ازمون لپاره چمتو شو. د تورې شپې تور څادر خور شوی و، چې یو ناڅاپه د بزګل د غره په سر یو څو ډزې وشوې چې ټولو خلکو دا ډزې واورېدې.

د شاوخوا ډاکوانو تورمخو هم دغه ډزې واورېدې او په خپلو کې یې وویل: (علاقه دار) راورسېد دا ګونګوسه ډېر ژر په ټولو باندې خوره شوه، هک پک شو ډاکوان دا د اسلام د مبین دین دښمنان پوهه شوي وو چې دا د نورستان پېژندل شوی قوماندان انور امین دی. د سترګو په رپ کې دغه ناولي او چټل کسان تیت و پرک شول.

انور امین په توره شپه کې په خطرناکه وخت کې د نارۍ خلکو ته راورسېد او د سلام او جوړ په خیر وروسته یې خلکو ته د هجرت کولو مبارکي ورکړه او ډاډ یې ورته ورکړ چې ارام او په خاطر جمعۍ سره استراحت وکړئ، هېڅوک جرئت او توان نه لري چې ستاسې په لور څوک خپلې خیرنې سترګې پورته کړي. زه ستاسې د مرستې لپاره او ستاسې په درناوي راغلی یم، تاسو درانه او ابرومند خلک یاست زه ستاسې ورور یم!

نور احمددین ملنګ په دې اړه داسې وویل: انورامین علاقه دار مازیګر په ګډه خوړ کې خبر شوی و چې د ناړې خلکو هجرت کړی دی په لاره کې ورسره څوک ناوړه عمل ونه کړي هغه یو باتدبیره او هوښیار قوماندان و که چېرته هغه بزګل ته نه وي راغلی نو خدای(ج) ته پته ده چې څه به پېښ شوي وای الله پاک دې هغه ته جنتونه په نصیب کړي.

# ناړې
# دګواریانو مرکزي ټاټوبی

د کونړ په ولایت کې د ناړې سرحدي ولسوالۍ د ګواریانو مرکزي او اصلي ټاټوبی دی چې د ناړې په نوم یادېږي.
ناړې یوه سوچه ګوارباتي کلیمه ده چې د نعړلام څخه جوړه شوې ده چې د پېړیو پېړیو راهیسې ولسونو د (نای لام) د (نعړلام) سره یاد کړی چې د زمانو په تېرېدو سره نای لام او نغړلام کلیمه او نوم په (ناړې لام) اوښتی. نغړ په ګواري ژبه د بنیاد او تهداب او رېښې په معنا راځي او لام چې یوه سوچه ګواري کلیمه ده د کلي او چم معنا ورکوي، نو ناړې د لرغونو زمانو راهیسې د ګواریانو د ژوند مرکزي ټاټوبی دی او د ګواریانو خاوره ده.
د پخوانیو مشرانو څنې حکایت دی او کتابونو د نړۍ د مشهورو څېړونکو په کتابونو کې دا ثابته شوې ده چې ګواریانو په پخوا زمانو کې د هندوکش د غرونو په جنوبي څنډو کې د ولسونو د اداري لپاره یوه لویه اداره لرله چې د ګواریانو د اجدادو اداره وه. بله اداره د الینایانو او بله دمنګول چې په چترالیانو شهرت لري په دغو سیمو کې حکومتداري او اداره چلولې ده په ناړې مرکزي کلي کې د منځ کلي کې پخواني مشران وایي چې د ډبرو یوه لویه کلا اباده وه چې د ډبرو او لرګو څخه جوړه شوې وه او ډېر پلن دېوالونه یې لرل او پخوانۍ دروازې، کړکۍ او د منډونو ستنې ډېر په

حیرانونکي ډول سره د هغه وخت ماهرو نجارانو له خوا جوړې شوې وې، خو متاسفانه دغه لویه ودانۍ چې د ناړۍ د اوسني جامع جومات شمال خواته اباده شوې وه د تېرو زمانو په جګړو او لښکرکشیو او قبیلوي جګړو کې به له منځه تللې وه او سوزېدلې به وي، خو د ډېرو د دېوالونو اثار یې د ظاهرشاه د پاچاهۍ او د سردارمحمد داود د جمهوریت تر پایه به ښکاره معلومېدل، د وخت حکومتونو او رژیمونو تاریخي ابادیو او لرغونو اثارو ته پاملرنه او توجه نه کوله نو ددې تاریخي لرغونې ودانۍ د ډېرو ځنې ولسونو د شخصي کورونو د جوړولو لپاره کار واخیست او پخوانیو مشرانو به ویل چې دا ودانۍ د ګواریانو شاهي یا د پاچاهۍ ماڼۍ وه چې ددې ماڼۍ په شمال لویدیځ ګوټ کې ملک محمدیوسف خان چې د وخت یو نامدار او ایماندار ملک و ځانته کور جوړ کړی و، خو د پاچاهۍ ماڼۍ اثار او ابادي ډېره پخوا له منځه تللې وه دا چې په وطن کې دا دري لسیزې ډېرې تودې، سېزونکې او وژونکې جګړې تېرې شوي اوس ددې پخواني لرغونې ابادۍ نښې نښانې نه دي پاتې شوي او ولسونو په کې شخصي کورونه اباد کړي چې دا د پخواني لرغونو زمانو د ګواریانو مضبوطه ابادي ګڼل کېده.

د پخوانیو مشرانو ځنې نقل او حکایت پاتې دی چې ګواریان د نورستان او منګول چترال سره اړیکي لرل او د چغه سرای پورې اداره ددې ولسونو په غاړه وه. ناړۍ یو خاص جغرافیایي ارزښت

لري په لرغونو زمانو کې هم یوه مهمه او ستراتیژیکه سیمه وه او اوس هم ده.

ناړی د کونړ او د چترال د استقلال د څلورمې جبهې مرکزي ساحه وه، په هغه وخت او زمانه کې د چترال او د ختیځ نورستان په خاوره باندې د امیر عبدالرحمن او د غازي امان الله د واکمنۍ په دوره کې حکومتي او شاهي پلانونه د ناړی په قرارګاه کې د عملي کولو لپاره پلانونه جوړېدل او له دې سیمې به بیا د عملي اقدام لپاره پوځي افراد او لښکرې لېږل کېدې چې د چترال او د کونړ د څلورمې جبهې په وخت کې دوکلام او بریکوټ د تودو مورچلونو محل ګڼل کېده او د دوکلام او د بریکوټ مورچلونه به د ناړی د قرارګاه له خوا وخت پر وخت تقویه او کنټرولېدل. د تاریخي شواهدو له مخې او د مشرانو په روایت غازي خان میرزمان خان به په ناړی مرکزي قرارګاه کې وختونه تېرول او په همدې ترتیب سپه سالار غلام حیدرخان چرخي او نورو دولتي مشرانو په ناړی قرارګاه کې شپې او ورځې تېرې کړې دي او د بریالیو نتایجو سره بېرته مرکز ته ستانه شوي دي.

# د ناړې پخوانې مشهور مشران

۱. ملک رحمن الدین
۲. مولوي غلام سید مشهور په ناړې ملا
۳. ملک سلطان جان
۴. میرزا حیاوالدین
۵. ملک میرزا سید علي
۶. حضرت علي
۷. احمد شاه
۸. عبدالمنان
۹. ظفرخان
۱۰. ملک همایون
۱۱. سراج الدین
۱۲. شمس الرحمن
۱۳. عبدالله پهلوان
۱۴. حضرت شاه
۱۵. قاضي محمد زمان مشهور په مشر قاضي
۱۶. حاجي محمد حسین
۱۷. صلاخان
۱۸. میرزا حیاوالدین

۱۹. میرزا عبدالواحد مشهور په (لعلي) میرزا
۲۰. سید جلال
۲۱. عرب الدین
۲۲. شهاب الدین
۲۳. ملک رحمت الله
۲۴. رضاخان
۲۵. عبدالمنان
۲۶. شهاب الدین
۲۷. اټک
۲۸. حضرت علي خان
۲۹. ملک محی الدین
۳۰. ملک محمد حضرت
۳۱. مرزا نورمحمد خان
۳۲. ملک عبدالخالق
۳۳. میرزا عبدالحق
۳۴. شهید عبدالصمد خان
۳۵. عبدالباقي قومي مشر
۳۶. حضرت سید
۳۷. شیخ فضل رحیم
۳۸. بسم الله خان
۳۹. محمد سید

۴۰. ازاد خان
۴۱. نوروز خان
۴۲. شاعر نوراحمد دین ملنګ
۴۳. حاجي حضرت الله خان
۴۴. حاجي عبدالحمید
۴۵. حاجي شاطهماس خان
۴۶. حاجي لعل زمان خان
۴۷. ملک محمد جان
۴۸. ملک عبدالظاهر
۴۹. ملک عبدالولي
۵۰. حاجي محمد اکبر رئیس
۵۱. اکرم جان

## د ناړې د مرکزي کلي اوسني مشران



۱. حاجي عصمت الله
۲. حاجي ملک رحمت نور
۳. حاجي محمد عثمان
۴. حاجي سلطان محمد
۵. ملک برهان الدین
۶. حاجي عبدالباقي فضلي
۷. مولوي ولي رحمن





۸. مولوي رحيم الله
۹. حاجي عبدالقاهر (فولاد)
۱۰. حاجي ګلاب سيد خاموش
۱۱. حاجي حياوالدين
۱۲. عبدالغفار مدير
۱۳. حاجي نور اکبرخان
۱۴. مامور شېرزمان
۱۵. حاجي محمد طاهرخان اخطار
۱۶. حاجي احمدزمان ډګروال
۱۷. حاجي احمدعثمان مدير لېسه
۱۸. حاجي ګل محمد سالار
۱۹. حضرت محمد
۲۰. مسافر (خليلزی)
۲۱. سيد شريف
۲۲. دلاور خان
۲۳. حاجي عبدالمتين
۲۴. حاجي غلام فاروق
۲۵. حاجي غلام شاه
۲۶. حاجي ملک غلام فاروق
۲۷. حاجي غلام قادر (اميد)
۲۸. معلم اکبر سيدخان

۲۹. حاجي علي احمد
۳۰. حاجي شېرعالم
۳۱. قوماندان سيدنبي
۳۲. سيد حسين
۳۳. سييد كريم مفتش
۳۴. حاجي عبدالجلال
۳۵. حاجي حبيب الرحيم فضلي ډګروال
۳۶. ډګروال ميرعلم انجړ
۳۷. جګړن سيلاني
۳۸. حاجي غلام رحيم (مريدي)
۳۹. حاجي نورجلال
۴۰. حاجي عاشق الله
۴۱. حاجي ګل اكبر
۴۲. جګړن فضل عظيم
۴۳. حاجي اكبرخان
۴۴. قاضي فضل مولا

ذكر شوي د ناړې د كلي مشران اكثريت يې روښانفكران دي چې د كليوالي او قومي او محلي ستونزو د حل لپاره كار كوي او په جرګو كې ګډون كوي چې ټول يې د ژور فكر خاوندان دي.
د ناړې هغه كسان چې د جهاد په مورچلونو كې په مېړانه سره شپې او ورځې په ويښه شوګير كړي دي.

حاجي عصمت الله خان
حاجي حضرت الله خان
حاجي غلام سخي
حاجي لعل زمانخان
نوراحمد دين ملنگ
سيد حضرت
استاد حياوالدين
عبدالحميد
سيدحسين
سيدمحمدخان
نعيم
وزيررحمن
حاجي عبدالباقي فضلي
ملک برهان الدين
ملک رحمت نور
ملک شمس الدين
ملک حضرت جان
حاجي ملک محمدظاهر
حاجي عبدالقاهر (فولاد)
حاجي بهادرخان
استاد عبدالرحمن
استاد غلام رحيم
استاد جمعه الرحيم
استاد اکبر سيد

استاد علي احمد
استاد علي اکبر
استاد سیدرسول
استاد دلاور
استاد شهزاده خان
استاد ساعت ملکوک
عبدالحمید
غلام خلیل
غریب سید
ګوډ حسن خان
عجب خان
عبدالطیف خیاط
غلام خالق
عبدالمتین خان
حاجي شېرعلي خان
توردلی
نورالدین خان

او ګڼ شمېر مجاهدین شته چې زما د قلم د ژبې ځنې پاتې شو خو د ناري ځوانانو ډېره په مېړانه د جهاد په کلونو کې د جهاد مورچلونو ته په زړورتیا سره تللي او د یرغلګرو روسانو سره او د هغو د مزدور رژیم پر ضد په مخامخ جګړو کې برخه اخیستې ده او په دغه اسلامي سپېڅلې لاره کې یې ډېر زیات کړاوونه ګاللي دي.

## د ناړې مرکزي کلي په تعليمي لحاظ:

د ناړې په مرکزي کلي کې يوه د هلکانو لېسه او بله د نجونو لېسه ده چې دواړو لېسو کې په زرګونو زده کوونکي د لايق او باتجربه استادانو له خوا ورته تدريسي او د ښوونې او روزنې چارې مخکې وړل کېږي.




د ناړې مرکزي ولسونه چې اکثريت يې کوهستاني دي د ژوند لپاره ښوونې او روزنې ته د رڼا په شان ارزښت ورکوي دغه ولسونو د خپلو اولادونو د پوهې او علمي کچې پرمختګ لپاره ډېره پاملرنه کوي، د علم او پوهې په ارزښت باندې پوهېږي چې د ژوند په ټولو چارو کې علم او پوهه څومره لوړه درجه لري؟ پرته د لېسو او ښوونځيو څخه دلته د ناړې په مرکز کې د لايقو او باتجربه

استادانو له خوا شخصي کورسونه هم شته چې زده کوونکي په کې انګرېزي، رياضي او کمپيوټر درسونه په مينه او شوق وايي.

پټه دې نه وي چې د نجونو په لېسه کې د لوړو ټولګيو لپاره مسلکي لايقو او باتجربه استادانو ته اړتيا ده چې اوسمهال په تدريسي چارو کې ستونزې شته. په ناړې کې د هلکانو لپاره ابتداييه ښوونځی په ۱۳۳۷ل کال کې رسمي جوړ شوی دی او په ۱۳۵۵ل کال منځني ښوونځي لېسې ته ارتقا کړې ده او د نجونو د ښوونځي د جوړېدو په برخه کې کليوالو مشرانو په منځ کې يو څه وخت اختلاف پيدا شو ځينو مشرانو د نجونو د ښوونځي د جوړېدلو ممانعت او مخالفت کاوه خو د نجونو ابتدائيه ښوونځی په ۱۳۵۲ل کال د سردارمحمد داود په جمهوري رژيم کې تاسيس شو. د ښځو د ښوونځي په جوړولو کې ملک الحاج رحمت نور ډېرې هلې ځلې کړې دي او په ۱۳۸۱ل کال د ناړې د نجونو منځنی ښوونځی لېسې ته ارتقا وکړه. د دولسم ټولګي څخه په ۱۳۸۹ل کال (۱۲) تنو د فراغت سندونه ترلاسه کړل.

د ناړې په مرکزي کلي کې د هلکانو لپاره د ښوونځيو د تاسيس نه مخکې په ولسي توګه په جومات کې د ديني درسونو او سبقونو پرته د ليک لوست او نورو کتابونو لوستلو او ويلو اساسي پروګرام موجود و، چې د ډېرو لايقو ديني عالمانو له خوا هلکانو ته د تدريس او ليک لوست خط ليکلو (مرزايي) پروګرام په پښتو او

دري ژبه تنظيم او هلکان به منظم بې له غیرحاضرۍ دوامدار ګډون درلود.

د هلکانو لپاره چې په څو ګروپونو وېشل شوي وو پرته د لمانځه يادولو د قران شريف زده کول ترجمه کول پنج ګنج لوستل، د ګلستان او بوستان کتابونو لوستل پښتو او دري ژبو باندې د مشق تمرين او تحريرات کول شامل و.

په کوهستان کې د ناړې مرکزي کلي ولسونو د خپلو اولادونو د علمي کچې د لوړوالي لپاره ګټور کارونه ترسره کړي دي.

هغه ښوونکو چې د ناړې په جامع جومات کې يې هلکانو ته د استادانو په توګه د ښوونې او روزنې کارونه کړي دي دغه لاندې کسان دي:

جندول استاد

عبدالهاشم خان استاد

ملاجان استاد

مشهور پخواني ښوونکي چې ښه رول يې ادا کړی:

کبل خان

شاغاسي

فضل رحمن

نورحميد

دوست محمد خان

عبدلاحد

پیرمحمد

## پخواني سرښوونکي دادي:

مرادخان

بهرام خان

غلام نبي خان

فضل رحمن

نورعظم خان

# په ناړۍ کې جوماتونه

د ناړۍ لرغونی او پخوانی کلی هم په درېو کلیو وېشل شوی یانې په درېو محلاتو کې ولسونه اوسېدل:

۱- لومړی کلی د ناړۍ دوندونو د پل خواته موقعیت درلود لویه کلا وه. پخواني مشران وايي چې دېوالونه يې د ډبرو او لرګو څنې پراخ جوړ شوي وو او درېو خواته ددې کلا د ننوتلو دروازې وې او د سین طرف ته د ننوتلو دروازه نه درلوده خو د ښار او د ترصد لپاره کړکۍ ګانې لرلې.

۲- دویم کلی د منځ کلي په نامه یادېده. دا کلی د شاهي مانۍ لویدیځ خواته پروت و چې اوس هم په دغه ځای کې ډېر کورونه شته



چې د یو لوی ګړنګ له پاسه پروت دی، چې په دغه ځای کې اوس د حاجي صاحب سیدانشاه، حاجي صاحب فضل محمود او حاجي صاحب زین الله خان او حاجي صاحب غلام شاه کورونه دي.

۳- دربیم کلی په دره باب کې موقعیت درلود د لومړي ځل لپاره په ناړېء کې د دره باټ په کلي کې جومات جوړ شوی. دره باټ یو سوچه ګواري کلیمه ده چې دره پورته معنا ورکوي او باټ په ګواري ژبه باندې ته ویل کېږي چې دره باټ معنا (بره بانډه) کېږي. دغه ځای د ناړېء د مرکزي کلي ختیځ خواته پروت دی.

دلته د ګوارو یو پخوانی کلی و او د کلي خواته جومات هم اباد و د پخوانیو خلکو په روایت د نن څخه څو سوه کاله دمخه د اسلام د مبارک دین مخالفینو د ناړېء په برکلي باندې د شپې ناځاپي وسله وال برید وکړ چې په نتیجه کې شپږ تنه مسلمانان په جومات کې شهیدان شول او جومات یې هم شهید کړی و او پخواني کلي یې په اور سوزولي و او د اسلام د دین مخالفین لښکریان په تېښته بریالي شوي وو، د پخواني دره باټ جومات ته به کافرو د لمانځه او عبادت لپاره مسلمانان نه پرېښودل او د غشو ګوزارونه به یې تل کول. اوسنی مرکزي جامع جومات چې په منځ کلي کې موقعیت لري ګواریانو ددغه جومات جوړولو ډېره کېښوده او کار یې پیل کړ دغه جومات د ناړېء د منځ کلي جنوب خواته دی

ددې لپاره چې مسلمانان په اسانه او بې خطره خپل عبادت وکړي دغه جومات دوه متره په ځمکه کې ژور جوړ شو، چې د کافرو د

غشو د ګوزارونو له امله څوک ټپیان نه شي او خپل لمونځونه او اودسونه او سبقونه ډاډه ترسره کړي. کله چې په ۱۳۵۸ل کال د وطن پاکې غېږې ته د شوروي اتحاد یرغلګر پوځونه راننوتل د ناړې کلیوال ولسونه هم د نورو هېوادوالو په شان د جهاد لپاره د هجرت لاره ونیوله او چترال ته لاړل چې په نتیجه کې ټول د کلي ابادي د ځینو خود غرضو کسانو له خوا وسوزېده چې تفصیل یې په دې کتاب کې لوستلای شئ. د ناړې دغه مرکزي او د لرغونو زمانو تاریخي جامع جومات د ولسونو د نه موجودیت له امله ډېر تاوانونه لیدلي دي چې د شورویانو په هوایي بمباریو کې یې هم زیان لیدلی و. ددې جامع جومات غټ او د لرغونو زمانو چینار هم په بمباریو لګېدلی و دري لسیزې جګړو کې دغه تاریخي جومات ښکلا ته ډېر تاوان رسېدلی و. د وطن په غېږه کې لا تنظیمي جګړې رواني وې چې په ۱۳۷۲ل کال د ناړې مرکزي ولسونه خپل کلي او خاورې ته په مینه راستانه شول د ټولو کلیوالو کورونه کنډر کنډر ښکارېدل هر څه وران او ویجاړ شوي وو. د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې په وړاندیز او ابتکار د ناړې د جامع مرکزي جومات د جوړولو لپاره یوه کمیټه جوړه شوه چې ددې کمیټې په لارښوونه او صلاحیت د جومات د ابادۍ کار په نوي ډول سره پیل شو، د نوي جومات د جوړولو کمیټې غړي دادي:

۱- الحاج احمد عثمان اتکل د قاضي محمد زمان زوی د کمیټې د رئیس په توګه.

۲- الحاج مولوي رحیم الله د کمیټې د کار د نظارت مسوول
۳- الحاج ملک محمد طاهر د ملک عبدالظاهر زوی د کمیټې غړی
۴- ملک شمس الدین د ملک محی الدین زوی- غړی
۵- حاجي عبدالمتین د ظفرخان زوی- غړی
۶- محمد ابراهیم د نورمحمد زوی- غړی

دویمه کمېټه د ځوانانو جوړه شوه چې دغه ځوانان د جومات د کار لپاره په داوطلبانه توګه میدان ته راووتل:

۱- الحاج مولوي رحمي الله ددغه جومات ملا امام او خطیب د کمېټې د رئیس په توګه
۲- فضل اکبر د محمد اکبر زوی - غړی
۳- حاجي نورجلال د عبدالحق زوی- غړی
۴- الحاج پاچا د حضرت محمدخان زوی - غړی
۵- الحاج عطاالله د پیرمحمد زوی- غړی
۶- میرنبي د حاجي سلطان محمد زوی- غړی

د یادونې وړ ده چې د جومات د جوړولو د کمېټې مشرانو او ځوانانو د لوی الله(ج) په توکل په تشو لاسونو خو په پخه او ټینګه اراده دغه لوی کار د انجام لپاره په قوي عظم میدان ته راوتلي وو او د خلکو او ولسونو پوره اعتماد او باور و چې نوموړي کسان د هر ډول دروند کار د عهدې څخه په سر لوړې سره وتلی شي، نو په دې ترتیب سره د کمېټو کسانو هم په دیني او اسلامي او افغاني

مینه د جومات په کار کې شپه او ورځ په ځان یوه کړه ستړیا ته یې ستړیا ونه ویله خپل شخصي او کورني کارونو ته یې ارزښت ور نه کړ په ډېره مینه او علاقه مندۍ سره د جومات د کار نه یو ګام په شا نه شول، چې افرین شاباسی په دواړو کمېټو چې په اسلامي او دیني مینه او جذبه د زیار په ګاللو سره یې د جومات په کارونو کې خپله ایمانداري ټولو ولسونو ته ثبوت او ثرګنده کړه. د لوی الله(ج) د درګاه څخه دغه د کمېټو کسانو ته په ټول ژوند کې سرلوړي او اخرت کې ورته د فردوس جنت د نصیب لپاره دعا کوو.

## د ناړۍ د لرکلي جامع جومات:

د لـــر کلـــي جـــامع جومـــات ډېـــره اوس اوس د ظاهرشـــاه د حکومتدارۍ یا پاچاهۍ کې اینبودل شوې وه د لر کلي خلکو نفوس زیات نه و، نو جومات کوچنی جوړ شوی و اوس چې د لر کلي د ولسونو نفوس کې زیاتوالی راغلی ددې کلي د ولسونو د پرېکړې په اساس په همدغه محل کې د نوي او غټ جومات د جوړولو پلان جوړ شوی اوسنی جومات چې کار یې اتیا په سلو کې تکمیل شوی ډېر غټ او عصري او پوخ جوړېږي. دغه جومات به په درېو پوړونو کې ودان وي او د ډېرو کسانو په یو وار د لمانځه کولو لپاره ګنجایش لري ددې جومات د جوړولو په کار کې د لر کلي ولسونو په اسلامي مینه ډېر کارونه سرته رسولي چې نومونه یې دادي:
الحاج ملک رحمت نور، الحاج محمدعثمان ویبش، مولوي ولي رحمن، مامور شېرزمان، الحاج علي احمد، ګل جان او نورو ټولو

کلیوالو چې کار یې اوس هم دوام لري امکان شته په نږدې وخت کې ټول کارونه یې پای ته ورسیږي او د لمونځونو او عبادت لپاره برابر شي. ددې جومات اولین ملا امام د دانګام د مولوي په نامه شهرت درلود، ددې جومات پخوانی ملا امام مولوي ولي الرحمن او اوس قاري محمد نواب دی.

## د فقیر اباد جومات:

دا جومات د نارۍ ولسوالۍ شمال خواته نږدې موقعیت لري، د فقیر اباد اوسېدونکو خلکو په اسلامي مینه په ۱۳۸۷ل کال کې ددې کار پیل کړی او اوس یې د ابادۍ پوخ او اساسي کار د خلاصېدو په حال کې دی. دغه جومات یو غټ اساسي جومات دی چې د ډېرو خلکو د فریضې د ادا کولو ګنجایش په نظر کې نیول شوی دی. دغه جامع جومات د حضرت بلال جامع جومات په نوم یادېږي او مولوي امام یې قاري صاحب رحمت الله نومېږي یو ځوان علمي د ښه اخلاقو لرونکی شخصیت دی.

ددې جومات د جوړولو په کمېټه کې دغه لاندې کسان دي:

۱- الحاج عبدالباقي فضلي

۲-استاد شریف

۳- مفتش سید کریم جان

دغه درې تنو مشرانو د جومات جوړولو کارونو کې د ستاینې وړ خدمتونه ترسره کړي دي.

# په ناړۍ مرکزي کلي کې د ځينو ځايونو نومونه

۱. کانځه دره، د ناړۍ شمال ته
۲. دره باټ
۳. سلام سانکی
۴. شاليکوټ
۵. ګلبوم
۶. برړوجی
۷. اناش
۸. ميربټ د سانين د کور شاو خوا
۹. سون کيځی، زرو کڅ
۱۰. علي دم، د زرو کڅ غرب ته
۱۱. ګردم، زرو کڅ
۱۲. چيناپو، د افضل مېنې شمال ته
۱۳. شګه، د ناړۍ شمال ته
۱۴. دورموډب، د ناړۍ شمال ته
۱۵. کوګټ، خونانو کڅ
۱۶. ټينګه باټ، د ناړۍ لويديځ ته
۱۷. ډل شوی، د مرکزي کلي ختيځ ته
۱۸. جنچر اونځ، د مرکزي کلي ختيځ ته
۱۹. مليکانه، د حاجي صاحب عبدالمتين او سانين کور خوا

۲۰. موټي، دره بات کې
۲۱. ډېره کې، دره بات کې
۲۲. ډانګپور، د ګلبوم جنوب ته
۲۳. ګوبدیش، د خوړ لر سر هدیره
۲۴. پخیته، دره بات غرب ته
۲۵. ماله سیر
۲۶. نامو شهید، د برکڅ شمال ته
۲۷. باجوړی شهید، د ناړې د پل شمال لویدیځ ته
۲۸. زیارتونه
۲۹. دنته
۳۰. انبورګټ، د شالیکوټ کلي لاندې جنوب ته
۳۱. مرخنې شهید، د شالیکوټ کلي لاندې غرب ته
۳۲. سمه تالو، د خوړ لر سر ته

# د ناړې د ځوانانو اصلاحي شورا

ددې کلي با احساسه ځوانانو د زمري د میاشتې په نهمه نېټه د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې په نوښت یوه درنه غونډه جوړه کړه. په دغه درنه او شانداره غونډه کې چې دوه ورځې یې دوام وکړ، په لسګونو ځوانانو برخه لرله.



غونډه د (۱۳۸۸ل) کال د زمري د میاشتې په نهمه نېټه د غرمې نه وروسته د سانین په کور کې جوړه شوه. په دغه غونډه کې د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې مشر محمد نواز حقیقت سانین او انجنیر سفرجان او نورو ښاغلو ته بلنه ورکړل شوې وه.

ددغې غونډې په پیل کې د ښاغلي قاري جاوید له خوا د عظیم الشان قران څو ایتونه تلاوت شول، وروسته محمد نواز حقیقت او مامور شېرزمان ملګري او انجنیر سفرجان خبرې وکړې او د ځوانانو دغه درنه غونډه یې وستایله.

وروسته د غونډې ګډونوالو هر یو په خپل وار سره خبرې وکړې او ددغه غونډې جوړېدل یې په اوسني وخت کې د نازیان په سرحدي ولسوالۍ کې یوه ستره او ارزښتناکه غونډه وبلله.

په غونډه کې په غوڅ اکثریت سره د رایو په اتفاق تائید وشو چې د نازیان د مرکزي کلي د ځوانانو اصلاحي شورا جوړېدل یو ضروري کار دی او ټولو په یوه خوله تائیده کړه چې د ځوانانو اصلاحي شورا د هېواد د خدمت او د ځوانانو د یووالي په منظور تشکیل شي.

وروسته د غونډې د برخه والو په خوښه د ځوانانو د اصلاحي شورا په تشکیلاتو خبرې اترې وشوې او په پوره دقت او غور فضل اکبر ددې شورا د رئیس په توګه او الحاج نور جلال یې د مرستیال په توګه او فضل د دویم مرستیال په توګه د قاطع او غوڅ اکثریت رایو په اساس وټاکل شول.

وروسته د مالي چارو لپاره الحاج شېرعلي خان د مالي چارو د رئیس په توګه او محمدزمان د مرستیال په توګه، همدارنګه قاري وحیدالله د ځوانانو د اصلاحي شورا د منشي په توګه او قاري جاوید د منشي د مرستیال په توګه او حسن ولي د سپورت او د ځوانانو د کمېټې د رئیس په توګه، قاري اسدالله د مرستیال په

توګه د ځوانانو د اکثریت رایو په اساس د خوښۍ او یووالي په فضا کې وټاکل شول.

په غونډه کې پرېکړه وشوه چې د ځوانانو اصلاحي شورا به د خپل پلان په اساس خپلو کارونو ته دوام ورکوي او په ټولنه کې به د نشه يي موادو پر ضد مبارزه کوي او د ځوانانو د يووالي او کوچنیانو د ښوونې او روزنې په برخه کې به پوره ونډه واخلي.

د ځوانانو اصلاحي شورا حق او صلاحیت لري چې د کلیوالو او ټولنیزو ګټو د ساتلو لپاره به نه ستړي کېدونکې هلې ځلې کوي.

همدا راز پرېکړه وشوه چې د ځوانانو اصلاحي شورا به په میاشت کې یو ځل غونډه کوي او د ضرورت په وخت کې اضطراري او عاجله غونډه هم کولی شي. د ځوانانو اصلاحي شورا مکلفیت لري چې د خپلو ديني عالمانو او مشرانو سپین ږیرو په مشوره او لارښوونه خپل کارونه تنظیم کړي او د ناوړه کارونو د پېښېدو مخنیوی وکړي او د قومونو، ولسونو د یووالي او پیوستون په لاره کې په دوامداره ډول هلې ځلې وکړي.

دغه درنه غونډه چې د زمري د میاشتې په نهمه نېټه پیل شوې وه، دوه ورځې يې پرله پسې دوام وکړ. د ځوانانو د اصلاحي شورا مشرانو ته دنده وسپارل شوه چې ټول ځوانان جلب او جذب او د نېکو کارونو د سرته رسولو لپاره تنظیم او منظم کړي.

ددغې درنې غونډې په پای کې یو ځل بیا تاکید وشو چې ځوانان باید ددغې اصلاحي شورا غړيتوب ته وهڅول شي او په کلي او

منطقه کې باید ګټور د ټولو ولسونو او قومونو د پیوستون لپاره خپلو هلو ځلو ته دوام ورکړي او د حکومتي ادارو او موسساتو سره په منطقه کې د سولې او امن لپاره عملي ګامونه پورته کړي غونډه د قاري اسدالله په دعا سره پای ته ورسېده.

۹-۵-۱۳۸۷ل

# په ګواریانو کې د ټاکنو سیالۍ

په دې کې شک نه شته چې زموږ هېواد د ربو لسیزو په دوره کې کنډې کپر شو، کلي کوروته، ښارونه کنډر کنډر شو، شنه چمنونه او رنګینه غرونه، باغونه په زهرجنو باروتو سوزېدلي، ددې خاورې قیمتي شتمني څه د جګړو په لمبو وسوزېده او لا سوزېږي او څه بهرنیو داړه مارانو چور کړه. د ګاونډي هېوادونو او د منطقې ارتجاعي سازمانونو او نړیوالو قدرتونو زموږ په خاوره کې په ښکاره د ځان په ګټه لاسوهنې وکړې او کوي یې او زموږ ولسونه یې په ویر، ماتمونو، غمونو، دردونو او رنګ په رنګ جنجالونو سره مخامخ کړي. زموږ د ېرې هېوادوال په دې لوبه نه پوهېږي چې دا لوی فیستیوال چا شروع کړی او کله به خلاص شي؟

زموږ په هېواد کې تراوسه پورې د حکومتدارۍ سیستم جوړ نه دی او زورواکي لا په زور کې ده، تاکنې هغه وخت د قبول وړ دي چې په ټولنه او دولت کې قانون حاکم وي او واکمن وي او د ولسونو حقونه خوندي وي. اقتصادي پیاوړتیا په کې لوړو پوړیو ته رسېدلې وي هالته د ژوند لومړنۍ اړتیاوې لکه روغتیا، تعلیم او کار د هرچا لپاره موجود وي د واک په سر په ټوپک تکیه نه، بلکې د خلکو د رایو څخه ګټه اخیستل کېږي.

زموږ په هېواد کې خو د افسوس خبره ده چې دولتي اداري تش په نوم دي او د واک په خاطر ورځ په ورځ جګړې تودېږي. هره ورځ د

کونډو او رنډو لښکرې زیاتیږي، د موسکا او خندا ځای ژړا نیولی او د علم ځای جهالت نیولی دی، نو محصول یې په ټولنه کې فساد، غلا، رشوت او نورې بدمرغۍ دي. نن افغان ولس ته دا فرصت برابر شي چې د ولسوالۍ شوراګانو ته خپل استازي واستوي او خپله په خپل زعامت شورا وټاکي، تر څو ولایتي شوراګانې او پارلمان په خپله خوښه جوړ کړي او د ولسواکۍ په برکت او اصولو نظام جوړ کړي. د افسوس خبره ده چې په افغانستان کې لا تراوسه ولسواکي نه شته او د نطفې په حالت کې ده او ډېر خلک د ولسواکۍ د سم تعریف او ارزښت څخه صحیح تعبیر نه شي کولای.

په نن سبا کې زموږ په هېواد کې ډېرې ستونزې شته چې حلول یې اسان کار نه دی. د یوې خوا ځنې د اوسني دولت مخالفین زور وهي او له بلې خوا اوسني چارواکي هم زور کوي چې تل په قدرت کې پاتې شي، ځکه چې دولت او حکومت کې کار اهل کار ته نه دی سپارل شوی، د وزیرانو څخه بیا تر عادي مامور پورې زما په ګومان په سلو کې ۸۵ د شخصي اړیکو، قومي او سیاسي انډیوالیو په اساس ټاکل شوي او ځینې خو لا د پردیو ګوډاګیان او جاسوسان دي. په دغسې حالاتو کې د ټاکنو مسایل ډېرې ستونزې لري.

په ۱۳۸۸ل کال کې د ګواریانو د قام نه ولایتي شورا ته هر یو حاجي عاشق الله جان، استاد شکور، قاضي عبدالرحمن، حاجي بیت الله او حنان چې جمله پنځه تنه او پر (۱۳۸۴ل) کال حاجي قادر

د نشه ګام، مامور شېرزمان د نارۍ حنان د مچمنۍ، حاجي شکور د دوکلام چې جمله څلور تنه د ولايتي شورا لپاره ځانونه نوماند کړي وو.

د قام او د ولسونو له خوا ګډه پرېکړه د کوم نوماند په هکله نه وه شوې او نوماندو کسانو هم په خپلو کې په ګډه مشوره نه وه کړې، ټول يو د بل پر ضد ولاړ شوي وو او هر کانديد لاڧې کول چې زه ډېر محبوبيت لرم، ډېره رايه لرم د کاميابۍ چانس ډېر لرم، چې په نتيجه کې په دغه (۹) تنو نوماندو ګوارو (کوهستانو) کې يو هم د کاميابۍ لاره ونه موندله، چې په دې ناکامه او خودسره عمل سره ټول پرېشان شو.

په ۱۳۸۹ ل کال د سنبلې په ۲۷ نېټه زموږ په هېواد کې د پارلمان لپاره ټاکنې وشوې چې د ګوارو قام نه ډاکتر سانين ځان د قام په خوښه او اتفاق سره نوماند کړی و، خو کله چې د ازمون يا د ټاکنو وخت راورسېد ګوار قام چې مخکې يې ترخه تجربه ليدلې وه يو شمېر کسانو د قام او د سيمې ابرو او عزت ته ونه کتل او د زورواکو په خوښه يا د پيسو يا د دروغو بې ځايه وعدو په اساس خپل ورور ته رايه ور نه کړه او په ناچيزو پيسو او د امتيازاتو په وعدو سره خرڅ شوي وو. زموږ د هېواد ټولو قومونو او ولسونو ته څرګنده شوې چې ۱۳۸۹ل کال ټولټاکنې د ولسونو په سترګو کې خاورې اچول و پرته د زورواکو د لاس وهنو او زور ځنې دولتي چارواکو هم د خپلو نامستحق کسانو چې په فساد او چور اخته و او

اخته دي دولتي چارواکي هم په پيسو او د خپلو څوکيو د ساتلو لپاره بې غرضه پاتې نه شول په ډېره بې شرمۍ سره يې چې څه له لاسه کېدل وکړل چې داسې لوبه په ټول هېواد کې ترسره شوه، نو ځکه دغه ټولټاکنې افغان دردېدلو او ځورېدلو ولسونو ته د قناعت وړ نه دي.

د هر مليت او قام لپاره د هرې سيمې ولسونو لپاره لازمي خبره ده چې د ولايتي شورا او د پارلمان لپاره په خپله خوښه چې ښه لياقت او اهليت ولري د ولسونو او قومونو په دردونو اګاه وي ښه مسلمان وي، متقي وي، چاته يې ضرر نه وي رسولی، په دردونو او غميزو باندې باخبر وي، د چا حق او حقوق يې نه وي پايمال کړي، چاته يې زره ضرر نه وي رسولی، جنايي دوسيه او جرم ونه لري، قاتل نه وي او نه د قاتلانو سره په جرم کې شريک وي، وطنپرست وي، د ولسونو سره مينه ولري، پاک وجدان ولري، حق ته حق او باطل ته باطل ووايي، د تور او سپين توپير وکړي او د ټولو نه بهتره داده چې په ايمانداری سره په جرئت سره د خپلو ولسونو د حقوقو غوښتنه وکړای شي. که دارنګه نوماند ته هر قام او ولسونو رايه ورکړي هغه قومونه او هغه ولسونه د لوی الله(ج) په پر وړاندې سرلوړي دي او مسووليت نه لري او که چېرته رايه د پيسو په بدل يا د پرديو خرڅ شوي ګوډاګيانو ته د زورواکو او دولتي چارواکو په فرمايش استعماله کړي د لوی الله(ج) پر وړاندې مجرم او مسوول ګڼل کېږي او که چېرته مستحق کسانو ته رايه استعمال شي نو په

ربښتیا سره رایه اچونکي خپله انساني فریضه ادا کړه، وطن او د وطن ولسونو او د لوی الله(ج) درګاه ته مجرم او مسوول نه ګڼل کېږي.

ګواریان ورونه باید راتلونکي وختونو ته خپل تاریخي مسوولیت ته په جدي ډول پاملرنه وکړي او د قام او د ولس او د وطن حق حقدار ته وسپاري.

د هېواد ټولو ولسونو ته ګواریانو لپاره حق دی، چې په داسې ارزښتناکه مسایلو کې د زورواکو بهرنیو او پردیو ګوډاګیانو پیسو ته لاس ونه نیسي او د هغو د دروازو ملنګان نه شي. الله تعالی په خپل اسماني کتاب قران شریف کې فرمایلي دي: کوم قام او ولس چې ونه غواړي خپل ژوندون کې بدلون راولي زه هم نه غواړم چې د هغو په ژوندون کې بدلون راولم. اوس چې عصري (۲۱)مه پېړۍ روانه ده انسان او خصوصاً مسلمان لپاره لازمه ده چې په ژور فکر په روښانه احساس حرکت وکړي.

ولایتي شوراګانو او پارلمان ته ویښ، بااحساسه انسانان معرفي شي، هغه څوک چې تعلیم او ولسي د کار تجربه ونه لري ښه اخلاق او نېک صفات ونه لري پارلمان ته په تګ سره قام او ولسونو ته د خدمت جوګه نه شي جوړېدی. پارلمان د کونډو، رنډو، یتیمانو، بوډاګانو او ناروغانو د استراحت ځای نه دی، اوس چې زموږ په هېواد کې یرغلګرو لاس وهنې دوام لري د جګړو اورونه په هره خوا کې ښکارېږي او د وطن ولسونه په کې سوزېږي نړیوال پوځونه په

ولایتونو کې مرکز کې پوځي عملیاتو باندې لګیا دي، پارلمان ته چې د قانون د جوړولو یو لوی مقام ته څوک د افغان ولس په استازیتوب هالته ولېږو، هغه څوک باید ولېږو چې ملي او نړیوالو مسایلو باندې پوهېږي او د افغان ولس دردونه او په هېواد کې د امن سولې او پرمختګ لارې او ګودرې او چارې ورته څرګندې وي چې دا ټول کارونه په پټو سترګو او خوبونو باندې نه کېږي، یو تن چې علم او پوهه ونه لري هغه د ښوونکي په توګه په ښوونځي کې شاګردانو ته د ښوونې او روزنې زره کار نه شي کولی، پارلمان د افغان ولسونو د لایقو، باوجدانو او پوهو با اراده او د وطنپرستو انسانانو مقام دی، یو شمېر خودخواه جاهل او نالوستي شته تحلیل نه لري او د هېواد روان حالاتو ته په پام نه کوي د پیسو او د معاش لپاره او د شخصي امتیازاتو لپاره د پیسو په زور او یا په غوړه مالۍ سره چې د زور او قدرت او فساد کوونکو سره ګډ دي د پارلمان په څوکیو کې د کېناستلو په شوق ځانونو ته د پارلمان لاره لټوي چې دارنګه کسان نه شرم لري نه حیا لري او نه هم د افغان ولسونو دردونو ته شفا کېدلی شي.

د (۱۳۸۸ل) کال د پارلمان ټاکنو کې د دوکلام، بریکوټ، ناړې او ساو یو شمېر کسانو ځانونه د پیسو په بدل کې خرڅ کړي و، چې دا عمل د وطن او د ولسونو سره یوه لویه جفا او ګناه ده او د مسلمان لپاره په کار نه ده چې په پیسو ځان خرڅ کړي او خپل ولس لیلام کړي؟

# په ګواریانو کې دیني او اسلامي روحیه

د لوی الله(ج) زیات فضل او کرم دی چې خپل بنده ته یې د قیمتي او نا اشنا معلوماتو د دراغونډولو توفیق ورکړی ډېر عالمان پوهان او محققان او ژورنالستان، لیکوال د نادر او نا اشنا څېړنو او معلوماتو د لاسته راوړلو مینه او شوق لري او دا کوښښ کوي چې د خپلو معلوماتو یو رساله او یا تاریخ په خپلو ولسونو ته خپل هېواد ته وړاندې کړي.

تراوسه پورې د کوهستاني قام او ملیت په برخه کې چې ددې قام ریښې اصلي اریایي نژاد ته رسېږي کوم تاریخ، رساله په ځانګړې توګه نه ده لیکل شوې. دا یو تاریخي ضرورت او اړتیا ده چې د هېواد د ادبیاتو او کلتور بڼ کې ددې کوهستاني قام په هکله ډېر څه ولیکل شي او د هېوادوالو د پوره خبرتیا لپاره چې ادبي او فرهنګي تنده یې ماته شي په تېر تاریخ او اوسني حالات د سترګو لیدلي موضوعات ولیکل شي تر څو د دغو اسنادو څنې نور څېړونکي کار واخلي په دې کتاب کې چې لومړی کوهستاني (ګواري) اثر ګڼل کېږي زه کوښښ کوم چې په بېلابېلو موضوعاتو باندې رڼا واچوم.

د لوی الله(ج) پېژندنه تر ټولو ستر او لوړ کار او هغه اساس او بنسټ دی چې د انسان ټول معنوي ژوند د هغه په اساس ټینګښت

مومي. نور مسايل لکه د پيغمبرانو پېژندنه او د هغوی رسالت ته د بشر اړتيا او د پيغمبرانو ځانګړتياوې لکه د هغوی عصمت، معجزه، ولايت کرامت، د پيغمبرانو مسووليتونه او اسماني کتابونه دا ټول له هغه بنسټيز اصل يعنې د الله پاک له پېژندنې څخه سرچينه نيسي د غيبي نړۍ پېژندنه، لکه د پرښتو، پيريانو، روح او د نبوي ژوند د مسير پېژندګلوي د برزخي ژوند او د قيامت په اړه مسايل، د مړو بيا ژوندي کېدل، مکافات او مجازات، جنت او دوزخ، حساب او کتاب ټول د الله پاک پېژندنې فروغ شاخونه دي. د الله(ج) پېژندنې وسايل په دوه ډوله دي:

- د الله(ج) په مخلوقاتو کې د تدبر او انديښنې له لارې
- د الله(ج) د اسماوو او صفاتو د پوهې له لارې

انسان له يوې خوا د خپل عقل په وسيله او له بلې خوا د الهي اسماوو او صفاتو په وسيله کولی شي خپل رب وپېژني او د هغه په لوري هدايت ومومي. د الله پاک پېژندنه په عقل سره کېږي، د بدن هر غړی دنده لري خو د عقل دنده او مسووليت فکر، تدبر او انديښنه ده. کله چې عقل له انديښنې او فکر څخه پاتې شي او خپله دنده سرته ونه رسوي ټولنه د فنا او نېستۍ کندې ته غورځول کېږي. په داسې حال کې چې اسلام له عقل څخه غواړي تر څو د قيد و بند، غفلت او ناپوهۍ له زولنو څخه خلاص کړای شي او د خپلې اصلي دندې او مسوليت څخه چې تدبر او فکر دی خپلې اوږې خالي نه کړي او دغه واقعي عبادت وبولي په لنډ ډول بايد ووايم ښه ولسونه

هغه عقلمند دي چې د الله(ج) د دین مینان دي، د اسلام د مبارک دین لپاره یې ډېره قرباني ورکړې ده ټول سوچه سني مسلمانان دي او په خپله اسلامي لاره باندې ویاړ کوي خپل د ژوند ټول مسایل د اسلام د مبین دین په رڼا کې حلوي.

ګواریان ډېر زیات دیني عالمان لري او د دیني عالمانو ډېر درناوی کوي او خپل اولادونو ته په دیني او اسلامي روزنه کې ډېره پاملرنه کوي. د ګواریانو په هر کور او هر چم کې نارینه او ښځو ته دیني لارښوونې کېږي او په دې قام کې ډېرې ښځې شته چې په کورونو او کلیو کې ښځو ته د قران شریف او نورو اسلامي کتابونو سبقونه او تدریس کوي. په هر کلي کې د ماشومانو او کوچنیانو لپاره د دیني او اسلامي ښوونو لپاره ځانګړي پروګرامونه شته. په ګواریانو کې ډېر زیات د قران شریف قاریان (حافظان) شته چې د ولسونو له خوا ورته پوره درناوی کېږي، چې ګواریان ورته قراني بلبلان هم وایي. د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنې له خوا په ۱۳۸۸ل کال کې د قران شریف حافظانو ته یوه درنه اسلامي غونډه جوړه کړې وه چې مقصد یې د قاریانو او حافظانو تشویق او د نورو تنکیو ځوانانو تشویق لپاره چې په دې لاره کې وهڅول شي ډېرو درنو او لایقو قاریانو ته ښه ښه سوغاتونه او تقدیر نامې ورکړ شوې او د ګواریانو دیني عالمانو پرته د منطقې دیني عالمانو ته هم بلنه ورکړ شوې وه. دا درنه غونډه یو تاریخي او بې ساري لویه دیني غونډه وه چې د دوه سوه قاریانو ځنې زیاتو په کې برخه اخیستې وه.

په دغه لویه او درنه دیني غونډه کې مولوي ولي الرحمن او مولوي رحیم الله او یو شمیر نورو دیني عالمانو برخه اخیستې وه. په دې قام کې دیني او اسلامي روحیه ډېره پیاوړې ده او د اسلام په لاره



مولوي صاحب رحیم الله

مولوي صاحب ولی الرحمن

کې لوی واړه هر ډول سرښندونو ته په مینه چمتو دي.

ګواریانو په خپلو منطقو او محلاتو کې ډېره په مینه ښایسته جوماتونه او مدرسې لري او په دغه مسایلو کې د هر ډول مالي لګښتونو په برخه کې ښه رول ادا کوي.

هغه دیني عالمان او د قران شریف حافظان چې په اوسنیو وختونو کې په ولسونو او منطقه کې ښه نوم او محبوبیت لري او په

خپلو ديني او اسلامي کارونو کې په مينه بوخت دي او نورو ته
لاربښوونه او سبقونه ورکوي، دادي:
الحاج مولوي ولي الرحمن
الحاج مولوي رحيم الله
مولوي سيدنبي
مولوي محمدنواب
مولوي ملازاده
مولوي رحمت غني
قاري غياث د مولوي محی الدين زوی
مولوي اسلام نور بن حضرت الله خان
مولوي پاچا د ملک محمد حضرت زوی
مولوي صاحب لطف الله
مولوي اميد مولی بن فضل مولا
مولوي شهاب الدين
قاري فضل مالک
قاري محمد داود
قاري عبدالرحمن
قاري عبدالله
قاري محمدابراهيم
قاري واحيدالله
قاري رحمت الله

قاري عبدالمالک د حاجي محمداکبر زوی
قاري حافظ الله
قاري محمد طاهر
قاري نقیب الله
قاري خان ولي
قاري جاوید د زیارت ګل زوی
قاري شفیع الله د محمد نواز زوی
قاري اصلاح الدین د نورمحمد خان زوی
قاري اسرارالدین د حیاوالدین زوی
قاري عبدالله
قاري فضل متین
قاري نصرت الله
قاري ډاکتر نقیب الله
قاري ذبیح الله
قاري شاکرالله
قاري شېرزمان
قاري مطهر
قاري یحیی
قاري ذکریا
قاري سعیدالله
قاري یوسف

قاري حبيب الله

قاري عنايت الله

قاري اسماعيل

قاري حقاني

قاري اکرام الله

قاري فضل وهاب

قاري دادالله

قاري سبحان الله د حاجي فضل محمود زوی

قاري، صفی الله

قاري شاکرالله

قاري غلام رباني

نور ډېر ديني عالمان او قاريان هم شته چې نومونه يې زما څنې پاتې شو خو په ځوانانو ديني عالمانو او قاريانو کې مولوي اميد مولا او قاري رحمت غني، قاري فضل مالک او خصوصاً مولوي قاري محمد نواب چې پنځه تنه ځوان او تنکي زامن يې د قران شريف لايق حافظان ګڼل کېږي.

په ۱۳۸۸ل کال د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې په نوښت چې ديني او اسلامي لويه او درنه غونډه جوړه شوې وه د ديني عالمانو له خوا قاري محمد نواب ته لومړۍ درجه جايزه ورکړه شوې وه دا ځکه چې په خپله ديني، هوښيار عالم او پنځه زامن يې قراني بلبلان دي. په ټولو ذکر شويو ديني عالمانو او قاريانو باندې

او په هغه ورونو چې نومونه يې د قلم د څوکې پاتې شوي د ژوند په ټولو چارو کې ورته د لوی الله(ج) له درګاه څخه بريياليتوبونه غواړو او د دين او اسلام په رڼا لاره کې دوی ته د ښه خدمتونو توفيق غواړو.

يادونه: مولوي سيد نبي چې د ساو د کلي اوسېدونکی دی او لوړ ديني تعليمات لري د مهاجرت په وختونو کې په چترال کې ژوند کاوه، نوموړی د ګوارو ځوانانو سره چې زيات يې د دروش په ګله ټاک کيمپ کې اوسېدل ډېر زيات او د يادولو وړ کارونه ترسره کړي، ماشومانو او تنکي ځوانان يې ډله ډله په ديني اسلامي طريقه روزلي دي او ډېر کوهستاني ځوانان يې په پوره پاملرنې سره پر ديني او اسلامي زده کړو سمبال کړي.

زيات شاګردان يې اوس پوره ديني عالمانو په کتار کې ولاړ دي مولوي صاحب سيدنبي د قران شريف په ترجمه او تفسير کې ډېر ښه پوهېږي او ولسونو ته په ښه او منظم ميتود سره سبق ورکوي. شاګردان درسي موضوع ته ډېر ښه جلبوي او دده درسي ميتود او نورو ته د درس د ښودلو اويادولو لپاره د ښو طريقو څخه کار اخلي. د خلکو په وينا د جومات د لوډسفيکر د اواز په ذريعه دده اسلامي درسونو ته په کورونو کې نجونو او ښځو هم په منظم ډول تعقيبول او دده په هاند او زيار ډېرې نجونې او ښځې د قران شريف تلاوت، ترجمه او نور ديني سبقونو ځنې ګټه اخيستنه. د نوموړي په کار او

كوښښ ټول ولسونه وياړ كوي او ده ته ديو ديني متقي انسان په سترګه ګوري او زيات درناوی ورته كوي.

# د کوهستان مشرانو تګ
# دیر کوهستان ته

په ۱۹۱۹ د اګست د میاشتې په اوومه نېټه چې زمونږ ۱۳۷۸ ل کال د اسد میاشتې سره برابره ده د خیبر پښتونخوا د دیر د کوهستان د مشرانو په بلنه چې افغان کوهستاني مشرانو ته دعوت ورکړی و چې افغان کوهستاني مشران د ملاقات خبرو اترو لپاره زمونږ سیمې او منطقې ته تشریف راوړي.

دلته د کوهستان مشرانو په مشورې سره دغه لاندې مشران د دیر کوهستان د منطقې د کوهستان د مشرانو د ملاقات او دیدار لپاره ونومول شول:

ډګروال حبیب الرحیم فضل- ناړی

قوماندان سیدنبي – ناړی

ډاکتر سانین- ناړی

حاجي اکرم خان- دوکلام

مرحوم حاجي صاحب سیدامین خان – دوکلام

حاجي قادر – دوکلام

چرمین سید اکبر- ارنوي

مرحوم چرمین عبدل- ارنوي

ګل سمېر- ارنوي

ډاکتر سیداکبر- ارنوي

غلام خان- ارنوي
ملک شېرزمین- بریکوټ
حاجي ملک جان- درام

چې د ټولو شمېر (۱۸) تنو ته رسېده شپه مو په ارنوي کې د چرمین سید اکبر په کور کې وکړه ډېر قدر یې وکړو، سهار چای راته مرحوم حاجي صاحب عبدل چرمین راکړ او د موټرو په ذریعه د دیر کوهستان په لور سفر شروع شو د غرمې نه مخکې میرکنډې ته ورسېدو د غرمې ډوډۍ مو د لوړي ټاپ شمال ته زیات هوټل کې وخوړه او دیر ته مو حرکت وکړ.

موږ چې دیر ښار ته ورسېدو زموږ د استقبال او جوړ په خیر لپاره یو شمېر کوهستاني ورونه په لاره باندې زموږ راتګ ته په تلوار او انتظار کې وو د هغو سره مخامخ شو. زموږ لپاره په دیر کې د امان الله خان هوټل کې د ناستې او خبرو محل غوره شوی و، امان الله خان د دیر کوهستان یو مشهور او سیاستمدار سپین ږیری دی سیاسي او اجتماعي شخصیت دی او ډېر وخت د خیبر پښتونخوا کې وزیر پاتې شوی دی.

په هر صورت د دیر هوټل کې د چایو او د ناستې پروګرام ترتیب شوی و لنډه دمه مو وکړه د راغلو خلکو سره مو خبرې اترې او لیدل وشو، ټول خلک زموږ په راتګ ډېر زیات خوښ ښکارېدل د څو تنو مشرانو کورونو ته ورغلو او شپه مو په دیر کې تېره شوه.

په دیر کې یو تن کوهستانی مشر د امرشاهین په نوم زموږ د مېلمنو ډېر استقبال وکړ او موږ ته یې وویل چې تاسو خپل کور او خاوره کې ګرځئ دا موږ ته د ویاړ خبره ده. د افغانستان په وخت د سهار نهه نیمې بجې وې چې په دیر کې د کوهستان تنظیم عمومي جلسه زموږ په ویاړ او استقبال په منظور جوړه شوې وه.

ددې جلسې صدارت په ډېر احترام حاجي سیداکبر چرمین ته حواله شو په دغه درنه او تاریخي غونډه کې د قران شریف د تلاوت نه وروسته څو تنو د کوهستان مشرانو د کوهستان د تنظیم د جوړېدلو په تاریخي اړتیا رڼا واچوله، وروسته یو تن د پاتراک مشر ډېرې په زړه پورې خبرې وکړې او د کوهستان قام په لرغونتوب یې رڼا واچوله او په خبرو کې یې وویل چې ددې تنظیم د بري لپاره یو قوي دیسپلین او پوره پیوستون ته اړتیا ده چې موږ خپل حقوق وساتو او د خپلې خاورې او د خپلو اسلامي او روا حقونو ننګه او ساتنه وکړو.

وروسته د بریکوټ ملک شېرزمین خان په دغه لویه تاریخي غونډه کې د افغان کوهستاني قام په نمایندګۍ خبرې وکړې او د افغان کوهستاني قام په هکله یې د غونډې ګډونوالو ته په اوسنیو حالاتو او ژوند باندې پوره معلومات وړاندې کړل چې په چکچکو سره د نوموړي خبرې بدرګه کړل. وروسته ډاکتر سانین خبرې وکړې او څو تنو خپل خواږه شعرونه ولوستل دغه تاریخي غونډه دوه بجې د غرمې نه وروسته پای ته ورسېده او د دیر کوهستان د مشرانو په

دعوت او بلنه افغان کوهستاني مشرانو د دیر د مرکز ځنې د کوهستان په لور حرکت وکړ د غرمې ډوډۍ مو په دیر کې وخوړه چې ټول د غونډې ګډونوالو برخه لرله او د غرمې لمونځ افغان کوهستاني مشرانو په خوږ او بو کې ادا کړل او د کوهستان په دره باندې د موټرو کاروان برابر شو. ځای په ځای د سړک په سر د کوهستان مشران او ځوانان راوتلي و او د افغان کوهستاني مشرانو په درنښت د راتلو هرکلی کاوه چې په دې تاریخي سفر کې د کوهستان درې ښېلابېلو سیمو ته لاړو، خبرې مو وکړې غونډې به زموږ په ویاړ جوړېدې او مشرانو او ځوانانو به په ډېره مینه ګډون درلود.

هغه ځایونو کلیو او محلاتو ته چې موږ لاړو په لنډ ډول اشاره کوو:

## پاتراک (Patrak):

د دیر په کوهستان کې د یو لوی او ښکلي شین کلي نوم دی. دا یو عجیب موقعیت لري او هغه دا چې دلته دوه روان سیندونه یوځای شوي دي چې یو یې د ګوالدي سین او بل د کوهستان سین په نوم یادېږي چې لمر خاته خواته بهېږي.

تاریخي او ښکلی ځای د پاتراک جامعه جومات دی چې د دواړو سیندونو په منځ کې په یوه لوړه ساحه کې موقعیت لري او ډېر په عصري توګه جوړ شوی چې هر طرف ته یې ښکلي کورونه او ولسونه پراته دي.

ددې کلي خلک په خټه سوچه کوهستاني دي او د يوه نيکه اولاده ده چې په لاندې نومونو يادېږي:

۱- رام کور
۲- راج کور
۳- جی کوړ
۴- محمد کوړ
۵- بلوري

اوسني مشران يې:

۱- اشرف خان
۲- شرف الدين
۳- حاجي محمد عيسی
۴- رسول خان
۵- ملک محمد رضا خان
۶- ګل محمد خان

په پاتراک کې د نجونو او هلکانو لپاره بېلابېلو ښوونځي شته او پوره زراعتي ځمکې لري د ژمي په کې هوا سړه او د دوبي ښه سړه هوا ده خلک يې باحوصله، نرم او په انساني سلوک سمبال دي.

په خپله کوهستاني ژبه خبرې کوي او مشران يې په پښتو ژبې رواني خبرې کوي.

## بيار (Byir):

بیاړ د کوهستان د سین په غاړه ښکلی، سمسوره او ودان کلی دی. په دې کلي کې هم سوچه کوهستاني ولسونه اوسي. دغه خلک ډېر زیرک او مېلمه پال دي. شاوخوا ته يې هسک او شنه غرونه ولاړ دي، دغه لاندې کوهستاني قومونه په کې لکه یوه کورنۍ په اتفاق ژوند کوي:

۱- دومور

۲- ملاخېل

۳- گینور

۴- سندروجي

د نجونو او هلکانو لپاره ښوونځي په کې شته، ډېرې زراعتي ځمکې لري او په کوهستاني ژبه خبرې کوي، په پښتو ژبه هم خبرې کولای شي.

اوسني مشران يې دادي:

۱- ملک سلطان

۲- ملک گل زرین

۳- سید محمد خان

۴- غلام رسول خان

۵- گل رنګ شاه

۶- امین الله

۷- ماسټر فضل الرحمن

۸- ملک حضرت محمد

۹- عمر فقیر

دغه ولسونه هم د نورو په شان زیرک، چابک او ایماندار او د نېکو او ښو اخلاقو خاوندان دي په سیمه کې ښه نوم لرونکي ولسونه دي.

## ککوت (Kakote):

د کوهستان د سین لویدیځ خواته یو سمسور او زرغون کلی دی چې ښکلي او هسک غرونه یې شاوخواته ښکارېږي. دا د کوهستان یو مرکزی کلی دی، ډېر نفوس لري او حکومتي اداره (تحصیل کوهستان) دلته دی، دلته د نجونو او هلکانو لپاره ښوونځې شته. اوسني ځوانان اکثریت ښه تعلیمات لري ددې ځای ولسونه هم کوهستاني دي او په خپله ژبه خبرې کوي، خو نارینه یې په پښتو ژبه هم پوهېږي.

## بریکوټ (Bari kote):

د کوهستان د سین ختیځ خواته یو شین او سمسور اباد کلی دی. ډېر نفوس لري او خلک یې ټول په ختهٔ کوهستاني دیي. د بریکوټ خلکو ته ددې سیمې خلک د (بیر) اولادونه وایي چې دا پخوا وختونو کې یو لوی ایماندار او بادرده شخصیت تېر شوی.

د بیر ډېر اولادونه وو چې لاندې ډول سره یې قومونه درپېژنو:

۱- جینور

۲- نبیور

۳- همدی ور

۴- درویز ور
چې په پورته ډول سره په څلورو لویو کورنیو وېشل شوي دي.

## جندري خوړ (Jandri khwar):

دغه یوه ښکې دره ده ښکلې او زړه راښکونکې منظرې لري، خلک یې کوهستاني دي او په کوهستاني ژبه خبرې کوي. په دغه کې یو کلی دی چې د پټ بند په نامه شهرت لري.

## لاموټي (Lamuti):

دغه کلی هم یو سمسور او شین کلی دی چې ولسونه یې په کوهستاني ژبه خبرې کوي او د لیدلو وړ محلات لري.

## تل (Tal):

دغه د کوهستان یو تاریخي لرغونی کلی دی په زړه پورې او زړه راښکونکې منظرې لري دغه سمسوره او شین کلی د کوهستان سین په دوو برخو وېشلی او په منځ کې د کوهستان سین روان دی.

دا کلی ډېر نفوس لري او د کوهستان ولسونه په کې اوسي ددې کلي شاوخوا د لیدلو او کتلو وړ رنګینه سردرې شته چې هره سردره یې رنګینې منظرې لري په ژمي کې په سپینو واورو پټ دي خو د دوبي په موسم کې بې سارې ښکلی محل دی.

لاندې درې قومونه دلته ژوند کوي:

۱- دری خېلي
۲- سیلور

۳- میرور

چې دغه خلک بیا په ۱۷ لویو کورنیو وېشل شوي دي.

د ټول ولسونه نرم، باخلاقه، پاک نیته، مېلمه پال، صادق او ایماندار او زیرک خلک دي. دا خلک ډېر دیندار او متقي او نېک خویه خلک دي.

د ټل جامع جومات د لرغونو زمانو راهیسې یوه تاریخي ودانۍ ده چې زما په فکر او اند ددې جامع جومات ساری په ټوله نړۍ کې نه شته او د جامع جومات په یوه خاصه نقشه او فکر سره جوړ شوی دی. ددې جومات د ابادۍ او هنر ویاړ د ټولو کوهستانو او خصوصاً د ټل د ولسونو لپاره د ویاړ خبره ده.

دغه تاریخي او د لرغونو زمانو جومات که څه هم ډېره اوږده سابقه لري خو ددې سیمې او کلي خلک وایي چې ۱۹۵۳ م کال دغه جومات د اور لګېدو له امله لږ سوزېدلی و دوباره ترمیم شوی دی.

دغه تاریخي جومات په کال ۱۹۹۵م کې یو ځل بیا په اساسي توګه ترمیم شوی دی. په دې جومات کې د اندازې زیات او د پېړ (ډبل) لرګي استعمال شوی دي، په خاص هنر سره چې هر لیدونکی خپل هنري کار ته حیرانوي.

د جومات ستنې او د ستنو له پاسه اوږده لرګي چې په دې جومات کې کارول شوي دي حیرانونکې خبره ده چې دا لرګي د کوم ځای او د کوم ځنګل څخه او څنګه راوړي دي. د جومات د ستنو

طول او عرض دومره زيات دی چې څو تنه په منځ کښناستلی او ودرېدلی شي.

## کليمه شريفه:

د تل د جومات د دېوال شمال خواته يوه قلمي کليمه ښکاري چې دغه کليمه قلمي ليکل شوې ده او کله چې ددې کليمې په چوکاټ د چا سترګې ولګېږي ځانته يې کش کوي، ځکه دغه قلمي او په ګوتو ليکل شوې کليمه په يو خاص ډول سره ليکل شوې چې ما يې تراوسه سارى نه دی ليدلی او نه به څوک داسې کليمه په قلم او ګوتو وليکي؟

ددې کليمې شريفې ليکونکی يو تن انګرېز دی. کله چې انګرېز د کوهستان خاورې ته راغلی په تل کې يې شپې ورځې تېرې کړې او د لوی خدا(ج) په رحم سره د اسلام په مبارک دين يې ايمان راوړی دی ددې کلي خلک وايي چې تر ډېر وخت پورې دغه انګرېز دلته اوسېده او اسلامي احکام او قوانين يې زده کول ډېر وخت به يې په جومات کې تراوه، چې د تل ولسونو دغه انګرېز ته چې د اسلام په دين مشرف شو ايمان يې راوړ، خلکو ورته د عبدالله نوم کېښود او د عبدالله په نامه به خلکو يادواه. د منطقې په ولسونو باندې ډېر ګران و خلکو ورسره ډېر محبوبيت درلود. هغه ډېر زيار ګاللی او زحمت کش انسان و، لمونځونه او کليمې يې زده کړې وې او د قران شريف تلاوت او په زده کړه لګيا و چې ډېر وخت وروسته د موټر د

چپه کېدو له امله مړ شو او دلته په کوهستان کې خاورو ته سپارل شوی دی.

## لاټین:

د تل د جومات مخې ته یا د جومات په برنډه کې یو لاټین ځوړند شوی کله چې انسان جومات ته ننوځي او په لاټین یې سترګې ولګېږي، انسان په حیرت سره لاټین ته ګوري بیا نو د چا سترګې د لاټین ځنې بل خوا نه ستنېږي، ځکه چې دغه د لرګو جوړ شوی لاټین ډېر په عجیبه فنکارۍ او هنر سره جوړ شوی چې تراوسه ددې فنکارۍ او هنر ساری ما نه دی لیدلی او که څوک یې نه مني نو دیر کوهستان تل جومات ته دې ورشي بیا به خبر شي چې هنر څه ته وایي.

د تل په جومات کې د جومات په هر خوا کې د ګروپونو لپاره د لرګو قندیلونه هم جوړ شوي او د توجه وړ دي، چې د لیدلو او د ستایلو وړ ترکاڼي په کې شوې ده. دغه ترکاڼ میرافضل نومېږي چې لاټین او د ګروپونو سیټونه او قندیلونه یې جوړ کړي چې د جومات ښکلا ته یې لاپسې ښکلا ورکړې ده.

کله چې موږ د تل کلي ته لاړو او دغه لوی جامع جومات مې په خپلو سترګو ولیده نو دغه څو بنده مې خولې ته راغلل او راټول شویو خلکو ته مې وویل:

### تل ته

تل نه دی عدن دی د ګلونو خاص ګلشن دی
وغروئ ستري چې هر خوا دلته چمن دی
سین د کوهستان یې چې په غېږه کې مستي کوي
دا د کوهستان د ولسونو خاص بدن دی
پاتې به حیرانه شي جومات که دې یوځل ولید
ډک یې د غیرت او د ایمان ځنې هر تن دی
مورې چې د کابل ځنې راغلي یو دې سیمې ته
فخر لرو موږه دا زموږ ښکلی مسکن دی
دا د کوهستان خاوره عظمت لري طاقت لري
دا خو کوهستان دی نه ایران دی نه یمن دی
یو به وي ګلان د کوهستان چې په هر بڼ کې وي
دې ارمان لپاره چمتو شوی هر یو تن دی
فخر چې په نوم د افغان نه کوي که هر څوک وي
زه په حقیقت وایم چې هغه مې دښمن دی

۹ اګست ۱۹۹۹
دیر کوهستان، تل کی

دغه شعر چې په یوه روانه غونډه کې خلکو ته ولوستل شو د
غونډې برخوال یې په اورېدلو سره ډېر زیات خوښ شو چې مشران
و ځوانان د افغان کوهستاني مشرانو ځنې تاوراتاو ودرېدل او

ګرمو احساساتو او چکچکو يې د افغان مشرانو درناوی وکړ، چې د شعر نه مخې دغه څلوريزه ويل شوې وه:

کــه بيــاړ کــه بريکــوټ او کــه پــاتراک دی
کوهــستان بانــدې يــادېږي خپــل يــې واک دی
د کلکــوت او تــل، مــوتی ځنــې لــوګی شــم
هـــر طـــرف تـــه د پرديـــو ځنـــې پـــاک دی

۹ اګست ۱۹۹۹

## کمراټ (Kamrat):

د کوهستان بر سر ته د ليدلو او ګرځېدلو يوه رنګينه او ښکلې منظرې لرونکې دره ده چې په ښکلو شنو ګلانو او شنو وښو باندې دا دره فرش شوې ښکاري. ددې درې غرونه په ښکلو رنګينه زينتي ونو باندې پټ ښکاري د دوبي په موسم کې دلته ډېر سيلانيان ددې درې د ليدلو لپاره د استراحت او سياحت لپاره راځي او ډېر شمېر د بهرنيو هېوادونو خلک هم د سيل او ننداري لپاره د پاسپورت او اجازه نامو سره راځي.

په دې ښکلې دره کې د کوهستان سين کله په نرمۍ سره او کله په نڅا سره د دير په لور روان دی، رڼې او پاکې اوبه لري او په غرونو رغونو کې د رڼو اوبو چينې شته، چې په خيبر پښتونخوا کې ددې ځای طبعي ښکلا ته هر څوک حيرانه پاتې کېږي او زما په فکر ددې محل ساری په نورو هېوادونو کې نه شته.

## دیر او دیر کوهستان:

دا یوه سرحدي او غرنۍ سیمه ده، چې په هر خوا یې اوچت
غرونه په ځنګلونو پټ دي چې زراعتي ځمکه زیاته نه لري ټوله
مساحه یې دنګو غرونو نیولې ده. لویه او پراخه ده ددې سیمې
زیات او سېدونکي په ختیه کوهستاني دي خو مرکزي د دیر خلک
اوس په پښتو ژبه خبرې کوي او کوهستاني ژبه یې هېره کړې ده خو
د درو او سردرو خلک په خپله مورنۍ ژبه کوهستاني خبرې کوي او
تر یو حده پورې خپل کلتور ساتلی دی. دا ولسونه د پوره ایمان
لرونکي مسلمانان او سوچه سني دي.

د دینداری په کارونو کې ډېر مخکې دي ډېرې مدرسې په کې
جوړې شوې دي او دا خلک د اسلامي احکاماتو ځنې جدي پیروي
کوي د دیر په ولسونو کې ډېر لوی دیني عالمان شته او ډېر سیاست
مدار ولسونه هم دي او هرې خواته په درو کې کوهستاني ولسونه
ډېره او ودان دي، زیات ولسونه یې اوس هم په زراعتي او مالداري
چارو بوخت دي. د دیر د مرکزي خلکو اقتصادي حالات ښه دي خو د
درو اطرافي خلکو اقتصادي حالات برابر نه ښکاري. په صنعتي
کارونو کې پرمختګ نه دی کړی تولیدي فابریکې نه لري خو د
ځنګلاتو په لرلو سره لوړ مقام لري. په مرکز او سردرو کې د خپلو
اولادونو د علم او پوهې د حاصلولو لپاره فعال ښوونځي لري او
ځوانان یې په لوړو زده کړو لګیا دي.

# د دیر کوهستانو مشرانو راتګ کونړ ته

د کونړ د ناړۍ ولسوالۍ او د غازي اباد ولسوالۍ کې د کوهستان مشرانو په غوښتنه او بلنه په ۱۳۷۸ ل کال د سنبلې په څلورمه نېټه د دیر کوهستان مشران په یو لوی کاروان کې ارندو ته راورسېدل. د ناړۍ کوهستاني مشرانو خبرتیا لرله او د دغه مېلمنو د ګرځېدو، غونډو، مجلسونو او ملاقاتونو پروګرام په ناړۍ مرکز کې ترتیب او تنظیم شوی و، چې دا ټول پروګرام د مېلمنو یوه اوونۍ مخکې ترتیب شوی و. ددې پروګرام په جوړولو کې چې غونډه د دوکلام حاجي صاحب سید امین خان په کور کې برابره شوې وه دغه کسانو ګډون درلود:

۱- عبدل چرمین د ارنوي
۲- حاجي سید امین خان د دوکلام
۳- حاجي اکرم خان د دوکلام
۴- حاجي ملک شېرزمین د بریکوټ
۵- ډاکتر سانین د ناړۍ
۶- ملک محمد طاهر د ناړۍ

پورته ذکر شویو مشرانو مشوره وکړه چې د دیر کوهستان مشران ارنوي ته تشریف راوړي، د غرمې د ډوډۍ پروګرام او استراحت او قومي غونډه به په ارنوي کې کېږي او مرحوم رحمن کور د مېلمنو د کېناستلو لپاره غوره شو او د پاتې کارونو

مسولیت عبدل چرمین ته وسپارل شو. د غرمې ډوډۍ او چایو وروسته به لمونځونه په ارنوي کې کوي او شپې لپاره به ناړۍ ته مېلمانه مشران تشریف راوړي د نورو مشرانو سره یوځای.

په ارندو کې لویه تشریفاتي غونډه د مېلمنو په ویاړ برابره شوې وه او ډېرو مېلمنو مشرانو خپلې خبرې واورولې او دوه بجې د ناړۍ مرکز ته روان شو، په بریکوټ کې ډېر مشران او ځوانان د مېلمنو په ویاړ او درناوي سرکونو ته راوتلي وو، خو د بریکوټ ځنې راساً مشران د ناړۍ پر لوري روان شول. درې بجې وې چې دغه مېلمانه د ناړۍ مرکز ته راورسېدل او ګڼ شمېر مشران او ځوانان د مېلمنو استقبال او درناوي په منظور راټول شوي وو د مېلمنو لپاره او د غونډو لپاره د منځ کلي د جومات خواته د قاضي فضل مولا کور ترتیب او تنظیم شوی و چې دغه چارډېوالي په فرمایشي ډول سره فرش شوې وه چې حیرانونکی شکل یې غوره کړی و او د هر کار لپاره په منظم ډول سره ګروپونه تنظیم شوي وو چې پرته له ستونزو ټول کارونه په ښه توګه مخ پر وړاندې روان وو.

کوم مېلمانه مشران چې د دیر کوهستان او نورو شاوخوا کلو ځنې راغلي وو په لاندې ډول سره یې درپېژنو:

## د تل کلي څخه

۱- محمد امیر، شاهین مرکز د دیر صدر
۲- بخت احمد، مرکزي صدر، د تل
۳- حاجي ګل شېر، مقامي صدر، تل

۴- عبدالطیف، د تل
۵- ملک سیدجان، د تل

## د کوهستان د بریکوټ څخه

۶- ملک محب الدین، د بریکوټ مقامي صدر
۷- ملک اجمیر شاه، د بریکوټ
۸- ملک محمد درویش، د بریکوټ

## بیاړ کلي څخه

۹- ملک ګل زرین خان
۱۰- عزیزالرحمن
۱۱- ملک امین الله
۱۲- ملک عبدالمطلب

## پاتراک کلي څخه

۱۳- حاجي معتبرخان، د پاتراک مرکزي جنرال سکرتري
۱۴- حاجي شرف الدین، مقامي جنرال سکرتري
۱۵- ملک محمد شاه
۱۶- حاجي غلام حبیب
۱۷- ملک مظفر سید
۱۸- ملک خان محمد
۱۹- بندي خان

## شیرنګل کلي څخه

۲۰- حاجي غلام صالح
۲۱- ملک دین محمد
۲۲- ملک محمد یوسف
۲۳- ملک رحمت دین

## خاص دیر ښخه

۲۴- حاجي خان زرین
۲۵- ملک عبدالمتین
۲۶- فیروزخان
۲۷- دولت خان
۲۸- ملک سلطان زرین
۲۹- ملک یار ملاخان
۳۰- حاجي غلام رحیم
۳۱- ملک نادرخان
۳۲- حاجي محمد خان
۳۳- پاچاخان

## کمه ښخه

۳۴- حاجي فضل واحد
۳۵- حاجي احمد غني
۳۶- محمدزاهد
۳۷- عمر صدیق
۳۸- عبدلواحد

۳۹- شېر حميد

۴۰- رحمت علي

## ارنوي خوړ څخه

۴۱- عبدالمتين

۴۲- محمدجان

## بريکوټ کلي څخه

۴۳- ملک محمدامين

۴۴- حاجي ادم خان

۴۵- حاجي ملک شېرزمين

۴۶- اکرم جان

۴۷- سردارعلي

۴۸- حاجي ګل احمد خان

۴۹- غورځنګ

## د ساو کلي څخه

۵۰- غلام سخي

۵۱- ارسلاخان

۵۲- حاجي محمد رزاق

۵۳- مولوي مطيع الله

۵۴- غلام محمود

۵۵- مشتاق صاحب

۵۶- ق. اکبر خان

## دوکلام څخه

۵۷- ملک محمد یوسف

۵۸- حاجي اکرم خان

۵۹- حاجي سیدامین خان

۶۰- حاجي ګل اکبرخان

۶۱- حاجي خالدخان

۶۲- ق. محمد رسول

۶۳- فضل رحمن

۶۴- سیدمحمد

## د ارنوي کلي څخه

۶۵- چرمین عبدل

۶۶- چرمین سیداکبر

۶۷- چرمین ګل سمبر

۶۸- حاجي قاضي ګل

۶۹- ډاکتر فضل رحمن

۷۰- ډاکتر سیداکبر

۷۱- ممبر محب الله

۷۲- ممبر عبدالحمید

۷۳- ډاکتر پاچاخان

۷۴- عبدالعزیز خان

۷۵- ملک سربلند

## د ناړې کلي څخه

٧٦- محمد اکبر، د شورا رئیس

٧٧- حاجي عصمت الله خان

٧٨- حاجي غلام سخي

٧٩- ملک رحمت نور

٨٠- حاجي غلام شاه

٨١- ملک محمد حضرت

٨٢- حاجي غلام فاروق

٨٣- حاجي ملک غلام فاروق

٨٤- حاجي عبدالباقي فضلي

٨٥- حاجي حبیب الرحیم فضلي

٨٦- حاجي نوراکبر

٨٧- مامور شېرزمان

٨٨- حاجي میرزمان

٨٩- حاجي علي احمد

٩٠- قوماندان سیدنبي

٩١- استاد جمعه الرحیم

٩٢- استاد عبدالرحمن

٩٣- نوراحمددین ملنګ

٩۴- ملک حاجي محمدطاهر

٩۵- ساعت ملوک

۹۶- ډګروال خانزاده

۹۷- ډګروال میرعالم

۹۸- حاجي عبدالمتین

۹۹- سیدرسول

۱۰۰- استاد سید کریم جان

۱۰۱- غلام غوث ، ساو

۱۰۲- قادر، نشه ګام

دغه پورته ذکر شویو کسانو په دغه غونډو کې ګډون او اشتراک درلود دا هغه نومونه دي چې د مېلمنو او د غونډو په اړه یې دندې درلودلې او نور په سوونو کسان په غونډو کې په خپله خوښه او مینه ګډون درلود.

## د ناړۍ غونډه:

دا ډېره لویه غونډه وه چې په سلګونو کسانو په کې برخه لرله. په سر کې د قران عظیم الشان څو ایتونه ولوستل شو او ورپسې ډاکتر سانین د غونډې اهداف وویل او مېلمنو ته یې د ټول قام په استازیتوب ښه راغلاست وویل. دغه غونډه یوه تاریخي غونډه وه چې مثال یې نه درلود ، ورپسې ملک معتبرخان د کوهستان مېلمه مشر د خپلو راغلو ملګرو په استازۍ خبرې وکړې بیا غلام صالح ملک او د ناړۍ څخه حاجي عبدالباقي فضلي، محمد امیرشاهین، ډګروال خانزاده او د ناړۍ ولسوال مولوي عبدالمجیب خبرې وکړې

او غونډه د دعا په کولو سره مازیګر د لمانځه لپاره په اجتماعي دعا سره پای ته ورسېده.

د مازیګر د لمانځه د فریضې وروسته ازاده غونډه جوړه شوه چې یو شمېر کسانو له خوا خواږه شعرونه او د صلاح الدین ایوبي د کورس د شاګردانو له خوا په زړه پورې ترانې د مېلمنو په احترام واورول شوې چې د ټولو ګډونوالو له خوا په چکچکو بدرګه شوې.

د شپې له خوا د ډوډۍ او لمانځه وروسته ټولو راغلیو مېلمنو ته د استراحت ځایونه چمتو شوي وو چې په ښه امنیت او فضا کې شپه په خوښۍ سره تېره شوه.

د سهار د چایو وروسته د منظم ترتیب شوي پروګرام له مخې کاروان د ساو پر لوري روان شو.

## د ساو غونډه: (۷ سنبله، ۱۳۷۸ل کال)

لس بجې وې د غرمې نه مخکې ساو ته ورسېدو په ساو کې مشرانو د مېلمنو لپاره ښه ښکلی د کېناستلو محل ترتیب او تنظیم کړی و. کله چې محل ته ورسېدو نیم ساعت وروسته تشریفاتي غونډه د قران شریف په څو مبارکو ایتونو سره پیل شوه. د غونډې محل ډېر ښه ښایسته او سوتره ښکارېده. مرحوم استاد مشتاق په خبرو ګرم و او د راغلو مېلمنو په اړه یې حاضرینو ته خبرې کولې څو رښتیا خبره داده چې د مشتاق صاحب خبرې اورېدې شوې زه د خپل ځای څخه پورته شوم او دا څلوریزه مې مشتاق صاحب ته وویله:

دا خبـرو کـې چـې ګـرم دی مـشتاق دی
دا پـه سـاو کـې سـاری نـه لـري بـس طـاق دی
چــې نوبــت د ویلــو نــه ورکــوي چاتــه
دا سـپین ږیری څـه قاضـي دی کـه نطـاق دی

دا طنزیه څلوریزه ټولو واورېده، ټولو د مرحوم مشتاق صاحب په شمول خدای دې وبخښي واورېده ټولو وخندل او مشتاق صاحب هم خپلې خبرې ختمې کړې.

ورپسې پـه دغـه لویـه او تـاریخي غونـډه کـې ملـک معتبرخـان کوهستاني، ملـک خـان زریـن د دیـر او ملـک شـېرزمین د بریکوټ خبرې وکړې، څو تنو ځوانانو خپل شعرونه ولوستل، د غرمې ډوډۍ او د ماسپښین د لمانځه وروسته نشه ګام پر لـوري روان شو، چې د روانېدو مخکې پرېکړه وشوه او د وسایطو او خلکو ګڼه ګوڼه وه د ارنوي مرحوم چرمین عبدل د کاروان مشر او رهبر وټاکل شو.

## د نشه ګام غونډه: (۸ سنبله، ۱۳۷۸ل کال)

لـه غرمـې وروسـته د کوهسـتان د مـشرانو د مېلمنـو کـاروان نـشه ګام ته ورسېد او د انجنیر شېرعالم خان په کور کې د کېنا ستلو او د غونډې پروګرام تنظیم شوی و د یـو څـه اسـتراحت وروسـته د قـران شریف د څو ایتونو په لوستلو سره دغه تشریفاتي غونډه رسماً پیـل شوه.

پـه دغـې درنـې او تـاریخي غونـډه کـې حـاجي ملـک معتبرخـان د غونډې د رئیس په توګه وټاکل شو او د غونډې پـه سـر کـې نومـوړي

خپله وینا وکړه ویې ویل: ورونو عزیزانو زموږ د راتګ اصلي او اساسي مقصد ستاسې د لیدلو او ستاسې سره د نږدې دیدن او ستاسې د احوال او ژوند خبرتیا ده. د ډیورنډ انګرېزي خط موږ ورونه یو له بل څخه جلا ساتلي یو خو د اسلام مقدس دین د هغه اسماني کتاب قران شریف چې موږ او تاسو ورباندې ایمان لرو د ټولو مسلمانانو شریک کتاب دی د دیر د کوهستان ولسونه او د کونړ د نارۍ او د نشه ګام کوهستاني ولسونه ورونه دي، موږ ټول یو اریایان یو د یو نیکه بچیان یو، په قام فخر کوو او ښه فخر په دې کوو چې سني مسلمانان یو، موږ ستاسې هر ډول مرستې ته تیار یو موږ او تاسو د یو کور خلک یو، ګډ فرهنګ او عنعنات لرو، یو د بل په خوی او عادتونو ښه پوهېږو. د خبرو په جریان کې د ولسونو او د غونډې برخوالو د ملک معتبرخان خبرې په چکچکو استقبال کړې.

ورپسې ډاکتر سانین خبرې وکړې، ورپسې حاجي قادر لالا د نشه ګام او بیا ملک حجي رحمت ولي خان د نشه ګام خبرې وکړې او غونډه په اجتماعي دعا سره پای ته ورسېده.

تر دې وروسته ازاد مجلسونه د مشرانو په منځ کې پیل شول، د مېلمنو او د مشرانو په درناوي د نشه ګام د ښوونځي هلکانو له خوا د شهیدانو په اړه یوه ترانه د کوچنیانو له خوا په ترنم کې په خوږ اواز وویل شوه، چې د ترانې انداز او مضمون دومره تاثیرناک او د مفهوم او درد څخه ډک و چې ټول مېلمانه د کوهستان مشران او

نورو ګډونوالو خپلو سترګو ته دستمالونه ونیول او شهیدانو ته یې د لوی خدای(ج) درګاه ته دعاګانې وکړې. لازمه ده چې دغه د شهیدانو په اړه ترانه دومره خوږه، جذبه لرونکې وه چې هر څوک یې اورېدو ته راجلبول او د کوچنیانو له خوا ښه تمرین شوې وه او په لوړ اواز سره دغې ترانې یوه عجیبه فضا رامنځته کړه او د هر چا سترګې له اوښکو ډکې ښکارېدې تا به ویل چې په سترګو کې د اوښکو چینې پیدا شوي. شپه په ننشه ګام کې تېره شوه مېلمنو سره نه هېرېدونکې خاطره پیدا شوه او د ننشه ګام مشرانو او ځوانانو په ډېره مینه او افغاني احساس سره د مېلمنو مشرانو ډېره قدرداني وکړه او د سهار پوره نهه بجې چې کاروان د ننشه ګام ځنې د بریکوټ پر لوري روان شو ددې کاروان مشري قاضي صاحب عبدالستار د شالیکوټ په غاړه لرله.

## د بریکوټ غونډه: (۹ سنبله، ۱۳۷۸ ل کال)

د مېلمنو او د غونډې د پام په شامادم کې د حاجي خان محمد خان په کور کې پروګرام تنظیم کړی و چې د بریکوټ د مشرانو له خوا ددې پروګرام لپاره پوره چمتوالی نیول شوی و د هر کار لپاره نوي ځوانان ټاکل شوي وو، څه ستونزه نه وه.

پروګرام او غونډه د قران شریف د څو ایتونو په تلاوت سره رسماً پیل شوه. د غونډې مشرتوب د برخوالو په خوښه امیر شاهین ته وسپارل شو او نوموړي ډېرې خوږې خبرې وکړې او د مشرانو مسوولیتونه د قام او د ولس په اړه بیان کړل، ورپسې حاجي ملک

معتبرخان او د بریکوټ انجنیر صاحب دین محمد خان، ملک شېرزمین خان او د ناړۍ ولسوال مولوي عبدالمجیب خان خبرې وکړې چې د غونډې په منځ منځ کې هر یو فضل مالک، غورځنګ، مالي خان او نادرخان له خوا خواږه شعرونه واورول شول، چې د ټولو ګډونوالو له خوا په چکچکو بدرګه شول، دغه قومي او تشریفاتي غونډه په ډېره ښه فضا کې سرته ورسېده او د کوهستان درانه مشران له نورو ملګرو سره د شپې لپاره ناړۍ ته روان شول.

## د مېلمنو تګ او رخصتول: (۱۰ سنبله، ۱۳۷۸ل کال)

د ناړۍ د مرکزي کلي نه مېلمانه په درنو مراسمو سره د چترال او د دیر په لوري د رخصتولو لپاره یوه تشریفاتي غونډه جوړه شوه. په دې غونډه کې چې د غرمې نه وروسته په دوه بجې پیل شوه، امیر شاهین، ملک معتبرخان، ډاکتر سانین خبرې وکړې او په اجتماعي ډول دعا وشوه او د کوهستان مشران د دیر په نیت د ناړۍ د کلي څخه روان شول، ډېر مشران او ځوانان راټول شوي وو د خلکو او مشرانو سره د کوهستان او د نورو سیمو مشرانو په ډېره خوښۍ سره مخه ښه وکړه.

## پاشنګر: (۱۰ سنبله، ۱۳۷۸ل کال)

کله چې د دیر کوهستان مشرانو د ناړۍ د مرکزي کلي نه د ارنوي په لوري حرکت وکړ، دغه مېلمانه او د سیمې مشرانو شمېر چې دوکلام پورې د مېلمنو مشرانو په درناوي د بندر پورې روان وو په پاشنګر کې انجنیر صاحب حبیب الله د خپلو نورو ورونو او کورنیو

غړو سره د کوهستان مېلمنو ته په ډېر درناوي سره دعوت وركړ چې زما سره به شپه وكړئ زما دعوت قبول كړئ، سبا سهار به په خير سره دير او د دير كوهستان په لوري روان شئ.

د انجنير صاحب دغه وړانديز او دعوت په ډېر درناوي سره د كوهستان مشرانو له خوا قبول شو او مازيګر نږدې و چې پاشنګر ته د موټرو كاروان پورته شو د مرحوم استاد حاجي عبدالمتين او د انجنير صاحب حبيب الله كور په يوه چاردېوالۍ كې و د رسېدو سره په دغه لويه كلا كې فرشونه، څوكۍ، كټونه او هر څه په منظم ډول ترتيب او برابر شوي وو څه ستونزه نه وه د دير كوهستان او د منطقې او د سيمې مشرانو ټولو ګډون درلود. انجنير صاحب حبيب الله د سيمې د نږدې كلو مشرانو ته وويل چې هېڅوك خپلو كورونو ته تللى نه شئ، ټولو لپاره انتظام برابر شوى. ددې ټولو كسانو شمېر د (۲۵۰) تنو څخهه زيات اټكل كېده. د شپې په پاشنګر كې پاتې شول، ډېر خواږه او په زړه پورې مجلسونه وشو، ډېره ښه شپه په قدردانۍ سره تېره شوه د ټولو مېلمنو لپاره د استراحت او ډوډۍ لپاره ښه او منظم پروګرام جوړ شوى و، شپه په ارام او خوښۍ تېره شوه، سهار د لمانځه نه وروسته د چايو څښلو وروسته يوه اجتماعي دعا په كولو سره د كوهتسان مېلمانه چې ددې شپې يوه نه هېرېدونكې خاطرې سره په ډېر درنښت او افغاني سلوك د دوكلام د بندر څخه د خداى پامانۍ كولو سره كوهستان ته روان شول.

## د اړیکو او د تګ راتګ اهداف:

ددې تګ راتګ هدفونه ډېر روښانه او د اسلامي اصولو او احکامو په رڼا کې په لاندې څو کلیمو کې واضح کوم، دا چې دواړه قومونه په حقیقت کې د یو قام ولسونه دي:

۱- له یو بل سره د نږدې پېژندګلوۍ او د نېکو اړیکو ټینګول.

۲- له یو بل سره د اسلامي قانون په رڼا کې مرسته کول.

۳- د یو بل پر ضد په خپله خاوره کې شرانداز او بې هویته کسانو ته ځای نه ورکول.

۴- یو پر بل د پوره باور او اعتماد اصول منځته راوړل.

۵- یو پر بل د نېک ګاونډیتوب اسلامي اصول عملي کول.

۶- ټولو قومونو ته د اسلام په رڼا کې پوره درناوی.

۷- یو او بل په ستونزو کې د حل لاره لټول.

# د کوهستان عمومي شورا جوړېدل

د ګواریانو (کوهستانیو) د عمومي شورا د جوړېدو په منظور ددې قام د یووالي په منظور په وخت وخت غونډې او محفلونه جوړ شوي خو په اساسي توګه چې نتیجه یې ورکړې او دوام یې پیدا کړی وي داسې کار نه دی ترسره شوی، ځکه چې کوهستاني قام ولسونه خواره واره په سرحدونو کې پراته دي، اقتصادي ستونزو سره لاس او ګرېوان دي. رښتیا خبره ده چې د اقتصاد په برکت ډېر



کارونه مخکې ځي. کله چې په قام کې ټولنه کې اقتصادي حالات

ګډوډ وي او ټولنيزو ستونزو سره مخامخ وي ګټور سياسي، فرهنګي او اجتماعي کارونه په منظم ډول نه شي ترسره کولی.

په هر صورت د ځينو سيمه ييزو او قومي ستونزو د حل لپاره په بريکوټ، ناړی، ساو، نشه ګام کې ځو ځو ځل مشران او ځوانان په افغاني او اسلامي جذبه راپورته شوی او د قام د يووالي په منظور په قام او سيمه کې د ولسونو قومونو د ستونزو د حل لپاره د يوې شورا د جوړېدو په منظور په خپلو کې ډېرې غونډې، خبرې ترسره شوي دي په داسې حال کې چې د وطن په غېږه کې د طالبانو حکومتداري او رژيم عام تام حاکميت درلود. زموږ په سيمه کې چې يوه سرحدي سيمه ده او ډېر قومونه په کې ژوند کوي د ګډوډيو او خودسريو او جنجالونو خطرناکه حالات اوج ته ورسېدل او د ټولو قومونو او ولسونو سره وېره او تشويش پيدا شو چې په وطن کې به څه کېږي؟ ولسونو د مايوسۍ ترخې ترخې تورې شپې تېرولې.

ددې لپاره چې په منطقه او سيمه کې کوهستان قام د خطرناکو حالاتو په مقابل کې چمتووالی ولري او قام او خپل ولس د خپل منځي جګړو څخه وساتي او د کوهستان قام د باور او اعتماد اصولو ته د اسلام په رڼا کې مثبت کارونه ترسره کړي او قام د هر ډول جنجالونو او فتنو او فساد څخه وساتل شي، نو لازمه وه چې يوه سراسري د کوهستان قومي شورا جوړه شوې وای.

له نېکه مرغه د کوهستان د قام ځينو مشرانو او ځوانانو په هر کلي کې د دې مسايلو په اړه د ولسونو سره په غونډو کې ډېرو او

حجرو کې خبرې وکړې، اړيکې يې له يو بل سره ټينګ کړل، ولسونه وهڅول شول چې شورا بايد جوړه شي.

د ټولو کليو مشران او ځوانان د شورا د جوړېدو او د شورا د اهدافو څخه باخبر شو چې په نتيجه کې د هر کلي مشران او ويښ ځوانان په دې خبره باندې په هوښياری سره پوهه شو چې د شورا جوړېدل د قام او د ولسونو د لارښوونې لپاره يو ارزښتناکه او اړينه مسله ده، نو دغو مشرانو په ګډه سره په ارنوي کې د چرمين حاجي سيداکبر په کور کې غونډه جوړه کړه چې په دې درنه او تاريخي ارزښتناکه غونډه کې د دوکلام، بريکوټ، ناړی، ساو او نشه ګام مشرانو ګډون کړی و.

دغه غونډه د قران عظيم الشان د څو ايتونو په لوستلو سره او د دعا په کولو سره پيل شوه. ددې غونډې اجنډا او مقصد ټولو ګډونوالو ته څرګند و يو شمېر مشرانو په وار سره د غونډې په اهدافو رڼا واچوله او د ډېرو خبرو اترو وروسته په پوره اتفاق او پيوستون او د غونډې ګډونوالو په خوښې سره الحاج اکرم خان د دوکلام د کوهستان د عمومي شورا د رئيس په توګه انتخاب شو.

په غونډه کې يو څه تخنيکي ستونزه پيدا شوه خو ډېر ژر حل شوه ورپسې د شورا د غړو او ځينو نورو مسولينو په اړه نظريات وغوښتل شو او د غونډې ګډونوالو په پوره اتفاق او يووالي سره قاضي عبدالستار د شورا د مرستيال په توګه، ډاکتر محمدنواز سانين د شورا د مرستيال او د اطلاعاتو او کلتور د رئيس په توګه،

یو تن د نشه ګام د شورا مرستیال په توګه، حاجي ملک شېرزمین د بریکوټ د شورا د منشي په توګه، مرحوم حاجي سیدامین د شورا د مالي چارو د مسوول په توګه، انجنیر دین محمد د بریکوټ د مالي چارو د مرستیال په توګه، حاجي زمان د بریکوټ د امنیت د مسوول په توګه، حضرت محمد د ساو د امنیت مرستیال په توګه، غلام سخي د ساو د قوماندان په توګه، سیدنبي د ناړۍ د قوماندان مرستیال په توګه، حاجي قادر د دوکلام د قوماندان د مرستیال په توګه، ډګروال خانزاده د شورا د ویاند په توګه، د پاشنګر انجنیر حبیب الله د دعوت د مسول په توګه، امیرمحمدخان د نانګل د ارتباط د مسوول په توګه وټاکل شول.

ددې شورا جوړېدو سره په سیمه کې د قام په منځ کې د یووالي او پیوستون په برخه کې ډېر مثبت تاثیر وکړو او په نورو قومونو باندې هم ددې شورا جوړېدل او تشکیلاتو جوړېدل په سرحدي سیمه کې چې د طالبانو واکمني هم ټینګه روانه وه ګټور تاثیرات او ملاحظات منځته راوړل.

د ځینو خودغرضو کسانو ته تشویش او اندېښنه زیاته شوې وه او د طالبانو ادارو ته یې خبر ورکړی و چې د کوهستان ولسونو شورا جوړه کړې ده، دوه ورځې وروسته زه د ناړۍ ولسوال خپلې ادارې ته وغوښتم او د شورا د جوړېدو په اهدافو مې ورته معلومات ورکړل او زما په خبرو د هغه قناعت حاصل شو. هغه راته وویل چې څه کسانو راته وویل چې دا شورا د طالبانو د رژیم پر ضد جوړه شوې، دوباره مې ورته وویل خبره داسې نه ده موږ د هیچا پر ضد نه یو خو هغه څوک چې د زورواکو غلامان دي، زموږ په

یووالي او پیوستون کې هغه خپله سرټیتي او ناکامي ګوري موږ د حق طرفداران یو او زموږ هرکار د ټولو قومونو او د سیمې د خلکو په ګټه دی. زموږ په هکله چې تاسو ته څوک شکایت او یا غلط راپورونه درکوي هغه نه غواړي چې په سیمه او وطن کې امن او امنیت ټینګ شي.

په اخر کې مې ورته وویل ولسوال صاحب موږ وسلې نه لرو جنګ نه غواړو موږ په ټول هېواد کې سوله او امن غواړو فساد او شر نه غواړو، ولسوال په ډېر درناوي سره یوه پیاله چای راکړ او خپل کور ته لاړم.

# د نوي شورا جوړېدل

## د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنې هڅې د قومي پیوستون لپاره:

د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې په نوښت په (۷-۱۱-۱۳۸۸) لمریز کال د لومړي ځل لپاره د نشه ګام، ساو، ناړې، دوکلام، بریکوټ او رام د کلو د مشرانو په ګډون د ناړې په مرکزي کلي کې د سانین په کور کې یوه درنه غونډه د غرمې نه مخکې په لسو بجو د قران عظیم الشان د څو ایتونو په لوستلو سره چې د مولانا اسلام نور له خوا قرائت شول د لوی خدای(ج) د درګاه په لور په دعا سره دغه درنه غونډه پیل شوه.

په سر کې د استاد غلا الرحیم مریدي له خوا د غونډې د جوړېدو اړتیا او اهمیت په باب خبرې وشوې او د غونډې ګډونوالو ته ددې غونډې د جوړېدو د تاریخي ویاړ په مناسبت د ګوار قام مشرانو او ځوانانو ته مبارکي ورکړه.

وروسته د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې مشر سانین د غونډې ګډون کوونکو ته چې د نشه ګام، ساو، ناړې، رام، بریکوټ او دوکلام کلیو څخه د غونډې د ګډون لپاره غوښتلي و په ډېره مینه او ادب ټولو ګډونوالو ته مبارکي ورکړه او د هغو د ګډون څخه

يې مننه وکړه او هغو ته يې ددې غونډې د اجنډا او مقصد په اړه په زړه پورې معلومات ورکړل.

د غونډې د اجنډا په اړه يې ګډونوالو ته رڼا واچوله او د ګران وطن په غېږه کې د ښو خدمتونو لپاره په پوره پيوستون او يووالي کې د قومونو د مسوولیتونو په اړه هر اړخيزې خبرې وکړې ويې ويل: د افسوس خبره ده چې موږ ګواريان يوه قومي شورا نه لرو؟ ځمکه لرو، ولسونه لرو، غرونه لرو او په هسکو غرونو او رنګينه



سردرو کې ژوند لرو، خوږه او پسته ژبه لرو، کلتور او ادب لرو، خو څه چې نه لرو هغه د قام د يووالي او پوره پيوستون لپاره د خپلو حقوقو او د خپل هويت د پېژندلو لپاره د نورو قومونو او ولسونو سره د يو منظم اسلامي او افغاني يووالي د ټينګښت لپاره زموږ قام

ګواریانو ته په اوسني وخت کې لازمي ده چې یوه درنه شورا ولري او خپلې ټولې قومي او وطني ستونزې او د ښه او سوکاله ژوند لپاره چې ولس ته په مسوولیت او افغاني مینه خدمتونه وکړي او خپلې ژبې ته خدمت وکړي او خپل ویده قام د غفلت له خوبه ویښ کړي د ولسونو حق او حقوق وساتي د ګواریانو کوم تعلیم یافته ځوانان چې نن په سیمه کې د ګواریانو په قام او کلیو کې شته دا په نورو سیمو کې نه شته، نو ځکه زموږ قام ته په نن وخت کې د شورا جوړېدو اړتیا ده.

نن ورځ به موږ ټول ددې درنې غونډې برخوال پرېکړه کوو چې قومي شورا څنګه جوړه شي؟

قومي شورا د چا څخه جوړه شي؟

د قومي شورا ترکیب څنګه وي؟

قومي شورا څه دندې باید په غاړه واخلي؟

د قومي شورا پرېکړې څنګه عملي شي؟

په دغو ذکر شویو موضوعاتو باندې د غونډې برخوالو ته غوښتنه وشوه چې خپل نظریات په ازاد ډول بیان کړي تر څو د برخوالو په ګډ تصمیم سره د قومي شورا د جوړېدو تخنیکي او مشورتي کارونه ترسره شي او ډېر ژر باید قومي شورا جوړه او اعلان شي او د قام مشرانو او ځوانانو ته د خطرناکو پېښو د مخنیوي لپاره ډاډ ورکړ شي.

ورپسې د غونډې د برخوالو څخه محترم الحاج ملک شېرزمین د بریکوټ د غونډې برخوالو ته اوږدې او دردناکه خبرې وکړې او افسوس یې ښکاره کړ چې ګواریان تراوسه شورا نه لري، ګډ تصمیم نه لري په یوه لار نه دي د ځانځانۍ په لومو کې نښتي بېل بېل ښکېل شوي او یو د بل په ننداره دي.

د شورا جوړېدل د قام لپاره د ویاړ خبره ده کوم قام کوم ولس چې شورا نه لري یووالی نه لري، برکت نه لري او یو د بل د غم او خوښۍ



څخه خبرتیا نه لري.

ملک شېرزمین د یوې منظمې شورا د نه لرلو له کبله په ځینو قومي مسایلو ته چې په دې درېو لسیزو کې ولسونو ته ډېر کړاوونه پېښ شوي په انتقادي توګه په ځینو مشرانو د انتقاد ګوتې ونیولې

او موجوده وخت د ستونزو د حل لپاره یې د قومي شورا جوړول په ځای کار وباله او د غونډې برخوال یې خپلې تاریخي او افغاني مسوولیتونو ته متوجه کړل.

ورپسې د ناړې الحاج ملک اکبرخان خبرې وکړې د ملک شېرزمین د خبرو تائید یې وکړ او د ښه کارونو د ترسره کولو لپاره یې د قومي شورا جوړېدلو تائید وکړ. ورپسې د دوکلام مشر الحاج ملک اکرم خان خبرې وکړې او ویې ویل:

ډېرو قدرمنو مشرانو!

زه د قام شخه ډېره ګیله لرم د طالبانو په رژیم کې په ۱۳۷۸ل کال د کوهستان په نوم یو تېز خوځښت منځته راغی چې د افغانستان او د پاکستان د دیر او سوات او نورستان د ولسونو د پیوستون او نېکو اړیکو د ټینګښت تبلیغات کېدل سر په سر ژر ژر غونډې وشوې چې د ټولو مشرانو او سپین ږیرو د رایو په اساس د ولسونو د علني غوښتنو په اساس زه د کوهستان د قام د رئیس په توګه ونومول شوم، د څو میاشتو دوام وروسته کار په خپل حال پاتې شو.

حاجي صاحب اکرم خان وویل: کوم کار لپاره چې پرېکړه وشي هغه کار باید په نیمه لاره کې پاتې نه شي په پرله پسې توګه په هماغه لاره ګام پورته شي، د قام او د ولسونو سره دوکه یو غلط کار دی او د قام پورې اړوند مسایل لازمي ده چې په هوښیارۍ سره نوې قومي شورا د لوی خدای(ج) د رضا لپاره عملي کارونه ترسره کړي.

د قام ولسونو ته خدمت کول د قومي شورا لپاره د ویاړ خبره ده.

وروسته د بریکوټ د کلي څخه الحاج ملک ګل احمد خان خبرې وکړې د ملک شېرزمین خان او د حاجي صاحب اکرم خان د خبرو ملاتړ يې وکړ او وېيې ویل: د نارۍ کلی زموږ د ګوارو يو مرکزي



ټاټوبی دی او مرکزي کلی دی، د نارۍ کلی زموږ د مشرانو کلی دی، د نارۍ په مرکز کې ولسوالۍ موقعیت لري.

حاجي ګل احمد خان وویل: د قام ځوانان د قام ولسونو ته ډېر درانه مسوولیتونه لري، ټول ځوانان باید چې د قومي شورا د اهدافو او ارمانونو ملاتړ وکړي او قومي شورا ټولې چارې د ځوانانو له خوا ترسره شي.

ځوانان باید چې خپلې ټولنې ته ښه ښه کارونه وکړي او خپل قام په یووالي او ملي پیوستون په لاره کې ډېرې هلې ځلې وکړي.

وروسته الحاج مولوي رحيم الله خبرې وکړې او داسې یې وویل: د ټول قام لپاره پکار ده چې د نوې قومي شورا د جوړېدو لپاره هلې ځلې او استقبال وکړي، د قام لپاره د قامي شورا جوړېدل یو ډېر ضروري او ګټور کار دی.

که چېرې شورا جوړه شي ډېر کارونه به د قام ولسونو ته په ښه توګه ترسره شي او ډېر قومي مسایل او لانجې به همدغه قامي شورا د قومونو سره او په خپلو کليو کې د پرېکړو په اساس حل او فصل کوي.

وروسته د ننګرهار له کلي څخه ډاکتر شېرمحمد د ننګرهار د مشرانو په نمایندګۍ خبرې وکړې. نوموړي د قومي شورا جوړېدل د مشکلاتو او د موجوده ستونزو د حل لپاره یو ګټور او ضروري کار وباله او د هر ډول مرستو ډاډ یې ورکړ او ویې ویل: د ننګرهار ټول قومونه او ولسونه د قامي شورا د جوړېدو تائید کوي او په دې برخه کې هر ډول مرستو ته چمتوالی څرګند کړ او زیاته یې کړه چې د قومي شورا جوړېدل د قام او ددې منطقې د سولې او امن لپاره په ځای کار دی او د امنیت او نېکو اړیکو لپاره یې یو اسلامي او افغاني نېک اقدام وباله.

وروسته د ناړۍ څخه الحاج عبدالباقي فضلي خبرې وکړې ویې ویل: که چېرې موږ مخکې قومي شورا جوړه کړې وای، نو اوس به ډېر ګټور کارونه ترسره شوي وای، ډېر خطرناک حالات زموږ په وطن کې تېر شو او اوس هم زموږ د هېواد په غېږه کې جنګونه روان

دي، امن او امنیت نه شته څه چې د چا خوښه وي هغه کېږي، ظالمان لا په مظلومانو ظلم کوي، په لارو او سړکونو کې د اسلام د مبین دین د احکاماتو خلاف قتلونه او عملونه کېږي، زموږ قومي شورا باید جوړه شي او د هر ډول ناروا اعمالو پر ضد به قومي شورا خپل ولسونه او قومونه یو موټي کوي.

د شورا په جوړېدلو سره به د قام د مشرانو مسوولیتونه او دندې لاپسې زیاتې شي او خپلو ولسونو ته به په سیمه کې د سولې امنیت او ورورۍ د ټینګښت ښه کارونه کېږي. د ساو د کلي څخه استاد نقیب الله دردېدلي خبرې وکړې او ویې ویل: د قومي شورا جوړېدل په سیمه کې د قام هویت د څرګندولو لپاره یو نېک کار دی. د هر کلي څخه څلور یا پنځه تنه مشران د ولسونو په خوښه شورا ته معرفي شي تر څو د قام عالي شورا جوړه شي او په هرکلي کې دې یوه یوه شورا جوړه شي، تر څو کلیوالي مسایل او ستونزو د حل په برخه کې ښه کارونه عملي کړي او د قام په سر کې د یوې عالي شورا جوړول نېک کار دی.

د ټولو کلیو او قام د لارښوونې مسوولیت په غاړه ولري. دردېدلي صیب وویل: د سانین دغه کار چې د قام مشران یې د شورا د جوړېدلو لپاره خبرې روانې دي، کور ودانی ورته وایم او دا یو نېک احساس دی.

په غونډه کې ډېرو برخوالو په وار وار خپلې خبرې او نظریات وړاندې کړل. ورپسې حاجي عبدالشکور شکرزاد د دوکلام خبرې

وکړې او ويې ويل: د قام په سر کې د شورا جوړېدل يو په زړه پورې کار دی، د شورا د جوړېدلو د اهميت او د ارزښت په اړه يې ګټورې خبرې وکړې، د قام او د ټولو کليو په ځينو مسايلو باندې يې رڼا واچوله او د ناوړه اعمالو د مخنيوي لپاره يې د قومي شورا جوړول د قام او ولسونو لپاره لوی او په ځای ګام وباله.

شکرزاد د قام او د کليو موجوده ستونزو ته د برخوالو پام ور واړاوه او د ناوړه اعمالو د مخنيوي لپاره د قومي شورا مسووليتونه او دندې په ډاګه کړل او د خلکو څخه يې وغوښتل چې د شورا د پرېکړو څخه ننګه او ملاتړ وشي او ټول قام او کليوال د شورا سره هر ډول مرستو ته چمتوالی وښيي. د غونډې برخوالو ته ددې غونډې ګډون کوونکو او ويناوالو خبرې او نظريات په زړه پورې وو او ټولو برخوالو په ډېره مينه د نوې قومي شورا د جوړولو هر کلی وکړ.

د غونډې په پای کې سانين يو ځل بيا خپلې خبرې وکړې او ويې ويل: ددې لپاره چې د قام عالي شورا د ولسونو او قومونو او ټولو کليوالو په خوښه او پوره رضايت جوړه شي، لامې ده، چې د قام د شورا لپاره د هر کلي څخه د ولسونو په خوښه د رايو په اساس پنځه پنځه کسان د عالي شورا د غړيتوب لپاره نوې قامي شورا ته د روانې مياشتې له ۱۵مې نېټې پورې ورو پېژندل شي، د هر کلي مشران به اوس خپلو کليو ته ستانه شي او ټول مشران به خپلو کليو کې د شورا د جوړېدلو خبر ورکړي او ولسونه به په هر کلي کې خپل

کسان په خپله خوښه وټاکي او راتلونکي غونډې ته چې د بریکوټ د الحاج ملک شېرزمین په کور کې کېږي، ګډون کوي. قومي شورا ته باید کوښښ وشي چې بانفوسه، متدین، متقي کسان معرفي شي، دې غونډې ته د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې له خوا سازمان ورکړ شوی و.

چې نږدې او لیرو کلیو ځنې مشرانو په مینه ګډون درلود، دغه درنه غونډه د مازیګر پورې دوام درلود او راغلي مېلمانه او مشران د لاندې کسانو څخه عبارت وو:

د نشه ګام له کلي څخه ډاکتر شېرمحمد

د ساو له کلي څخه نقیب الله دردېدلی

د دوکلام له کلي څخه مشران هر یو، الحاج ملک اکرم خان، الحاج عبدالشکور شکرزاد، الحاج عثمان خان، محترم افسر حسن شریف او د رام ځنې الحاج ملک.

د بریکوټ د کلي مشران هر یو، الحاج ملک شېرزمین، الحاج ملک ګل احمد خان، عبدالولي

د ناړې له کلي څخه، حاجي صاحب سلطان محمد، حاجي ملک رحمت نور، حاجي خانزاده، حاجي محمد طاهر، حاجي عبدالمتین، حاجي رحیم الله د ناړې د جامع جومات امام، استاد حیاوالدین، استاد غلام رحیم، حاجي غلام فاروق، حاجي غلام شاه، سید محمد خان، حضرت محمد، حاجي اکرم خان، فضل اکبر د ځوانانو د شورا رئیس، حاجي غلام سخي، حاجي زیارت ګل، استاد بادرخان،

استاد عبدالرحمن، استاد سیدشریف، استاد شهزاده، حاجي شېرزمین،ولسوال عبدالباقي، مولوي ولي رحمن، معلم حضرت خان، حاجي سیدانشاه، استاد علي اکبر، جیلاني، استاد حیاوالدین، حاجي محمدعثمان، د ځوانانو له جملې څخه مولوي اسلام نور، حق ولي، غلام رباني، خان بهادر، عزیز، قاري اسدالله، انعام، قاري اصلاح الدین، غلام اکبر، غلام خلیل، یوسف، یعقوب، اکرام، اسرارالدین، قاري دادالله او نور ګڼ شمېر ځوانانو او مینه والو برخه درلوده. دغه درنه غونډه د دعا په کولو سره پایته ورسېده.

په ۹-۱۱-۱۳۸۸ نېټه د ناړې په مرکزي جامع جومات کې د جمعې د مبارکې ورځې د لمانځه نه وروسته ټولو مشرانو ځوانانو په مینه په یوه ازاده درنه غونډه کې د قامي عالي شورا ته د کسانو د پېژندلو لپاره په څلورو محلونو کې غونډې جوړې شوې، چې هر کندی خپل کسان د شورا لپاره وروپېژني چې په نتیجه کې:

۱- ملک محمد طاهر

۲- حاجي خانزاده

۳- ولسوال عبدالباقي فضلي

۴- مامور شېرزمان ملګری

۵- مولوي ولي رحمن

۶- مولوي رحیم الله

۷- محمد نواز سانین

د قام عالي شورا ته وپېژندل شول او د ټولو په خوښه او رايو سره وټاکل شول. په اخر کې د دعا په کولو سره دغه درنه غونډه پايته ورسېده.

# قومي شورا وځنډېده

د دلوې د میاشتې پر (۲) نېټه د نشه ګام، ساو، بریکوټ، ناړې
دوکلام او رام مشرانو او سپین ږیرو ته لیکونه ولېږل شو، چې پ
(۳-۱۱-۱۳۸۹) نېټه په بریکوټ کې یوه لویه درنه غونډه ده او تو
د ګواریانو مشران چې د خپلو کلیو له خوا قومي شورا لپاره غور
شوي او قام ورباندې انتقاد نه لري او پوره رایه یې اخیستې وي
بریکوټ ته د عمومي غونډې لپاره حاضر شي. په (۳-۱۱-۱۳۸۸
موږ هر یو حاجي عبدالباقي فضلي، ملک حاجي محمدطاهر
حاجي عبدالجلال، حاجي خانزاده ګوار، مولوي صاحب ولي رحمن
مولوي صاحب رحیم الله، بریکوټ ته د ملک شېرزمین حاجي
صاحب کور ته لاړو، وخت د سهار (۹) بجې وې حاجي صاحب
شېرزمین په کور کې تشریف نه درلود او د غونډې لپاره چې دلت
جوړېدله او یوه اوني مخکې مو ورته خبر ورکړی و، ملک
شېرزمین د غونډې لپاره چمتووالی نه درلود او بچیانو یې وویل
چې هغه د بریکوټ نوي جومات ته تللی موږ د هغه خواته ورغلو ا
هغه راته وویل چې نن زموږ غونډه نه جوړېږي، ویې ویل: دلته پ
بریکوټ کې زموږ کلیوالو پرون مازیګر او ماښام څه جنجال ا
سوک څپېړه کړې ده، موږ د غونډې لپاره راغلو مشرانو پرېکړ
وکړه چې غونډه یا قومي شورا جوړول د همدې اهدافو لپار
جوړېږي چې کلیوال او قومي جنجالونه په خپله حل او فصل کړو

ددې لپاره چې د بریکوټ د دوو کورنیو جنجال اوږد نه شي او ناوړه مسایل نور پېښ نه شي، د بریکوټ د کلیوالو مشرانو په مشوره د دواړو جانبو سره چې په جنجال کې دخیل او شریک و، تماس ونیو او د جانبینو سره موږ مخامخ د لوی خدای د رضا لپاره د جرګې په ډول خبرې اترې شروع کړې، د نورو مسایلو د پیدا کېدو لپاره مو د مخنیوي په موخه د دواړو جانبینو څخه واکونه او اختیارات واخیستل او دواړو فریقو په لیکلي ډول لیکونه راکړل چې د فیصلې پورې به یو بل سره کار نه لرو، که هر جانب د بل جانب سره لاس واچوي، نو قام ته په ملامت وي او زموږ قومي غونډه د څو وروڅو لپاره پاتې شوه، دې غونډې لپاره د دوکلام د کلي نه حاجي صاحب اکرم خان، حاجي صاحب استاد عبدالشکور، حاجي فضل رحمن او رام څنې حاجي صاحب معتبرخان او د نشه ګام څنې حاجي صاحب زمان خان او ډاکتر شېر ګډون درلود او څو تنه نور مشران د نشه ګام د سړک او د لارې د ستونزو له کبله بېرته د څونک نه نشه ګام ته ستانه شوي وو.

## د شورا غونډه بیا وځنډېده:

پر (۱-۱۲-۱۳۸۸ل کال د ملي ارمانونو د فرهنګي او ادبي ټولنې په ابتکار بیا نشه ګام، ساو، دوکلام، رام، بریکوټ مشرانو ته د لیکونو په ذریعه خبر ورکړ شو، چې په ۲-۱۲-۱۳۸۸ نېټه ناړۍ کې د قومي شورا د جوړېدو لپاره قومي غونډه کېږي، د غرمې نه مخکې ۹ بجې ټول مشران او سپین ږیري چې د خپلو کلیو

له خوا تاکل شوي دي، تشریف راوړی ددې غونډې لپاره د ساو نـ
مولوي صاحب، سیدنبي او رام کلي نه حاجي معتبرخان او مولوي
صـاحب رحـیم الله، حـاجي صـاحب عبـدالباقي فـضلي، ملـک
محمدطاهر، استاد اکبر سید ، استاد جمعه الرحیم او د څلا راډیو د
ګواري ژبې مـشر (             ) برخه لرلـه دا چې اکثریت د امنیتـ
مشکلاتو په اساس غونډې ته حاضر شوي نه وو، نو د قومي شورا
جوړېدلو کار بیا پاتې شو.

د جمعې ورځ لس بجې د شورا جوړېدو لپاره:

## د دوکلام د کلي استازي:

اکرم خان حاجي

ګل زمین

حاجي ملک جان

حاجي عبدالشکور

نور اکبر خان حاجي

زین الله خان

## د ناړې د کلي استازي:

حاجي عبدالباقي فضلي

حاجي محمدطاهر اخطار

حاجي ګلاب سید خاموش

حبیب الرحیم فضلي

حاجي محمد عثمان

سيد رسول

اكبر سيد

حياالدين

جمعه الرحيم

حاجي عبدالمتين

## د بريکوټ د کلي استازي:

حاجي محمدزمان

حاجي عزيزالرحمن کوچی

## د ساو د کلي استازي:

غلام غوث

جمال الدين

سلطان

## د نشه ګام د کلي استازي:

جمعه الدين

نيازمحمد

علي احمد

رحمن الله

احسان الله

محمدحسين

په غونډه کې دغو لاندې کسانو خبرې وکړې:

سيد رسول، ناړے

حاجي صاحب اکرم خان، دوکلام
استاد عبدالشکور، دوکلام
مدیر صاحب غلام غوث، ساو
حبیب الرحیم فضلي
محمد طاهر اخطار

## د شورا د رئیس ټاکنه:

د ۱۳۸۸ل کال د کب د میاشتې پر ۱۴مه نېټه د جمعې په ورځ د غرمې نه مخکې پوره لس بجې قومي غونډه د سانین په کور کې جوړه شوه.



د غونډې په سر کې د محترم عبدالباقي فضلي له خوا د قران شریف څو ایتونه ولوستل شول، په دعا کولو سره رسماً غونډه پیل شوه، په سر کې سانین د غونډې د جوړېدو د ارزښت او اهمیت په اړه خبرې وکړې او ویې ویل: د قام لپاره ددې غونډې او د شورا جوړول په اوسني وخت کې یو ضروري کار دی، چې شورا د قام په سر کې باید چې وي او کوم مسایل چې په کلیو کې او وروری کې شته یا پیداکېږي د شورا دنده ده چې د ولسونو په منځ کې مسایل په وخت او زمان حل او فصل کړي، د نورو قومونو سره او د ټولو ګاونډیانو

سره لاپسې نېکه رابطه ټینګه وساتي او قام د ځانځانی ځنې وساتي په یو ټړون او په ملي یووالي سره د هېواد په بیا رغونه او ابادۍ کې پوره ونډۀ واخلي، په دې درنه غونډه کې دغو لاندې کسانو خبرې وکړې:

الحاج اکرم خان

سید رسول عابد

استاد عبدالشکور شکورزاد

مدیر صاحب غلام غوث ساووال

حبیب الرحیم فضلي

محمدطاهر اخطار

په وار وار سره ګټورې خبرې وکړې او د قام په سر کې د یوې شورا جوړول او د منظم کار او فعالیت غوښتنه او ټینګار وشو.

په دې لویه او درنه غونډه کې د ولسونو په استازیتوب لاندې مشرانو برخه او ګډون درلود:

الحاج عبدالباقي فضلي

الحاج محمدطاهر اخطار

الحاج خانزاده ګوار

ډګروال حبیب الرحیم فضلي

الحاج ګلاب سید خاموش

الحاج محمدعثمان

الحاج عبدالجلال

معلم اکبر سید ستومان
الحاج عبدالمتین
استاد حیاوالدین
الحاج زیارت ګل
د ځوانانو د شورا رئیس فضل اکبر
الحاج نورجلال
الحاج محمدعثمان
استاد جمعه الرحیم
شفیع الله سانین
قاري شکرالله

## له نشه ګام څخه:

جمعه دین
محمد حسین
نیازمحمد
سلطان
علي احمد
رحمن الله
احسان الله

## له دو کلام څخه:

الحاج اکرم خان
حاجي عبدالشکور شکورزاد

حاجي نور اکبر خان

حاجي ګل زمين

الحاج زين الله خان

## له بريکوټ څخه:

الحاج عزيز الرحمن عزيزي

الحاج محمد زمان

## له رام څخه:

الحاج ملک جان

حاجي معتبر خان

## له ساو څخه:

مدير غلام غوث ساووال

جمال الدين

سلطان

په غونډه کې د ډېرو خبرو اترو او مذاکرو وروسته حاجي صاحب اکرم خان ددې شورا د عمومي مشر په توګه د برخوالو په انتخاب سره د رئيس په توګه انتخاب شو، د غونډې برخوالو مشرانو له خوا ورته مبارکي وويل شوه.

بيا حاجي اکرم خان د نوې شورا رئيس په توګه داسې خبرې وکړې: ورونو مشرانو ځوانانو له تاسو څخه ډېره مننه چې د شورا د رئيس په توګه مو ماته رايه راکړه او ډېر زيات اعتبار مو وکړو، ستاسې د ټولو څخه يوه دنيا مننه، تاسو ته او د ځان لپاره د لوی

خدای(ج) د درگاه ځنې مرسته غواړم او د کاروټو د لا منظمولو او مشورو لپاره يې د هر کلي څخه څلور يا دوه تنه مشران دوکلام ته دعوت کړل چې هلته به په ستونزو خبرې وشي او د حلولو لپاره به پرېکړې وکړو.

دغه درنه غونډه د فضلي صاحب په دعا سره پايته ورسېده.

## د مبارکې لپاره لويه غونډه:

پر ۱۷-۱۲-۱۳۸۸ نېټه د حاجي اکرم خان په کور کې يوه درنه قومي غونډه وشوه، چې دغو ښاغلو په کې ګډون درلود:

حاجي صاحب اکرم خان

مولوي صاحب ملازاده

استاد عبدالشکور

استاد غلام غوث

ازادخان

استاد حياوالدين

حاجي ملک محمدطاهر

حاجي ملک جان

حاجي خانزاده ګوار

حاجي محمدزمان

حاجي خالد خان

حاجي ثناالله خان

حاجي زين الله خان

په غونډه کې لومړی د مولوي صاحب ملازاده له خوا د قران



شریف څو ایتونه ولوستل شول او د خیر دعا په کولو سره غونډه پیل شوه.

د غونډې په سر کې محمدنواز سانین د غونډې ګډون کوونکو ته په ډېر درنښت سره د غونډې ګډونوالو ته د شورا د جوړېدو او نوي رئیس ته د هغه د انتخاب له امله چې قومي مشرانو له خوا د شورا د رئیس په توګه ټاکل شوی و، مبارکي وویله او نورو مشرانو او د شورا ټولو غړو ته یې وویل: د شورا جوړېدل او د شورا د غړیتوب حاصلول د مشرانو لپاره د ویاړ خبره ده، تاسو د ولسونو د ارمان لپاره دلته راټول شوي یاست.

تاسو د ولسونو د غوښتنو په منظور د ولسونو د خدمت لپاره په ولس کې غوره شوی یاست، ستاسو لپاره په کار ده چې د خپل ولس د خپل هېواد لپاره او د سولې د تامین په لاره کې ډېرې هلې ځلې وکړئ. ددې قومي شورا اهداف او ارمانونه اسلامي او افغاني دي، زموږ او ستاسې ټول فعالیت به د اسلام د مبین دین په رڼا کې مخکې ورل کېږي، د وطن او د ولسونو د خدمت لاره یوه پاکه، سپېڅلې او انساني لاره ده که هر چا په دې لاره کې نېک قدمونه پورته کړل، الله پاک په هغه کارونو کې برکت اچوي، اوس د قومي مشرانو او ددې شورا دنده ده چې د نېکو کارونو د سرته رسولو لپاره په ټول قام کې د ولسونو د یووالي لپاره دوامدار کار او فعالیت ترسره کړي. ددې شورا دنده ده چې د هېواد د ټولو قومونو او ولسونو سره د اسلام د مبین دین د احکامو په رڼا کې د افغانیت او د ورورۍ ټینګې اړیکې لاپسې ټینګې کړي او د قام په منځ کې خفه ورونه په جرګو او مرکو پخلا کړي.

وروسته حاجي صاحب خانزاده ګوار خبرې وکړې او ویې ویل: ټول ولسونه باید د شورا د غړو سره مرسته وکړي، دا شورا د ولس ده او ولس د شورا کارونه او فعالیتونه ګوري موږ باید خپل ولسونو ته ښه امتحان ورکړو.

وروسته استاد مولوي صاحب ملازاده، استاد عبدالشکور، استاد غلام غوث، حاجي محمد طاهر اخطار، حاجي صاحب ملک

جان او استاد عزيزي خبرې وکړې چې د شورا په اهدافو يې بېلابېل هر اړخيزې تائيدي خبرې وکړې.

د غونډې په پای کې حاجي صاحب اکرم خان داسې خبرې وکړې: ګرانو ورونو يو ځل مخکې هم د دير کوهستان او ددې محل ولسونو زه د قومي رئيس په توګه انتخاب کړی وم، دا دويم ځل دی ددې لوړ مقام او اعتماد له امله چې تاسو درنو مشرانو او همزولو ددې کار د رياست لپاره زه غوره کړی يم او اعتماد راباندې شوی، ستاسو ټولو مشرانو او همزولو او ځوانانو څخه يوه دنيا مننه کوم. په خپل نوبت ددې شورا جوړېدل تاسو ته مبارک وايم او د ښه کارونو د سرته رسولو او اتفاق او يووالي لپاره ستاسو پوره او ډېره توجه غواړم، موږ په يووالي کې په بري سره ښه کارونه ترسره کولی شو، بې له ولسي يووالي هيڅ کار په ښه توګه سرته نه شي رسېدلی، زه ډېرې خبرې نه کوم. راتلونکې جمعې ورځې ته په بريکوټ کلي کې زموږ قومي غونډه به د حاجي صاحب زمان په کور کې انشاالله کېږي، ټول د شورا انتخاب شوي غړي به ګډون کوي، ځکه چې مرام نامه او اساسنامه د شورا په تصويب کېږي او محمد نواز سانين ته دنده ورکوم چې د شورا د اهدافو او سيستم او تشکيل په هکله مکمله ليکنه وکړي، چې غونډې ته د تصويب او د نظر اخيستلو لپاره وړاندې شي چې د شورا د کار پلان او پروګرام به ټولو غړو ته روښانه شي او خپل کار به په هوښيارۍ او صداقت مخې ته وړو.

دغه درنه غونډه د دعا په کولو سره د مازیګر په درېو بجو پایته ورسېده.

## د قومي شورا اهداف او تګ لاره:

د ۱۳۸۸ ل کال د کب د میاشتې په ۲۱مه نېټه د غرمې نه مخکې د جمعې په ورځ د بریکوټ د حاجي محمدزمان په کور کې یوه درنه غونډه جوړه شوه، په سر کې د مولوي صاحب ملازاده له خوا د قران شریف څو ایتونه قراءت شول او د دعا په کولو سره غونډه پیل شوه.

د غونډې په سر کې محمدنواز سانین د غونډې په اړه خبرې وکړې او د شورا مسوولیتونه او دندې یې په ډاګه کړې او ویې ویل: نن ورځ د لومړي ځل لپاره د قومي شورا اهداف او تګلاره د تصویب لپاره ستاسې په وړاندې ویل کېږي د شورا هر غړی په مسوولیت سره حق لري چې هره ماده وڅېړي خپل نظر وړاندې کړي ځینې شیان په مشوره کم یا زیات شي.

د محمد نواز سانین له خوا د قومي شورا اهداف د اول نه تر اخره پورې چې ټول د (۲۰) مادې لري د شورا د اکثریت په خوښه د تائید وړ وګرځېدل.

وروستې په شورا کې پرېکړه وشوه چې د هر کلي د شورا رئیس د عمومي رئیس مرستیالان قبول شو او عمومي رئیس ته او خپلو کلیوالو ته او عمومي شورا ته مسوولیت لري.

پرېکړه وشوه چې حاجي ملک جان د رام د عمومي رئیس لومړي مرستیال په توګه د شورا غړو وپېژندل شو او د ټولو په اکثریت رایو سره تائید شو.

په دې غونډه کې ډګروال خانزاده ګوار د شورا د ویاند په صفت او حاجي ملک محمد طاهر اخطار د مالي او لګښت د چارو مسوول شو.

مدیر غلام غوث ساووال د پېښنو او کلیوالي ستونزو د مسوول په توګه د شورا د غړو د اکثریت په رایو سره وټاکل شو او پرېکړه وشوه چې د هر کلي ملا امام دې په شورا کې قضایي کمېټې هئیت شامل شي د رایو په اکثریت تایید شو، په دې غونډه کې چې د غرمې پورې دوام وکړ، لاندې مشرانو او سپین ږیرو برخه لرله:

حاجي اکرم خان

حاجي عزیز الرحمن

مولوي ملازاده

استاد عبدالشکور

حاجي ملک جان

حاجي معتبرخان

حاجي عبدالباقي فضلي

ملک محمد طاهر اخطار

خانزاده ګوار

عبدالولي

حاجي محمدزمان

حاجي ګل محمد

حاجي اکرم جان

فضل رحمن

ملی خان

ګل افضل خان

په دې درنه غونډه کې حاجي عبدالباقي فضلي او حاجي ملک جان، حاجي خانزاده، حاجي اکرم جان او مولوي ملازاده، استاد عبدالشکور په وار خبرې وکړې، غونډه پوره ۱۲ بجې د دعا په کولو سره پایته ورسېده او د شورا ټول غړي د جمعې دمبارکې ورځې لمونځ لپاره د بریکوټ جامع جومات ته روان شو او د بریکوټ د کلیوالي ښه یووالي په منظور پرېکړه وشوه چې د لمانځه نه وروسته به د حاجي رئیس سلطان کور ته ټولېږي او د بریکوټ د مشرانو سره به د ستونزو په اړه خبرې وکړو تر څو د حل لاره په ګډه ولټول شي.

## د قومي شورا اهداف:

۱- قومي شورا به د اسلام د مبین دین د احکاماتو په رڼا کې خپل ټول کارونه سرته رسوي.

۲- د ګران هېواد د پت او عزت په ساتلو کې د ملي بیرغ د سیوري لاندې، د سولې امنیت او یووالي د ټینګښت لپاره په دوامداره توګه په ایمانداری سره فعالیت کوي.

۳- د ټولو ولسونو د ستونزو او په محل او سیمه کې د نېکمرغه امن ژوند لپاره د پوره عدالت او یو پر بل د پوره اعتماد او باور د منځته راوړو لپاره په ولسونو کې کار او فعالیت کول.
۴- د خپل کلتور او خپلې ژبې او ادب لپاره د هېواد د کلتو راو د ادب د پرمختګ لپاره دوامداره کار کول.
۵- د افغانستان د اسلامي جمهوریت او حکومت او نور اجتماعي ارګانونو سره د نېکو اړیکو ټینګول.
۶- په محل او سیمه کې د ټولو قومونو او ولسونو سره د اسلامي اصولو سره د اړیکو ساتل او ټولو قومونو ملیتونو حقوقو ته درنښت او درناوی.
۷- د افغانستان د اساسي قانون په رڼا کې د کوهستان د مدني، سیاسي، فرهنګي، کلتوري او نورو برخو کې د حقوقو د اعاده کولو په خاطر دوامداره کار او فعالیت.
۸- د قام په منځ کې چې کومې ستونزې شته او یا رامنځته کېږي د ناوړه پېښبور د مخنیوي لپاره په دوامداره توګه کار او فعالیت.
۹- د قومي شورا رئیس او معاونین او غړي د ولسونو د نمایندګانو د اکثریت رایو سره انتخابېږي.
۱۰- د شورا رئیس، معاونین او د شورا غړي د یو کال لپاره انتخابېږي.
۱۱- قومي شورا په میاشت کې یوځل خپله غونډه کوي، خو د شرایطو او ستونزو د حل لپاره ژر ژر هم غونډه کولای شي.

۱۲- د شورا د رئيس نه موجوديت په وخت کې اول مرستيال د شورا د رئيس په توګه صلاحيت لري.

۱۳- د قومي شورا هغه پرېکړه د تاييد او منلو وړ ده چې اکثريت له خوا تاييد شوې وي.

۱۴- د شورا هر غړی د ځان او د شورا د حيثيت او اعتبار لوړول په منظور فعاليت کوي.

۱۵- د شورا هر غړی مکلفيت لري چې د شورا هر تصميم په ځان او نورو عملي کړي.

۱۶- د شورا هر غړی چې بې له معقول عذر څخه درې ځل د شورا غونډې ته حاضر نه شو، د شورا د غړيتوب څخه ايستل کېږي او په عوض يې بل کس د شورا غړيتوب ته منل کېږي.

۱۷- د شورا نوبتي او عاجلې غونډې د رئيس په تصميم په مختلفو محلونو کې کېږي.

۱۸- د شورا هر غړی چې د شورا د اجازې پرته کوم ناوړه عمل وکړي د شورا د غړيتوب څخه ايستل کېږي.

۱۹- د شورا مالي لګښتونه د قام او د ولسونو په اعانو، چاندو باندې سرته رسېږي.

۲۰- شورا دنده لري چې خپل د کار او فعاليت په اړه قام او ولس ته د کال په اخر کې خپل د عملي کارونو راپور وړاندې کړي.

## د ځمکو او جايدادونو د خرڅون په هکله د شورا پرېکړه:

۱- که هر څوک خپله ځمکه او یا جایداد خرڅوي، نو خپل د کورنۍ ټول غړي (ورثه) خپلوان به د ځمکې او جایداد په خرڅون خبروي.

الف- که چېرې څوک ځمکه او جایداد خرڅوي اول حق د هغه د کورنۍ د غړو (ورثه) دی چې ځمکه یا جایداد واخلي.

ب- که چېرې د کورنۍ نږدې غړي (ورثه) د ځمکې یا جایداد د اخیستلو څخه انکار وکړي، نږدې نور خپلوان د ځمکې اخیستلو حق لري.

ج- که چېرې خپلوان هم د ځمکې جایداد د اخیستلو انکار وکړي، بیا نو کلیوال حق لري چې ځمکه یا جایداد واخلي او اول مستحق کس د ځمکې شفع ګڼل کېږي.

د- هېڅوک حق نه لري چې خپل جایداد او ځمکه په پټه په نورو خرڅ کړي او قام ولس ته لانجه جوړه کړي، هغه به قام ته ملامت او تورمخی وي.

# طبابت او دارو درمل

ګوار خلک د هر ډول ناروغيو په مقابل کې د وطني نباتاتو او د مېوه جاتو څنې دارو درمل جوړوي او په دې برخه کې ډېر زيات مهارتونه لري او په کلي کې مسلکي اشخاص شته چې د يو نسل نه بل نسل ته د دارو درملو جوړولو په کار کې پخه تجربه لري چې دا دارو درمل جوړونکي د حکيم يا طبيب په نوم يادېږي. د طبابت په کار کې نارينه او ښځې پوره پوره تجربه لري او د هر ډول ناروغيو لپاره ځانته ځانته داروګان او علاجونه کوي. ګوار خلک د نن ورځې د عصري طبي داروګانو څنې وطني حکيمي داروګان چې د محلي بوټو او مېوو او رنګارنګه ګلانو څخه جوړېږي، ډېر زيات ارزښت ورکوي او وايي چې عصري طبي کيماوي داروګان تاوان لري او هغه داروګان چې د کلي او کور حکيمان يا طبيبان جوړوي ګټه لري، خو تاوان نه لري، همدا سبب دی چې په کلو او بانډو کې د اړتيا په وخت کې خلک وطني داروګان استعمالوي، يوه ناروغي چې ګواريان ورته (شکنډړ) وايي او په عصري طب کې ورته پنډيسايډ وايي علاج نه لرلو او اپرېشن يې نه شي کولی نورو ټولو ناروغيو لپاره ښه ښه او ګټور او ژر اثر لرونکي داروګان شته چې ولسونه يې په استعمال سره په کوره روغتيا خښتنان کېږي. د لاندې ناروغيو لپاره دارو درمل جوړېږي او استعمالېږي:

۱- تبه

۲- د ملاریا تبه
۳- د محرقې تبه
۴- د ګېډې درد
۵- د اسهال لپاره
۶- د سینه بغل لپاره
۷- د ګردو او مثانې لپاره
۸- د غوږونو لپاره
۹- د سترګو لپاره
۱۰- د جلدي ناروغیو لپاره
۱۱- د ماشومانو د هر ډول ناروغیو لپاره
۱۲- د نارینه وو مردانه قوت لپاره
۱۳- د فالج لپاره
۱۴- د ګوزڼ لپاره
۱۵- د سیل یا تبرکلوز لپاره چې د تبګۍ په نامه یادېږي
۱۶- د زړې لپاره
۱۷- د زخمونو لپاره
۱۸- د دانو لپاره
۱۹- د لړمو یا د خارښ لپاره
۲۰- د مخ د لکو لپاره
۲۱- د ښځو د ډول ډول ناروغیو لپاره
۲۲- د ښځو د میاشتنۍ ناروغیو د روغتیا لپاره

۲۳- د سالنډۍ لپاره

۲۴- د زهرجنو موادو پر ضد داروګان

۲۵- د زړه بدوالي (کانګو) لپاره

۲۶- د اشتها لپاره

۲۷- د تقویې او قوت لپاره

۲۸- د بې اولادو نارینه او ښځینه ناروغانو لپاره

۲۹- د ستوني درد لپاره (تانسل)

۳۰- د ټوخي او زکام لپاره

ګواریان د ښځو د اولادې (ولادت) په ناروغیو کې ډېره پخه تجربه لري او د هر ډول ناروغیو لپاره دارو او درمل استعمالوي او د خطرناکو پېښو مخنیوی په اسانۍ سره کولی شي.

کله چې نوی ماشوم تولد شي سملاسي پاک سوتره پرېمینځل کېږي او د پوره روغتیا لپاره یې د مور او ماشوم سره ډېره توجه کېږي. پته دې نه وي چې د نوي تولد شوي ماشوم خواته یوه چاړه یا چاقو خواته کېږدي، ماشوم ته سترګې په رنجو توروي او په روښې او سېزني باندې یې تړي او په سر تړوني باندې ورته سر تړل کېږي. د ماشوم لپاره او د ماشوم د مور لپاره د ماشوم په شمول د مخکې نه پاک لباسونه چمتو شوي وي، د ماشوم مور هم ځان د تولد څخه وروسته پاک سوتره په پاکه بستره د څو ورځو لپاره ارام کوي او په دغه شپو او ورځو کې ښه ښه غذایي مواد او خوراکونه ورکول کېږي، د ډېر وخت لپاره د ماشوم مور ددې لپاره چې د تولد شوي

ماشوم حفاظت وشي د هر ډول کارونو کولو څخه ډډه کوي، خپل خپلوان او دوستان يې د خوراکي موادو سره د ماشوم د مور ليدلو ته په درناوي ورځي. په دې برخه کې د زياتو معلوماتو لپاره د ګواري رسمونه او دود ( ) کتاب په زړه پورې مطالب لري چې لوستل يې مه هېروئ.

## د نبض او رګ کتل:

دا خو ټولو ته څرګنده او ښکاره ده چې اوس نړيوال ولسونه په يوويشتمې پېړۍ کې ژوند کوي او د تمدن او د عصر په رنګارنګو الاتو نړيوال مجهز شوي او ورځ په ورځ نوي نوي الات او سامانونه د ولسونو د ژوند د سهولت او اسانتيا لپاره منځ ته راځي، چې يو ددې سامان الاتو څخه طبي نوي عصري مډرن او کمپيوټري معاينات او تلويزيوني معاينات دي، ګواري ولسونه د ناروغۍ په ضد د روغتيا په منظور د ساده او اسانو طريقو څخه کار اخلي چې يو هم کليوال او يا د سيمې طبيبان شته چې د ناروغ حالات او ناروغ ته پيدا شوې ناروغي د فزيکي معاينې په اساس چې د ناروغ سترګو ته ګوري او ژبه يې ګوري او نبض او رګ ورته د خپلو لاسو په ګوتو ګوري او ناروغتيا ورته د ډېرو ژورو معايناتو وروسته بيانوي. د ناروغ سره سوال او ځواب کېږي او بيا ورته د پېښې شوې ناروغۍ په اړه معلومات ورکوي او دارو درمل ورته د هدايت او پوره لارښوونې وروسته د استعمال طريقې سره ورکوي چې په

دي اړه ډېر ګواریان په کلیو او سیمه کې شته چې دا ډول داخله ناروغیو لپاره علاج او تداوي لپاره دارو درمل ناروغ ته ورښیي چې په دې ډول طبیبانو کې محترم مرحوم صدرعلي یو مشهور او لایق طبیب تېر شوی، مشران وایي چې نوموړی ډېر باتجربه او ماهر طبیب نوم او مقام درلود چې د ناروغ د کتنې او د پوره فزیکي معاینې وروسته د ناروغ ناروغۍ په هکله ښکاره وضاحت ورکول او د روغتیا لپاره چې کوم دارو درمل د نوموړي له خوا ورکول کېدل، زیات ناروغان به سمدستي د روغتیا خاوندان شول، د نوموړي لاسونه او دارو درمل به ولسونو ته د هر ډول کړاوونو لپاره شفا ورکوله په دې توګه نور لایق او باتجربه طبیبان شته چې د ډېرو تجربو خاوندان ګڼل کېږي. همدا راز ډېرې د پخو عمر لرونکې ښځې شته چې په سیمه او کلیو او کورونو کې د ښځینه ناروغیو لپاره په زړه پورې معاینات کوي او د ماشومانو او نورو ناروغیو لپاره دارو درمل جوړوي او اړو کسانو ته یې ورکوي، چې د ګواریانو په کلیو او باندو کې دغسې طبیبانې ښځې او نارینه شته چې د ولسونو له خوا د تجربو او طبي کارونو په اساس پېژندل شوي او په ولسونو کې د شهرت مقام ته رسېدلي دي. د ځینو ناروغیو د له منځه وړلو په خاطر په زړه پورې ساده طریقو څخه کار اخلي چې د لیدونکو او اړو کسانو لپاره په زړه پورې او د حیرانتیا وړ یادونه د تل لپاره په زړه کې پاتې کېږي.

باید وویل شي چې په کلیو کې د ګواریانو په کورونو کې د اړتیا لپاره د ناروغیو د مخنیوي ځینې وطني دارو درمل ساتل کیږي چې د اړتیا په وخت کې ترې کار اخلي او که ناروغتیا زیاته وي نو بیا د کلي مشهورو کسانو ته د علاج او معاینې لپاره ورځي.

## د هډوکو طبیب او جادوګر تاثیرات:

زموږ د ښکلي او رنګین هېواد غېږه د هسکو غرونو او تاترو او ګړنګونو څخه ډکه ده او زیات ولسونه او قومونه یې په غرو رغو او رنګینه سردرو کې ژوند تېروي، انسانان د ژوند په بېلابېلو اړخونو کې د ډول ډول پېښو سره مخامخ کیږي او بیا هغه ولسونه چې د هسکو غرو او پراخو ځنګلونو کې شپې تېروي یوه هم د هډوکو د ماتېدو او د هډوکو د بې ځایه کېدلو پېښې دي چې ولسونو ته دغه ډول ستونزې خامخا مخې ته راځي لکه:

۱- د پښو ماتېدل
۲- د پنډۍ ماتېدل
۳- د ورون ماتېدل
۴- د اوږې ماتېدل
۵- د لاس ماتېدل
۶- د ګوتو ماتېدل
۷- د پښتو ماتېدو
۸- د لګن خاصرې ماتېدل

۹- د سلا ماتېدل

۱۰- د څټ ماتېدل

۱۱- د متو ماتېدل

۱۲- د څنګلو ماتېدل

۱۳- د سر ماتېدل

۱۴- د پښو او د لاسو د کار ماتېدل

دا هغه د هډوکو د ناروغیو بېلګې دي چې د هډوکو د ناروغیو یا پیدا شویو ستونزو په نامه یادېږي او دغه ډول ستونزې خامخا په کلو، بانډو او حتی په ښارونو کې ورسره ولسونه مخامخېږي. الله پاک انسان ته په خپل قدرت سره ډېر ښه صورت او اندامونه ورکړي دي. کله چې کوم انسان د هډوکو د ماتېدو سره مخامخ شي او یا یې هډوکیي ژوبل شوي وي یا درز یې کړی وي چې په طب کې ورته (کسر) وایي یا هډوکي د خپل ځایه بې ځایه شوي وي، نو انسان ته ډېر زیات دردونه او کړاوونه پیداکېږي. په اوسني وخت کې د هر ډول د هډوکو د ماتېدو او بې ځایه کېدو په صورت کې عصري طب په روغتونونو کې د عکس (اکسري) په واسطه معلومات ترلاسه کوي او بیا د طب په رشته کې د هډوکو مسله یوه پېچلې څانګه ده چې د «ارتوپیدي» په نوم یادېږي. د هډوکو د برابرولو لپاره عصري نوي نوي الاتو څخه کار اخلي، خو بیا هم سره له دې عصري سامان الاتو په لرلو سره د هډوکو د درد اخته ناروغانو ته په روغتونونو کې په سلو کې پنځوس ناروغان د ډاکترانو د کار څخه رضایت نه

لري او حتی کله کله د هډوکو د ناروغیو اخته کسانو ته د علاج او تداوۍ باوجود نورې نوې ستونزې پیدا کېږي او ناروغ لا پسې په نویو دردونو مبتلا کېږي او د څو څو ځل اپرېشن سره مخامخېږي، نو نتیجه یې لا ښکاره نه وي، ځینې د هډوکو ناروغانو ته وزن لرونکي پلسترونه تړل کېږي چې مات هډ یا هډوکی نه شي کولی وخوزوي تر څو پلستر میاشت یا څو میاشتې پس اره نه شي د هډوکي د پیوند یا د جوړېدو معلومات نه کېږي، په هر صورت دا ډول ستونزې په روغتونونو کې د ارتوپیدي په سرویسونو کې زیاتې لیدل کېږي.

په ګواریانو کې د هډوکو د رامنځته شویو ناروغیو د مخنیوي او علاج لپاره د هډوکو خاص او خاص خانداني طبیبان شته چې د هډوکو دناروغانو په وجود لاسونه ووهي او مات هډوکي په اسانۍ سره یو د بل سره نښلوي او تړي یې، د هډوکو هم ډول ډول راپېښ شوې ناروغتیاوې شته. د هر ډول مات شویو هډوکو او هر ډول هډوکو د بندونو ځای په ځای کولو لپاره د ګواریانو د هډوکو طبیبان په خپلو لاسونو باندې په قالبي شکل سره د منظم تړلو لپاره د لرګو او یا د دورمو څخه قالبونه جوړوي اول ډېر په دقت سره د هډوکو په مات شوي ځای په خپلو لاسونو د فزیکي معاینې په واسطه په غور سره ګوري هر کله چې طبیب د مات لاس، پنډۍ ورون یا نورو غړو ژوبل او مات ځای تثبیت کړو، ناروغ انسان لپاره هډوکي د خپلو لاسونو پواسطه منظموي او تړي یې. که چېرته

لویان وي لس دولس ورځې وروسته تړل شوی وطني پلستر پرانیزي، د لوی الله(ج) په قدرت مات شوی د هډوکو تثبیت ځای یو د بل سره پیوندوي، نور څه مشکلات نه لري او دوباره د هډوکو ماتولو ته څه اړتیا نه لیدل کېږي.

په همدې ترتیب هغه هډوکي چې له خپله ځایه بې ځایه شوي وي په اسانۍ سره په خپل ځای کې ځای پر ځای کېږي. په ګواریانو کې د هډوکو د ماتېدو، د تړلو او د هډوکو د بندونو د بې ځایه شویو غړو لپاره ډېر طبیبان شته، خو په ټول ګوار ولسونو کې د مرحوم حبیب رسول د کورنۍ غړي ډېر مشهور دي.

ددې کورنیو ټول نارینه او حتی ښځې د ماتو هډوکو د پیوند او تړلو له برخه کې لوی لاس لري او هر ناروغ ته چې د دغو کسانو له خوا لاسونه غزول شوي، نو خدای(ج) ورته ډېر ژر شفا په نصیب کړې او د هرې منطقې او سیمو څخه ورته هره ورځ خلک د تداوۍ او علاج لپاره راځي. حتی ځینې ناروغان ورته د چترال، دیر، شرقي نورستان، دروش او براول څخه هم راغلي، خلک وایي چې مرحوم حبیب رسول په دې اړه جادوګر لاس لرل او د هډوکو په ناروغیو ډېر ښه پوهېده او د هغه ټول زامن په دې برخه کې پوره مهارت لري چې ددې سیمې او د محل د ټولو قومونو او ولسونو د ستونزو د حل لپاره شپه او ورځ د خدمت ویاړ لري، خو د یادولو وړ ده چې د مرحوم حبیب رسول خور د محترم تبلیغي حضرت محمد مور هم په دغه کارونو کې لوی لاس درلود او دا ډول ښځینه ناروغانو کار به

يې په خپله کاوه، مشران وايي چې د مرحوم حبيب رسول پلار او نيکه هم دغه ډول کارونو ماهرين وو، اوس په ګواريانو کې د هډوکو طبيب محترم محمد رسول ډېر شهرت لري او دده لاس هم خداى شاهد حال دى ډېر زيات دوايي دى، نوموړى د حبيب رسول مرحوم زوى دى او د خپل پلار په قدم روان دى ډېر د نېکو اخلاقو خاوند او يو مهربان شخصيت دى او د خلکو سره ډېره نېکه ګوزاره لري، سربېره پر دې چې د ماتو هډوکو کسانو تداوي او علاج کوي په ورين تندي راغلو ناروغانو ته د ډوډۍ او شپې ورکولو باندې خوښېږي.

دده مشر زوى خان نومېږي چې هغه هم د خپل پلار په قدم قدم اېښى او په خپلو کارونو کې د پلار په لارښوونه پوره تجربه لري او که پلار يې نه وي يا بل محل ته د دا ډول ستونزو د حل لپاره تللى وي، نو خان هم په دې کارونو کې دوايي لاسونه لري.

محمد رسول ماما راته خپله يوه خاطره داسې وويله: زموږ د کلي ملک حاجي رحمت نور چې د پېښور په ښار کې په يوه ترافيکي پېښه کې پوره ژوبل شوى و او يوه پښه يې څو څو ځايه ماته شوې وه، په پېښور کې څو ځل د څو مياشتو لپاره د خپلې پښې د تداوۍ لپاره بستري پاتې شوى و. د ملک رحمت نور د پښې د ماتېدلو او ژوبلېدلو دوه کلونه تېر شوي و، خو د ملک پښه او مات هډوکي ځاى په ځاى شوى نه و او غلط پيوندونه يې اخيستي و. ما ورته ماته پښه معاينه کړه او ماته يې وويل: زه ډېر زيات په تکليف يم

ګرځېدلی نه شم او ګوډ یم ما د ملک رحمت نور په خوښه د هغه پښنه (پنډۍ) بیا ماته کړه او بېرته مې ورته په منظم ډول سره وتړله دولس ورځې وروسته مې تړل شوی ځای پرانیستو ومې کتل چې پښنه منظمه پیوند شوې، ومې خندل. ملک رحمت نور موسکی شو او راته یې وویل چې ولې خاندې؟ ما ورته وویل مبارک دې شه چې پښنه دې جوړه ده او څه ستونزه نه شته، ملک رحمت نور راته وویل: افسوس وروره چې اوس مې په سترګو رڼا راغله او دوه کاله مې په روغتونونو کې هسې شپې تېرې کړې او ډېر کړاوونه مې وګالل او ولیدل. دا چې د محمدرسول ماما کورنۍ د ډېرو ولسونو قومونو خدمت کړی او کوي یې، لوی خدای(ج) دې ورته په اخرت کې اجرونه په نصیب کړي.

# د شهیدانو جنازې

کله چې زموږ د هېواد جنتي غېږې ته د وخت د شوروي کمونیستي پوځونو په توره شپه کې پر (۱۳۵۸ل) کال د مرغومي په شپږمه نېټه یو ناڅاپه په توره شپه یرغل وکړ او ببرک کارمل یې په خپلو ټانکونو او اوږو سپور د کابل په تخت کېناوه او د حفیظ الله امین رژیم د روسانو د کمونیستي پوځونو په راتګ سره ټول افغانان په ښارونو او کلیو او بانډو کې په احساساتو راغلل او د مقدس جهاد لپاره لوی واړه چمتو شول، د ناړۍ (کوهستان) مرکزي ولسونه هم د نورو هېوادوالو په څېر د وطن او د ولسونو سره یوځای د جهاد او قربانۍ لپاره د روسي کمونستي پوځونو د ناکامۍ لپاره په ټول کوهستان کې یو موټی شو او د جهاد په منظور چترال دروش ته هجرت وکړ او د لوی خدای(ج) د رضا لپاره د مال، جایداد او هر څه نه تېر شول او د جهاد مورچلونو د لیاوړتیا لاره یې خپله کړه.

د کوهستان قام زیاتو ولسونو (ناړۍ، دوکلام او بریکوټ) پر (۱۳۶۰ل) کال د هجرت سپېڅلې لاره خپله کړه، خو د نشه ګام او د ساو ولسونو د (۱۳۵۷ل) کال ځینو کسانو او کورنیو د جهاد لاره غوره کړې وه. د ناړۍ او د دوکلام ولسونو یوځای په یو تصمیم چترال دروش کله ټاک کیمپ کې مېشت او د هجرت شپې یې

تېرولي. د ناري مرکزي ولسونه اکثریت د قلم او د پوهې خاوندان دي نسبت نورو قومونو ته په منطقه کې د کوهستان ولسونه ازاد خیال تعلیم یافته او روښنفکران ګڼل کېږي او د خپلو بچو او اولادونو په ښوونه او روزنه کې ډېر پوره د ښوونې او روزنې تعلیمي کارونه سرته رسولي. کوهستاني نرم مزاجه ولسونه دي په دوستۍ کې ټینګ ولاړ ولسونه دي او هېڅ ته د بدو رسولو خیال او فکر نه لري. د اسلام د مبین دین خاص او خاص پتنګان دي او د اسلام د احکاماتو خلاف کارونه ورته ننګ او شرم ښکاري، کوښښ کوي چې نورو ولسونو ته یې خیر ورسېږي او هېڅ ته د دوی له خوا تاوان او یا خطرناکه مسایل ورپېښ نه شي.

په خپله خبره ولاړ خلک دي او د هر راز تېري، تجاوز، ډاکو، برمتو، قتل او هر ډول لانجو په خلاف عمل کوي، دوی ته خدای(ج) ډېر جایدادونه ورکړي او په خپل حق قناعت لري او د بل چا جایداد او شتمنیو ته اړ نه دي، ښه صالح خوی لري، د ګاونډیانو سره ښه سلوک لري او په مېلمه پالنه کې ډېر لوړ مقام لري، باننګه او غیرتي ولسونه یې خوښېږي د خیر او ایمانداري کارونو کې له هر چا څخه مخکې دي، رحم دل، زړه سوانده، صابر او ارام ولسونه دي، د بل چا حق او حقوقو ته درناوی لري او د خپل حق او حقوقو څخه هم د سر په بیه دفاع او ساتنه کوي. په دې ولسونو کې ټګي برګي نه شته او هر څه یې لکه د لمر روښانه ښکاري.

کله چې د کوهستان مرکزي ولسونه د نورو ولسونو سره یوځای د هجرت په وخت کې چترال کې تېرول یو شمېر بې ضمیره بې وجدانو کسانو چې واقعاً د جهاد په مقدس هدف او مقصد نه پوهېدل او د جهاد مقدس نوم نه یې ځانته شخصي ګټه پورته کوله او د بې ایمانۍ په وجه د جهاد او د روسانو کمونیستانو په ناکامۍ باندې باور نه درلود، د ناړۍ د مرکزي ولسونو زراعتي او للمي ځمکې یو شمېر ځناور صفتو کسانو د اسلام د مبین دین د احکاماتو خلاف په خپلو کې تقسیم کړې وې او ځانونه یې مجاهدین ګڼل. د ناړۍ کوهستاني ولسونه پوهېدل، چې جهاد د لوی خدای(ج) د رضا لپاره یو فرضي عمل دی چې په هر انسان فرض دی هر کله چې جهاد کامیاب شي روسان به ناکامېږي او زمونږ د جنتي خاورې نه به یوه ورځ خامخا بې ایمانه روسان په تېښته خپل وطن ته ځي، دا د ټولو افغانانو د باور خبره وه خو هغه کسان چې د اسلام د دین د احکاماتو څخه پوره خبرتیا نه لرله او د ځانونو څخه یې لېونیان جوړ کړي وو او د پردو مال او جایداد ته یې خپل ویل د بل چا کلي کور د بل چا حاصلاتو ته یې خپل ویل دومره زیات لېوني شول چې د ناړۍ د کوهستان د ولسونو زراعتي او للمي ځمکې او نور جایدادونه یې په خپلو کې ووېشل او دا خبره یې کوله چې دا شتمني مونږ ته په غنیمت کې پاتې ده، چې اصلاً د غنیمت په مانا او مفهوم نه پوهېدل، د قران پاک د احکاماتو څخه ناخبره پاتې وو.

یو شمېر کسانو چې د اسلام او د جهاد په مقدس مفهوم نه پوهېدل د نارې د کوهستاني خلکو زراعتي او للمي ځمکې یې په خپلو کې تقسیم او ووېشلې د ډېر زور او واک اختیار خاوندان ډېر حق واخیست او نورو په نوبت نوبت د بل چا ځمکې ګز او پل کړه او نښې نښانې یې د بل چا په میراثي ځمکو باندې کېښودې.

هر چا د ځان لپاره د اوبو ویاله خوښه کړه چې دا ویاله ستا او دا زما، د نارې د کوهستان ولسونه د چترال نه خپل کلي ته خپلو جایدادونو ته راغلل او د نږدې څخه یې هغه کسان ولیدل چا چې په زور او د ځان په خوښه د بل چا حق او ځمکې په خپلو کې وېشلې وې.

د نارې ولسونو ډېر په ارامتیا، هوښیارۍ سره هغو ته وویل: مونږ مړه نه یو مونږ ژوندي یو، بچیان لرو اولادونه لرو دا زمونږ جایدادونه مونږ ته د پلرو او نیکونو په میراث کې پاتې دي، دا د جهاد وخت دی جهاد دوام لري، د ځمکو د تقسیم وخت نه دی؟ مونږ ته کار او جنجال مه جوړوئ، زمونږ د ځمکو بریدونه مه خرابوئ! دا عمل مسلماني عمل نه دی، چې هر څومره نرمي او ملایمي خبرې وشوې د ځمکو تقسیموونکو خبرې ونه منلې نو د نارې مشرانو پرېکړه وکړه چې جنجال او د عوې ته ضرورت نه شته، ځمکه او جایداد زمونږ دي څوک یې رانه بله خوا نه شي وړلای.

ددې لپاره چې موضوع څرګنده شي او پټه پاتې نه شي، لازمه ده چې څو تنه مشران د کونړ ولایت ته ورولېږو چې هلته د دغه ناوړه او

خطرناکه پلان څخه جهادي مشران خبر شي بیا به وروسته څه کېږي؟

د ټولو کلیوالو په مشوره:

۱- ملک نورمحمد خان میرزا

۲- عبدالصمد خان

۳- ملک حاجي عصمت الله خان

۴- حاجي علي احمد خان

دغه څلور تنه مشران د ولایتي شورا د مجاهدینو د خبرتیا لپاره په دعا سره ولایت ته روان شول، دغه یادو شویو کسانو د ناړی څخه ولایت ته په ډاټسن موټر کې حرکت وکړ، استاد حاجي علي احمد داسې کیسه کوي:

موږ په ډاټسن موټر کې په باډۍ باندې ناست وو چې اسمار کې یو دوه تنه د ټوپک (ماشیندارو) سره ډاټسن ته پورته شو یو بل مو نه پېژندل کله چې مو تر (سپینکي) ته ورسېد په اسمار کې پورته شوي وسله لرونکي غږ وکړ! چې موټر ودروه موټر ودرېد وسله لرونکی له موټره ښکته شو او بېرته یې ډاټسن ته ماشینداره ونیوله او ضربه یې وکړه چې ملک میرزا نورمحمد خان او عبدالصمد خان دواړه په مرمیو وویشتل شول، میرزا نورمحمد خان دستي وویل الله اکبر الله اکبر او د شهادت ګوته یې ځانته پورته کړه او عبدالصمد کاکا وروسته پوهه شو چې ټپي شوی یم یو لږ وخت عبدالصمد خان کاکا ژوندی و خو لنډه دا چې دواړه شهیدان شول.

دواړه شهیدان مو بېرته بل موټر ته پورته کړل او د ناړی په لاره مو د هجرت کور چترال ته ورسول. هغه غمګینه او تاریخي نه

هېرېدونکي خاطره د هېرېدو نه وه. هغه ځمکې چې په خپل سر زورواکو په خپلو کې تقسیم کړې وې، هماغه چاته پاتې شوی چې د هغو خپل قانوني پلرنی میراث او حق ګڼل کېده؟

# په کوهستاني قومونو کې کليوالي مسايل او حل لارې

کوهستاني (ګواري او نورستاني) ولسونه چې د نړۍ نامتو محقيقينو د څېړنو له مخې د هسکو غرونو اوسېدونکي اصلي اريايان بلل شوي، ځانته خاص اريايي کلتور او رواجونه لري چې تراوسه پورې دغه اصلي او لرغوني قام د ژوند اصول يې سوچه ساتلي دي.

کوهستاني ولسونه خپل کليوالي او ټولنيز ژوند د خپلو اصولو په رڼا کې ډېر په ښه انساني سلوک سره وړاندې وړي دي، د کليوالي ژوند څخه تر قومي ژوند پورې خاص قوانين لري چې د څرګندو قوانينو له مخې د ژوندانه سمون ورباندې برابروي، په ټول کوهستان او په قومي لحاظ عمومي ټولنيز د ژوند چال چلند يو بل سره د ورورۍ، زړه سوۍ، مرستو او يو بل سره د غم او درد او خوښيو کې ګډه تېر کړې او تېروي.

کوهستاني ولسونه د ژوند د يون او ښه سمون لپاره ټولنيز ګډه قوانين لري چې د خپلو قوانينو او اصولو سره سم خپل ټولنيز قوانينو ته په پوره درناوي سره د ژوند وختونه په هوښيارۍ، زيرکۍ سره سمبالوي. په ټولنه کې د پوره عدالت لپاره د ولسونو د يووالي لپاره او د بدمرغيو د مخنيوي لپاره ولسي قوانين چې د

پخوا زمانو راهيسې په دې قام کې رواج لري او دود او د ستور ګڼل کېږي مرعاتوي او هغه قوانين د کوهستان په ټولو ولسونو او قومونو کې د عملي کولو او تطبيق وړ ګڼل کېږي.

کوهستاني قام هېچا ته حق نه ورکوي چې قومي او ولسي قوانين څوک ونه مني او يا يې عملي نه کړي او هېچا ته حق نه شته چې د قومي منل شويو اصولو څخه سرغړونه وکړي. په کوهستاني قام کې ولسي پرېکړه ډېر زيات ارزښت لري او څوک چې ولسي پرېکړه ونه مني هغه ته ولسونه په سپکو سترګو ګوري، نو هر څوک د ولسي پرېکړو منل يو اخلاقي او انساني لوړ کار بولي. په کوهستاني ولسونو کې د هر کار لپاره اصول شته چې ولسي اصولو درناوی او هغه عملي کول د ولسونو خپل اصول ګڼل کېږي. په دې ولسونو کې د قومي ولسونو او جرګو پرېکړو ته ډېر درناوی کېږي او ولسي قوانين ورته د کاڼو کرښې حيثيت لري.

کوهستاني چې هر چېرته ژوند کوي د ژوند قوانين يې ښکاره او څرګند دي چې دا قوانين په دوه ډوله دي:

۱- عمومي قومي قوانين دي چې ټول قام لپاره.

۲- ولسي کليوالي قوانين

د مثال په توګه په کوهستاني قومونو کې دوکلام، بريکوټ، نشه ګام، ساو، ناړۍ هر کلي ځانته خپل اصول لري، چې دلته موږ د ناړۍ د کليوالي شورا اصول بيانولای شو:

کله چې زموږ له هېواده د شوروي کمونیستي پوځونه د افغانانو د ایمانداري او جهاد په برکت تېښتې ته مجبور شو او زموږ د خوږ هېواد له غېږې څخه ووتل، کوهستاني قومونو بېرته د خپل هېواد غېږې ته وکوچېدل، د وطن حالات برابر نه وو، تنظیمي جګړې لاپسې ګرمې او تودې شوې، سړکونه، لارې او د وطن په غېږ کې ورو ورو وژنه او د وینو تویېدل زیات شو، ګاونډي هېوادونو د خپلو ناولو اهدافو د لاسته راوړلو لپاره لاپسې د هېواد په غېږه کې اورونه تازه کړل یو پر بل بریدونه، یرغلونه ډېر شول، د جهاد مقدس اهداف یو شمېر ناولو او تورمخو انسانانو هېر کړل او د خود خواهۍ او ځان خوښۍ لاره یې غوره کړه، یو تنظیم په بل تنظیم ځان برلاسي کولو لپاره د ټوپک او راکټ او بمونو څخه کار واخیست چې دوی ټولو ناوړه اعمالو کې د هېواد د دښمنانو لاسوهنه د هېواد زورېدلي، کړېدلي، اتل او مجاهد ولسونه ډېر زیات وزورېدل او د نړۍ په مخ هېڅ کوم هېواد په افغانانو زړه سوی ونه کړ، د وطن په غېږه کې د بې عدالتۍ، مرګونو او د وینو تویېدلو نه هېرېدونکې تورې شپې وې. ددې هېواد ولسونو د نړۍ هر ګوټ ته په تېښته پناه وکړه او د وطن په درنه غېږه کې د ویرونو، جنګونو، وسوسو، لړزونکي او بوګنونکي ترخې شپې راغلې او د ولسونو ارمانونه او امیدونه خاورې ایرې شول، چې ددې ترخو او تورو شپو تاریخ روښانه دی. کوهستانی قام هم د خپلو هېوادوالو سره د وطن په غېږه کې دا حالات په خپلو سترګو ولیدل او دا ټول دردونه او

کړاوونه يې وزغمل او د خپل هېواد په غېږه کې توري شپې د خدای په هيله چې سبا به شي په شوګيرو کې تېرې کړې.

دا چې پر (۱۳۶۷ل) کال د شوروي اتحاد پوځونه زموږ د وطن څخه ووتل نور نو لازمه وه چې افغانانو په خپلو کې پوره پيوستون او يووالي سره د وطن ابادۍ ته ملا تړلې وای. د ډاکتر نجيب الله (۱۳۷۰ل) کال د ثور په مياشت کې سقوط شو د وطن دښمنانو خپل تور لاسونه زموږ د هېواد د پولو څخه د هېواد غېږې ته اوږده کړل او د جنګونو داسې لړۍ روانه شوه چې زموږ وسله وال پوځونه د ګاونډيو او نړيوالو دښمنانو له خوا وځپل شول، تشکيلات يې خراب شول، د وطن په هره خوا د جګړو اورونه لاپسې زيات او ګرم شو، د کابل په تاريخي ښار کې په هره څلوېزارې کې د حکومت د جوړولو او ګټلو لپاره جنګي قرارګاوې جوړې شوې او جهادي تنظيمونه لکه ښاماران ميدان ته راووتل چې د ډېرو نښتو او جګړو په وجه د کابل ښار کنډر کنډر شو، ملي شتمني مو خاورې ايرې شوه او ډېره برخه يې لوټ او تالا شوه. په هر صورت د ناړۍ د کليوالي شورا ضرورت، د شورا د جوړېدو مقصد او د شورا وضايف:

## کليوالي شورا دا لاندې مسايلو د حل لپاره جوړه شوې ده:

۱- د ټولو درنو او ايماندارو کليوالو د پوره يووالي او پيوستون شورا مرکزي او د لارښوونې با ارزښته اداره ده.

۲- شورا د ټولو کليوالو لپاره يو پر بل باندې د پوره باور او اعتماد او د کليوالي خپل منځي مسايلو د حل لپاره مشخص تدابير نيسي او په عملي توګه به يې پلي کوي.

۳- د خپل کور، کلي (چم) او ناموس د ساتنې او د امنيت لپاره پوځي تدابير نيسي او د کليوالي ابرو حيثيت ساتلو لپاره د ځوانانو وسله وال ګروپونه جوړول.

۴- د راپيدا شويو جنجالونو، دعواوو او د بريدونو او ورشوګانو د ساتنې او د نورو قومي کليوالي مشکلاتو د حل لپاره د لارو لټول او د ظالمانو د زور زياتي، ناروا کارونو د ترسره کولو څخه په وخت او موقع سره مخنيوی.

۵- د خپلو ټولو کليوالو او قومي حقوقو څخه په هوښيارۍ سره ساتنه او د خپلو حقه حقوقو د ساتلو لپاره لازمي تدابير نيول.

۶- دا چې په ټول هېواد کې د ځانځانۍ وسله والې لوبې روانې دي، د قام او ولسونو ګرېوانونه د پرديو اشخاصو او افرادو او ګروپونو څخه خلاصول او قام او ولس ته په رښتينې او ايماندارۍ باندې صادقانه خدمت کول.

۷- د ټولو قومونو او ګاونډيانو سره د نېکو اړيکو تامينول او د اسلام د مبارک دين په رڼا کې پوره عمل کول او د ټولو قومونو په منځ کې د ورورۍ او دوستۍ اړيکو ټينګول، د ټولو قومونو او ګاونډيانو يو پر بل د باور او اعتماد پوره زمينه برابرول.

۸- د خپلو شهیدانو د وینو نه خرڅول او د هغه په شهادت باندې سودا نه کول.

۹- د حکومتي ارګانونو او ادارو سره په ټینګه رابطه او د خپلو حقوقو د ساتنې په خاطر د خپلو اسلامي غوښتنو څخه دولتي ادارو خبرول او د حکومتي ادارو سره دایمي اړیکي ټینګول.

۱۰- د کلیوالو، ماشومانو او کوچنیانو او ځوانانو لپاره د ښوونې او روزنې په برخه کې جدي پاملرنه په کلي کې د مدرسو او ښوونځیو د ښه تعلیمي رونق لپاره پرله پسې هلې ځلې او د ستونزو د حل لپاره د ګټورو لارو لټول.

۱۱- کلیوالي شورا حق او صلاحیت لري چې د خپل نقدي پنډ څخه د اړتیا لګښتونه ترسره کړي او لګښت کوونکی مالي کمیټې د شورا مقام ته خپل تحریري راپور وړاندې کړي.

الف- د نقدي پنډ څخه هیڅ ته د شخصي لګښت اجازه نه شته.

ب- د شورا پنډ د او قومي عوایدو له لارې تکمیل کیږي.

ج- د شورا پنډ باید مسوول ولري.

۱۲- که چیرته خدای ناخواسته د شورا په امر او قوماندې چاته کوم مالي او ځاني تاوان پیدا شي دغه تاوان او قرباني او د کلیوالو ولسونو په نوم کیږي یو په بل د احسان حق نه لري او د امتیازاتو غوښتنه د قبول وړ نه ده.

۱۳- شورا حق لري چې په میاشت کې یو ځل غونډه وکړي، خو د ضرورت په وخت کې ژر ژر هم غونډې جوړولی شي.

۱۴- د شورا هره پرېکړه به د اسلام د مبین دین په رڼا کې د دیني عالمانو په موجودیت کې کېږي.
۱۵- د شورا د پرېکړې د عملي کولو دنده او مسولیت د کلیوالو ولسونو په غاړه دی او د عملي کولو او منلو مسوولیت لري.
۱۶- د شورا پرېکړه به د شورا د ټولو غړو د اکثریت په خوښه او رایو ترسره کېږي.
۱۷- د شورا پرېکړه به علني وي او ولسونو ته به د شورا د رئیس او باصلاحیته غړو له خوا اعلانېږي.
۱۸- د کلیوالي شورا د پرېکړو د نه منلو په صورت کې شورا حق او صلاحیت لري چې فرد او افرادو ته سزا او نقدي جریمه کړي او خپله پرېکړه عملي کړي.
په کوهستانیو کې هر کلی (چم) شورا یا کمېټه لري چې د کلیوالي شورا په نامه یادېږي. د کلیوالو مسایلو لارښوونه د شورا په غاړه وي او د شورا مشر یا رئیس د شورا د غړو په خوښه په اکثریت رایو سره انتخابېږي چې همدا اوس نشه ګام، ساو، ناړۍ، بریکوټ او دوکلام کې دغسې شوراګانې شته او کلیوالي مسایل او ستونزې د شوراګانو له لارې اوارېږي.
یادونه: البته پورته د ناړۍ د شورا اهداف د نمونې په توګه وړاندې شو، کوهستاني ولسونه د پاکستان د هېواد نه د هجرت د ډېرو کلونو د تېرولو وروسته د خپل هېواد غېږې ته ستانه شوي

وو، په هېواد کې ګډوډي وه، تنظيمي بې رحمانه جګړو دوام درلود، حکومتي ادارې نه وې او که وې تش په نوم وې؟؟؟

ولسونه مجبور او مکلف و چې خپل کليوالي نظم او امنيت په خپله ونيسي، ربښتيا خبره ده چې ايمان نفس ته سپېڅلتيا ببښي او زړونو ته رڼا په برخه کوي، څه وخت چې نفس پاک او زړه روښانه شي ټولې شيطاني وسوسې په زړونو کې نابودېږي، کوهستاني قام په ايمانداري د خپل ځان او د خپلې خاورې څخه د قربانۍ په منلو سره ساتنه کړې او کوي يې او هر ډول د شيطاني اعمالو ته به په ايمانداري هر وخت ځواب ورکوي.

# ګل خندان او ګل رندان

دا دواړه د کوهستان مشهور د وخت مشران تېر شوي او د دود ملک زامن وو، پلار یې هم یو غښتلی او لوی مالدار تېر شوی و، چې د ناړې په مرکز او شاوخوا کې د ډېر جایداد خاوند ګڼل شوی دی، دوه زامن یې ګل خندان او ګل رندان هم د وخت قوي پیاوړي مشران وو، دغه دواړو ورونو ته د پلار نه ډېرې ځمکې او ډېر اهلي حیوانات لکه وزې، څاروي، مېږې، ګډان، غوا، غویان، اسونه پاتې شوي وو، یوه مالداره کورنۍ تېره شوې ده. ګل خندان او ګل رندان دواړو ورونو هم د مالدارۍ چارو سره ډېره مینه درلوده، چې د دواړو ورونو د مالدارۍ شمېر زرګونو څخه زیات وو او بېلابېل شپونکي یې لرل او د مالدارۍ چارې به د شپونکو له خوا مخې ته وړل کېدې.

د ګل خندان او ګل رندان په نومونو سره په باټاش کې په دوه ځایونو کې د مالدارۍ د چارو لپاره منظم ځایونه او بانډې جوړې شوې وې، چې اوس هم دغه محلات په هماغه نومونو یادېږي.

باټاش چې یوه ځنګلي غرنۍ ښکلې سیمه ده او د دغه ځای غرونه رغونه د ښبترو، څېړیو، خونانو او نورو زینتي زرغونو ونو په وجه سمسور ښکاري، باټاش د مالدارۍ لپاره ډېر په زړه پورې رنګینې سردرې او څرځایونه لري او په هر خوا د یخو اوبو رواني چینې لري، چې د مالدارۍ لپاره غوره محلات ګڼل کېږي.

باټاش د مرکزي ناړۍ ختیځ خواته او د بام بیر غره جنوب خواته موقعیت لري چې د خیبر پښتونخوا سره نښتي دی. د باټاش هسکو او دنګو غرونو او شنو ځنګلونو او هیبت ناکو ګړنګونو په لیدلو سره هر انسان په حیرت کېږي. د باټاش جنوب خواته چمیرګل او بادرمشال پراته دي، د باټاش او چمیریګل د خوړونو اوبه په شیډیلي کې یوځای کېږي چې په دوه خوړي شهرت لري د دواړو خوړونو اوبه د ختیځ لوري نه لویدیځ لوري ته د مرکزي ناړۍ په لور بهېږي چې د مرکزي ناړۍ ډېرو زراعتي ځمکو ته اوبه ورکوي.

پته دې نه وي چې د مرکزي ناړۍ مرحوم حاجي شاطماس خان حاجي غلام خان، حاجي عصمت الله خان او حاجي مدیر شېرمحمد خان د حضرت علي زامن او د ګل سید لمسیان او د ګل خندان کړوسیان دي، چې مشهور دیني عالم سیدعلي او بي بي ګلزار ابۍ هم ددې کورنۍ پورې اړه لري او هر یو مرحوم میرزا عبدالحق، مرحوم عبدالرزاق، مرحوم عبدالستار، مرحوم عبدالصمد د مرحوم عبدالمنان زامن او د ګل رندان لمسیان دي چې په کوهستاني قام کې یوه درنه کورنۍ ده دغه دواړه کورنۍ د دود ملیک اولاده ګڼل کېږي.

# د تور مخو تور ارمانونه

زموږ په خوږ او تاريخي لرغوني وطن کې د روسانو د تورې شپې ناځاپي يرغل چې د (۱۳۵۸ل) کال د مرغومي پر (۶) نېټه په توره شپه ترسره شو، په دې ناروا او ظالمانه يرغل کې زموږ د هېواد ولسونو ته ډېر زيات تاوانونه او کړاونه مخې ته راغلل. زموږ مسلمانو هېوادوالو د هجرت لاره غوره کړه او د جهاد لپاره قومونه ولسونه چمتو شول، ډېرو ولسونو د پاکستان او ايران په لور وخوځېدل او د هجرت کلونه يې تېرول چې هغه وختونه او کلونه او تورې شپې تاريخ هېڅکله نه شي هېرولی او نه به هېرې شي.

روسان پر (۱۳۶۷ل) کال د دلوې په مياشت کې زموږ له خاورې ووتل او نور يې نه شو کولی چې د افغان مجاهدينو په مقابل کې ودرېږي، زموږ ګاونډي هېوادونو د خپلو شخصي ګټو لپاره زموږ د هېواد په هر لور تور لاسونه وغزول او د ځانځانۍ جګړې د وطن په پاکه غېږه کې په رنګينه سردرو کې تودې شوې او حالت د يوې ورځې نه بلې ورځې ته زياتېدل، د وطن په ولسونو سپينې ورځې تورې شپې شوې، داخلي ټوپکسالارانو او تنظيمي ليډرانو د خپلو واکدارۍ لپاره ګړندۍ وسله واله مبارزه ګړندۍ کړه او هر تنظيم کوښښ کاوه چې د بل تنظيم څخه زيات امتيازات ترلاسه کړي. د کابل په ښار کې د لسو څخه زيات تنظيمونو د جمهوري رياست

دعوه کوله او په هره څلور لارې کې یې ځانته ځانته حکومتونه جوړ شوي وو او یو د بل د نابودۍ لپاره په وسله واله مبارزه لګیا وو، یو شمېر نالوستو، ځانخوښو او ځان مینو ټوپک مارو دا حالات لیدل چې مشران د جهاد په څه لګیا دي، نو وطني ټوپک سالارو هم کوښښ کاوه چې د مظلوم او بېچاره ولسونو هوارې ځمکې او کلي او کروندې په خپل واک او اختیار کې وساتي. زموږ زیات شمېر کلیوال د هجرت کلونه د چترال په دروش تحصیل کې تېر کړل او د خپلې خاورې او کلي د راتګ لپاره ګروپوار د ناړۍ کلي ته راتلل، یو شمېر د غرض خاوندانو چې د اسلام د مبین دین د احکاماتو څخه پوره خبرتیا نه لرله، داسې تور او د اسلام د مبین دین خلاف پلانونه یې جوړ کړي وو چې ګوندې د ناړۍ ولسونه (کلیوال) به په راکټو، ماشینګڼو او بمونو باندې تهدید کړو، مړه به شي او وېره به ورسره پیدا شي خپل کلي او جایداد او خاوره به پرېږدي او تر ابده به موږ ته پاتې شي، نور ډېر ناوړه او خطرناکه پلانونه یې عملي کړل، خو د ناړۍ د ولسونو اراده یې ماته نه کړه او د شرمونو سره مخامخ شو، د ناړۍ ولسونو په ایماندارۍ سره خپل کلي او خپله خاوره وساتله او پرېکړه یې وکړه چې ټول د ناړۍ ولس به خاورې ایرې کېږو، خو خاوره او کلي به چاته نه پرېږدو په خپل هوډ کلک او متین پاتې شو او کامیابي ورته په نصیب شوه.

پر (۱۳۷۲ل) کال چې د ناړۍ ټول کلی وران ویجاړ پروت و او ولسونو غوښتل چې خپل کلي ته ستانه شي او د ځان لپاره سرپناه

جوړه کړي د کلي کوڅې او کورونه کنډر کنډر ښکاريدل، د خپل د ځان د امنيت لپاره ځوانانو ګروپونه جوړ کړي او د ځان لپاره يې پېره داري کوله او خپل امنيت يې ساتلو، په داسې حال کې چې نيمه شپه وه او د سپوږمۍ سپينه رڼا هر خواته خوره شوې وه، د عطامحمد په ګروپ باندې توره شپه د تور ارمان خاوندانو د راکټ انداز حمله وکړه په دغه وخت کې شهيد عطامحمد په خپله په پېره ولاړه و په شهادت ورسيده.

دغه لاندې نظم مې ورته په هماغه سهار وليکه:

## شهادت

شـــــه شـــــهادت دې مبارکـــــه وروره
ســـتا دې پـــه برخـــه شـــي جنـــت وروره

د وطـــن مينـــه قربـــان شـــوې
تـــه پـــه کـــې تېـــر د ســـر او ځـــان شـــوې
لاړې پـــــه لاره د غيـــــرت وروره
شـــه شـــهادت دې مبـــارک وروره

تـــه قربـــاني شـــوې د خپـــل کلـــي
تـــا کړلـــې خپلـــې وينـــې تلـــې
ســـلام ســـتا پـــه همـــت وروره

شه شهادت دې مبارکه وروره

نوی زلمی وې نوی ګل وې
خپلو همزولو کې اتل وې
ستا په دښمن وایو لعنت وروره
شه شهادت دې مبارک وروره

ته خو هرچاته په خندا وې
نوی زلمی وې بې ګناه وې
کلیوال ستا کوي صفت وروره
شه شهادت دې مبارکه وروره

کوهستاني په نوم لوګی شوې
په توره شپه کې سپېلنی شوې
شه افرین ستا په جرئت وروره
شه شهادت دې مبارکه وروره

ته چې شهید شوې په خپل کور کې
خپلوان دې شو واړه په شور کې
کلي کې جوړ شو لوی قیامت وروره
شه شهادت دې مبارک وروره

د وطــن مينــه کــې ســتي وې
تــه بااحــساسه تبليغــي وې
نــوم بــه دې يــادوي پــه درنــښت وروره
شــه شــهادت دې مبــارک وروره

عطامحمــده نــوی ځــوان وې
تــه تبليغــي د پــاک قــران وې
درپــسې ژاړي حقيقــت وروره
شــه شــهادت دې مبــارک وروره

۱۴-۲-۱۳۷۲ل

يادونه: شهيد اعطامحمد په شهادت باندې د ناړې شاوخوا ټول قومونه او ولسونه د لوی ماتم سره مخامخ شو او ډېر زيات ولسونه د نوموړي شهيد جنازې ته راغلل او يو شمېر خود غرضو کسانو د ناړې ولسونو ته وويل چې ښه به وي چې د ناړې څخه تاسو چترال ته بېرته لاړ شئ، د ناړې ولسونو په يو اواز او په يو غږ وويل چې دا زموږ لومړنی شهيد هم نه دی او اخيري شهيد هم نه دی، تر څو چې موږ ټول په خپله خاوره او په خپلو کورونو کې شهيدان نه شو، بل خوا ته د حرکت نه يو دا مو کلی دی دا مو خاوره ده دا مو پرېکړه ده چې چېرته به نه ځو.

په همدغه شپه چې اعطامحمد په شهادت ورسېد، شپږ تنه نور کليوال هم ددغه تورمخو په وسله وال بريد کې ټپيان شوي وو او د غصې په وخت کې مې دغه نظم ليکلی و:

يو تن شهيد شو شپږ مو ټپيان شو
رنګ په سرو وينو ښکلي ګلان شو



جوړه زموږه په کور ژړا ده
عالمه خومره لويه جفا ده
ورکه زموږه خوله کې خندا ده
دوستان لستوڼو کې تور ماران شو
رنګ په سرو وينو ښکلي ګلان شو

په سرو ګلانو د اور ږلۍ ده
سره په سرو وينو تنکۍ غوټۍ ده
په توره شپه کې سپينه سپوږمۍ ده
د اسمان ستوري واړه حيران شو
رنګ چې په وينو ښکلي ګلان شو

دوستان راپاڅي خپل دوستان وژني
خدای ناترسه مو مينان وژني
مسلمان پاڅي مسلمان وژني

ښکلی اسلام شو ښکلی جهان شو
رنګ چې په وینو ښکلي ګلان شو

اورونه بل دي نن هره خوا کې
اعتبار ورک شو نن په هرچا کې
چې مغرور نه شئ پاتې دنیا کې

په خپل وطن کې خپله باغچه کې
په خپله ځمکه او هدیره کې
په خپله للمه خپله کوڅه کې
خاورې زموږه ښکلي ځوانان شو
رنګ په سرو وینو ښکلي ګلان شو

(اعطامحمد) و چې سپېلنی شو
(امید[1]) یې خواته لوګی لوګی شو
هر تن غصې نه بس لېونی شو
اخته په ویر کې واړه خپلوان شو
رنګ په سرو وینو ښکلي ګلان شو

حقیقت وایي د غم سندرې
په قلم لیکي د درد خبرې

په سر یې اوري غمې د بري
لوند یې په اوښکو د شعر دیوان شو
رنګ په سرو وینو ښکلي ګلان شو

۱۳۷۲-۲-۱۵ل

---

(۱) (امید) غلام قادر امید چې په دغه وسله وال برید کې سخت ټپي شوی و.
(۲) عبداللطیف د ګلزمان زوی
(۳) نجیب الله د عصمت الله خان زوی

دغه لاندې شعر په یوه لویه قومي غونډه کې قام ته ویل شوی دی.

## قام

ای قامه څو چې تاسو قام نه شئ
تاسو به سرلوړي او نېک نام نه شئ
تاسو چې یو موټی په یوه لاره شئ
تاسو به نو هېڅکله ناکام نه شئ
تاسو چې ځانونه من او من نه کړئ
تاسو به اسیر د چا په دام نه شئ
ای قامه راویښ شئ زمان څه وایي؟
کار خو تش په ژبه او کلام نه شئ

هر کار د ګفتار سره عمل غواړي
بې عمله هیڅ کار به انجام نه شي
تاسو چې په یوه جذبه راویښ نه شئ
تاسو نه به جوړ قسم چې قام نه شي
تاسو سره یو شئ په رضا د رب
تاسو به نو خپل ژوند کې بدنام نه شئ
تاسو زمانه ویني په منده کې
چاته چې په طمعه د انعام نه شئ
تاسو چې یو بل سره وحدت وکړئ
دا سحر به هیڅکله ماښام نه شي
وګورئ چې څه وشو او څه کېږي
هر ملحد غدار ته په سلام نه شئ
غږ چې د یووالي تاسو پورته کړ
هلته منافق اخیستی ګام نه شي
یو شئ چې برې دی په یووالي کې
دالا و چې نه جوړ به کله لام نه شي؟
لار د سانین ژوند کې یوه لاره ده
ژوند کې به هر چاته په سلام نه شئ

۲۲-۷-۱۳۷۳ ل کال
ناړه

کله چې د ډېر وخت د هجرت د کلونو د تېرېدو پس خپل پلرني کلي ته د تګ لپاره کليوال چمتو شو او خپل وران کلي باندې مو سترګې ولګېدې، دغه نظم مې ورته په مينه وليکه:

## خپل کلي ته

د کلـــي خلـــک دي روان کلـــي تـــه
راځـــي پـــه مينـــه او ارمـــان کلـــي تـــه
پـــه ســـوي کلـــي کـــې بـــه شـــور پيـــدا شـــي
ورتـــه روان دي شـــنه زمريـــان کلـــي تـــه
کنـــډې کپـــرې بـــه شـــي بېرتـــه ابـــاد
ورتـــه روان دي معمـــاران کلـــي تـــه
د کلـــي هـــره خـــوا بـــه شـــي رنګينـــه
ورتـــه روان دي باغوانـــان کلـــي تـــه
کلـــي زمـــوږه د ننګونـــو ډيـــوه
ورتـــه روان دي پتنګـــان کلـــي تـــه
تـــورې تيـــارې بـــه پـــه کـــې ورکـــې شـــي ژر
ورتـــه روان دي معلمـــان پـــه مينـــه
بيـــا بـــه فعـــال شـــي مکتبونـــه پـــه کـــې
ورتـــه روان دي شـــاګردان کلـــي تـــه
پـــه کـــې بـــه جـــوړ شـــي مدرســـې د پـــوهې
ورځـــي د هـــرې خـــوا قاريـــان کلـــي تـــه

سلام سانکی او د ګلبوم ځمکو ته
ورځي په مینه یې بچیان کلي ته
بیا به زرغون شي سوزېدلې ونې
چې ورته ورشي دهقانان کلي ته
سونګلی او دره باټ ورشو ته
ورځي په مینه اتلان کلي ته
خونانو کږ او د جبي دښتو ته
ورځي په مینه هلکان کلي ته
د کلي هر بڼ به بیا ښه ښکارېږي
ورته روان دي بوراګان کلي ته
ولس د کلي چې شي تول کلي ته
هر یو رقیب به شي حیران کلي ته
د هجرت وخت په کامیابۍ کې تېر شو
لوی او واړه دي په ارمان کلي ته
هر څه چې تېر شو د هجرت کلو کې
نور نو راتلی نه شي خزان کلي ته
روسان وتلي او دهریان وتلي
ورځي په مینه سره ګلان کلي ته
جیګلی هم ورته وتلی بل خوا
په مینه ځي تول پتنګان کلي ته
(کجر) به هم خپلو ځایو ته ورشي

ورځـــي پـــه مينـــه ګواريـــان کلـــي تـــه
د کلـــي پـــت بـــه ســـاتل کيـږي پـــه پـــت
ورځـــي پـــه مينـــه افـــسران کلـــي تـــه
کلـــی بـــه بيـــا د فيـــصلو مرکـــز شـــي
ورځـــي ولـــس مـــې پـــه ښـــه شـــان کلـــي تـــه
بيـــا بـــه د هـــر قـــوم جرګـــې کيـږي پـــه کـــې
ورځـــي پـــه مينـــه مـــشران کلـــي تـــه
قربـــاني شـــته پـــه دې کـــې شـــک نـــه شـــته دی
ورځـــي پـــه مينـــه قربانيـــان کلـــي تـــه
کـــه مـــو څـــوک وژنـــي يـــا پـــه اور کـــې سېزي
څـــو بـــه ښـــکاره او پـــه اعـــلان کلـــي تـــه
ســـاو نـــشه ګـــام او بريکـــوټ دوکـــلام
پـــه درنـــښت ګـــوري د رحمـــن کلـــي تـــه
د هـــديرو مـــړي بـــه شـــي خوشـــاله
چـــې بيـــا راغلـــي نارو جيـــان کلـــي تـــه
بيـــا بـــه ابـــاد شـــي او سمـــسوره بـــه شـــي
ورتـــه ټـــولېږي پرديـــسيان کلـــي تـــه
چـــې مـــو نيکونـــو مـــو قلنـــګ اخيـــسته
هغـــه خوشـــال دی زمـــوږ وران کلـــي تـــه
حقيقـــت ليکـــي د خوښـــی ســـندرې
چـــې نـــن راغلـــی خپـــل روښـــان کلـــي تـــه

د نــــاړې کلـــي لکــــه لمــــر روښـــــان دی
ســـلام ســـلام دی د جانــــان کلـــي تـــــه

حمل- ۱۳۷۲ل

## په چترال کې د کوهستاني ژبې سيمينار:

په کوهستاني (ګواري) ژبه باندې د ښه او منظم ليک ليکلو لپاره د پاکستان د چترال دروش تحصيل کې د ګلـه ټـاک پـه کيمـپ ښوونځي کې يو علمي سيمينار جوړ شو، چې په دې سيمينار کې د ډېرو علمي او تحصيل يافته کسانو برخه لرلـه او پـه کوهستاني ژبـه باندې د ليک (خط) ليکلو لپاره ځينې ضروري قواعد او لارښوونې وشوې او د ګډون کوونکو نظريات وغوښتل شو چې ګواريان بايد په خپله مورنۍ ژبـه کتابونـه وليکي او د پښتو، دري، عربي الفبا څخه ګټه پورته شي، چې د (ڶهـ) حرف پـه اړه د سانين لـه خوا ګډون کوونکـو تـه معلومـات وړانـدې شـو د (ڶهـ) حـرف د افغانـستان د علومو اکاډمۍ د لوړ پوړي ادبي هئيت له خوا تثبيت منل شوی او ددغه حرف څخه په پشه يي ژبـه د ليـک لوست لپاره کار اخيستل کېږي او په کوهستاني ژبه کې هم ددغه حرف لپاره اړتيا ده. پـه نړۍ کې هره ژبـه د بلې ژبې څخـه لوړ مقام نـه لري او د هرې ژبې لغات مکمل او پوره نه دي دا ښکاره خبره ده چې يوه ژبـه د بلې ژبې سره څه ناڅه اړيکي لري. دغـه دوه ساعته سيمينار پـه ګډون کوونکو

باندې ډېر ګټور ثابت شو او ټولو دا خبره ومنله چې په کوهستاني ژبه لیکل باید پیل شي او دغه لیک دود ته پوره ارزښت ورکړئ او په خپله ژبه باندې ویاړ ولرو د لوی خدای(ج) د درګاه څخه ددې لوی نعمت د مهربانۍ لپاره شکر ګذار واوسو.

۱۵-۴-۱۳۷۲ ل کال
د ګله ټاک ښوونځی

دغه نظم د چترال د دروش په تحصیل کې د هجرت د کلونو په وخت کې قام ته د یووالي په خاطر په یوه لویه غونډه کې اورول شوی، دا هغه وختونه وو چې روسان ناکام زموږ له خاورې وتلي وو او د ځانځانۍ تنظیمي جنګونه د وطن په غېږه کې روان و او زموږ په کلي کورونو کې نور ولسونه دېره شوي وو او زموږ د ولس تګ ضروري خبره وه:

## ځانځاني

ډېر افسوس زموږ په حال
چې موږ نه لرو کمال
تربګنۍ باندې اخته یو
موږه ویښ نه یو ویده یو
په خبرو کې یو ژرندې
(کنو) یو او بل ته کندې
دا خو تولو ته ده پته
خپل عزت وهو په لته
موږه هر یو، یو، یو من
یو او بل ته نه ږدو تن
ورکه شوې موږ نه لاره
یو او بل ته یو (بیت باره)
موږ کې ګډه ځانځاني ده
موږ کې ورکه خواخوږي ده

چې چا مور یو زورولي
چې چا موره یو ترلي
چې چا موره یو ربړولي
د هغو سره پخلا یو
مور د هر چا د خدا یو
په مور چا وکړې دا چارې
چې تیارې شوې زمور لارې
د پردو ښه اشنایان یو
بس په خپلو کې ښه وران یو
ځانځاني ده ځانځاني ده
دا زموږه بدبختي ده
اتفاق زانه ورک شوی
هر یو تن زمور سپک شوی
رانه پاتې کلي کور دي
د ژوندون نه مو زړه تور دي
رانه پاتې خپل باغچې دي
رانه پاتې خپل باغونه
رانه پاتې خپل کځونه
رانه پاتې خپل هسک غرونه
شوې ابادې رانه شړې
په مور خاندې د ګور مړې

مور د چا ځنې کمزور يو
چې د هر چا د پيغور يو
د يو والي نيمګړتيا ده
دا زمونږ ملامتيا ده
راشئ راشئ په وحدت شو
واړه يو شو يو قوت شو
چې خپل کلي ته روان شو
بيا به سيال سره سيالان شو
په دې کيمپ کې چې اوسيږو
لا به نور هم بربادېږو
ځو به ناست يو مونږ راشن ته
ځو به ځو خپل وطن ته
شو تالا زمونږ فصلونه
شو تالا مو درمندونه
د پردو په تماشه يو
يو او بل ته په غوصه يو
ځئ چې خپل ځای ته ستانه شو
د درنو سره درانه شو
لږ همت زياتي پکار دی
لږ غيرت زياتي پکار دی
حق مو بل چاته دی پاتې

په خپل حق کې کوو بل ته ننواتې
مونږ په خپله ملامت يو
مونږ پخپله بې جرئت يو
ننوتي يو غاروکې
کوو لاپې په دېروکې
که لښکر دی مونږ کې شته دی
که سنګر دی مونږ کې شته دی
راشئ ټول يو سره ورونه
يو د يوې ونې خانښونه
خو چې مونږ کې نفاق غواړي
څو يې ماتې نه شي داړې
نه جوړ زمونږ لښکر شي
نه جوړ زمونږ سنګر شي
ټينګ چې مونږه کې وحدت شي
لا به ډېر زمونږ قدرت شي
تياري لارې به رڼا شي
ډېر تورمخي به رسوا شي
په يوه چغه شي ميدان ته
ټول راوځئ امتحان ته
ځو په مينه کلي کور ته
څوک به ټينګ شي ستاسې زور ته

مـــوږ چـــې واړه يـــو لـــښکر شـــو
چـــې حاضـــر پـــه يـــو ذکـــر شـــو
يـــو بـــه غـم يـــوه بـــه ښـــادي شـــي
مـــوږ کـــې جـــوړه بـــه وروري شـــي
د دښـــمن مـــلا بـــه شـــي ماتـــه
شـــي رســـوا بـــه ټـــول دنيـــا تـــه
لابـــه يـــې تـــور شـــي تـــور مخونـــه
مـــوږ کـــه يـــو کـــړو خپـــل لاســـونه
شـــي بـــه لـــوړ زمـــوږ ســـرونه
مـــوږ بـــه وګټـــو وياړونـــه
ګټـــه نـــه شـــته ځانځـــانۍ کـــې
پـــه بـــې ځايـــه تربګنـــۍ کـــې
ســـرلوړي مـــو ده وحـــدت کـــې
پـــه وروري او صـــداقت کـــې
بـــې اتفـــاق کـــه يـــو دارنګـــه
شـــو بـــه لاپـــسې بدرنګـــه
راشـــئ يـــو بـــل نـــه قربـــان شـــو
واړه يـــو پـــه يـــو ايمـــان شـــو
لـــرې زړه ځنـــې کينـــې کـــړو
زړونـــه صـــاف لکـــه شـــيدې کـــړو
پـــه هـــر کـــار کـــې بـــه کاميـــاب شـــو

په مېړو کې به حساب شو
چې خپل کلي ته لاړ نه شو
څښتنان به د ويار نه شو
بېګانه مو واکداران دي
په موږ نور څوک مشران دي؟
څو به ناست يو موږ بې غمه
څو ويده به يو بې دمه
په خپل حق کې يو بې حقه
دعوې جوړې دي ناحقه
کلي کور دې رانه پاتې
کړو پردو ته ننواتې
دومره ولې شو بېکاره
ورونو لږ خو شئ بېداره
د هجرت وختونه تېر شو
چې څه تېر شو هغه تېر شو
اوس ځانونه کړئ هوښياره
مه ځئ مه ځئ نور بې لاره
قوم په نوم شئ وفاداره
غوره تول کړئ يوه لاره
ځانځانی کې شرارت دی
په يووالي کې عزت دی

ستـــــرګې واړوئ دنيـــــا تـــــه
ښـــــکته پورتـــــه شـــــا وخوا تـــــه
ځانځـــــانی کـــــې برېـــــاد پرېږو
يقـــــين وکـــــړئ چـــــې ورکېـــــږو
ځانځـــــاني خـــــو ناروغتيـــــا ده
ځانځـــــاني بـــــده بـــــلا ده
اوس نـــــو ستاســـــې خپلـــــه خوښـــــه
شـــــعر مـــــې وتلـــــئ پـــــه تلـــــه
ځانځـــــانی کـــــې بـــــدبختي ده
پـــــه وحـــــدت کـــــې ســـــر لـــــوړي ده

چترال کيمپ، ۱۳۷۱ل کال

# د ګواري ژبې د ادبياتو پراختيا

زموږ په ګران او خوږ هېواد کې د دېرشو څخه زيات مليتونه او ژبې شته چې ولسونه يې په خپلو بېلابېلو ژبو باندې غږېږي او هره ژبه ځانته ادبيات لري. زموږ د هېواد په اساسي قانون کې هر مليت



او هره ژبه رسميت لري، پښتو او دري ژبه زموږ د هېواد رسمي ژبې دي او هغه ژبې چې په نورو محلاتو او سيمو کې ويل کېږي ولسونه ورباندې خبرې کوي دريمه رسمي ژبه ګڼل کېږي. د پښتو او دري ژبې ډېر لرغوني اثار شته چې زموږ هېواد ورباندې وياړ کوي، نورې ژبې چې اوس اوس ورباندې ليکل رواج شوي، ډېر ډېر پرمختګونه يې کړي او کوي يې، زموږ په هېواد کې تراوسه پورې

دوه ژبو باندې لیکل او لوستل کېدل په دولتي ادارو کې په نورو ژبو باندې لیکل او لوستل رواج نه درلود، د ثور د پاڅون څخه وروسته چې ټولو ژبو او ملیتونو ته د دولت له خوا مساوي حقوق اعلان شول په نورو ژبو کې لیکل لوستل او څېړنه پیل شوه چې اوس په دې دوه درېو لسیزو کې ورو ژبو کې هم ډېر زیات د ویاړ کارونه ترسره شول، کتابونه او ورځپاڼې مجلې او نور نشراتي ارګانونه جوړ شول، په راډیو او ټلویزیون کې په خپلو خپلو ژبو پروګرامونه جوړ شول، زموږ ژبه ګواري هغه ژبه ده چې د لږ وخت نه راپدېخوا یې په کار او فعالیت شروع کړې ده او د مالي ستونزو له امله تراوسه پورې لا په راډیو او ټلویزیون ته لاره نه ده موندلې.

د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنې ډېره هڅه کړې ده چې د ګواري ژبې ادبیاتو د پرمختګ په لاره کې هلې ځلې وکړي، ددې ټولنې په همت باندې د ګواري ژبې د پراختیا لپاره کنفرانسونه او مجلسونه جوړ شوي او نوي لیکوالو او شاعرانو د تشویق لپاره پوره پوره ادبي او فرهنګي کارونه کړي او دوام لري. د (۱۳۸۸ل) کال د تلې د میاشتې پر (۴) مه نېټه د نارې په کلي کې د ډاکټر سانین په کور کې یوه درنه غونډه جوړه شوه چې په دې سیمه کې د ګوارو ځوانانو لپاره د ګواري ژبې د لیکدود په مسئله باندې پوره خبرې وشوې چې د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې د مشر محمد نواز سانین له خوا د غونډې ګډونوالو ته په زړه پورې معلومات وړاندې شو او د ارندو ځوانانو له خوا وړاندیز وشو چې د

ارندو او د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې ګډ يو د ليکوالو انجمن جوړ شي، چې د ګواري ژبې د پراختيا لپاره په ګډه هلې ځلې ترسره شي، په دې برخه کې د ملي ارمانونو د فرهنګي ټولنې د مشر له خوا په زړه پورې خبرې وشوې او خبره يې تائيد کړه او زياته يې کړه چې موږ هم هيله لرو چې د ارندو د ځوانانو ليکوالو او شاعرانو سره لږ تر لږه په دوو مياشتو کې يو ځل وګورو او ځينې ادبي مسايلو باندې ګډه نظر واچوو او ګډ تصميم ونيسو، په دې درنه غونډه کې د ارندو څخه راغلي درانه مېلمانه دادي:

۱- حميدالله خان- ارنوي

۲- حيات محمد خان - ارنوي

۳- هدايت الله خان - ارنوي

۴- سيدالله خان - ارنوي

۵- عبدالوهاب خان - ارنوي

۶- عصمت الله خان - ارنوي

۷- انعام الرحمن خان- ارنوي

۸- ګل فقير خان - ارنوي

۹- محب الله خان - ارنوي

۱۰- سلطان محمد - دوکلام

په دې درنه ادبي غونډه کې د ارندو ځوانانو ليکوالو او شاعرانو



ګټورې خبرې وکړې، د غونډې وروستۍ خبرې د ډاکټر سانين له خوا وشوې چې د ګواري ژبې د پرمختګ او ادبي پراختيا لپاره لاربښوونکې په زړه پورې وينا وشوه او په دې خبره ټينګار وشو چې ګواري ځوانان ليکوال او شاعران هڅه وکړي چې ادبي او فرهنګي کارونه په عملي توګه وکړي، غونډې جوړې شي او د راتلونکو ځوانانو لپاره د ادب او فرهنګ په لاره کې ځراغونه ولګوي، دغه درنه غونډه د دعا په کولو سره پای ته ورسېده.

# د ناړې په مرکز کې د ښوونې او روزنې چارې

ګواریان لوی او واړه د ښوونې او روزنې او د پوهې او علم او ادب او فرهنګ سره ډېره مینه لري، همدا وجه ده چې ناړې مرکزي کلی د کونړ په ولایت کې د علمي دولتي، حکومتي او مسلکي کدرونو په لرلو سره لوی مقام لري. ددې کلي زیات ځوانان او روښنفکران د پوهې خاوندان ګڼل کېږي، نو ځکه ددې سیمې او منطقې ولسونه د ناړې مرکزي کلي ته (مسکو او واشنګټن) وایي دا ټول د علم او پوهې برکت دی. پر (۱۳۳۷ل) کال په دې کلي کې د مشرانو ولسونو په غوښتنه ابتدائیه ښوونځی جوړ شوی چې هغه وخت د دهاتي ښوونځي په نامه یادېده چې د محترم عبدالوهاب ملک یار چې د انکشاف دهات مسوول مشر و دغه ښوونځی په رسمي توګه په تعلیمي کار پیل کړی دی، خو د ناړې خلکو ددې نه مخکې هم خپلو بچیانو لپاره په جامع جومات کې د ښوونې او روزنې لپاره یو منظم پروګرام درلود چې پرته د دیني اسلامي مضامینو نور درسي کتابونه لیک لوست، مشق او ریاضي هم په تدریس کې شامل مضامین ګڼل کېدل.

پر (۱۳۵۱ل) کال د ناړې ابتدایه ښوونځی په منځني ښوونځي بدل شو پر (۱۳۵۷ل) کال منځني ښوونځي لېسې ته ارتقا کړې ده چې د ناړې د عالي لېسې په نوم یاده شوې، چې د شاوخوا

بریکوټ، دوکلام، پاشنګر، ساو، نشه ګام، مچنې زده کوونکو هم د ناړې په منځني ښوونځي او لېسه کې زده کړې کولې چې اوس د هغه دورو زده کوونکي فارغان د وطن علمي کدرونه دي، چې د هېواد او د کونړ ولایت په بېلابېلو ادارو کې د کدرونو او ملي شخصیتونو په دندو مشغول دي. د ناړې لېسه د شهید عبدالودود په نامه نومول شوې وه، ددې لېسې څخه ډېر لایق کسان ټولنې ته د






دندو د اجرا په خاطر وړاندې شوي چې د زده کړو تدریسي چارې د لایقو استاذانو له خوا مخکې وړل کېدې چې د هغه زمانو څخه تراوسه د ناړې عالي لېسه د کونړ د ښوونې او روزنې ریاست په چوکاټ کې یو خاص لوړ نوم ګټلی دی. د ناړې د منځني ښوونځي او د لېسې فارغ شوي شاګردان اوس د هېواد په کچه پېژندل شوي کدرونه او شخصیتونه دي چې په لاندې توګه ځینې ښاغلي تاسو ته درپېژنو:

١- عبدالباقي فضلي، چې یو وخت د کامدیش ولسوال هم و چې ټول وخت د ښوونکي، سرښوونکي او د لېسې د مدیر په توګه دندې

اجرا کړي او د اول ټولګي څخه د دارالمعلمین د فراغت پورې اول نومره پاتې شوی یو لایق باتجربه ښوونکی دی.

۲- حاجي احمدزمان ناقرار، د شیران زوی یو پوځی لایق، ویښ او جدي افسر دی او په رتبه ډګروال دی.



۳- حاجي احمدعثمان، اتکل چې همدا اوس د نارۍ د عالي لیسې برحال مدیر دی.

۴- حاجي شېرمحمد صابر، چې



همدا اوس د نارۍ د نجونو د لیسې برحال مدیر دی.

۵- ګلاب سید خاموش، یو پېژندلی شوی کدر دی.

۶- داود، ازاد د نارۍ په ولسوالۍ کې د مالي چارو مدیر دی.

۷- مسافر خلیل زی، چې یو لایق کدر او ډګروال دی.



۸- عبدالجبار، د نارۍ په ولسوالۍ کې د املاکو مدیر دی.

۹- مامور شېرزمان، چې یو لایق کدر دی.

۱۰- حیاوالدین، چې همداوس په







لیسه کې برحال استاد دی.

۱۱- حاجي میرزمان ناړیوال، د نورستان په ولایت کې د بانک رئیس دی.

۱۲- عبدالغفار، د ناړې په ولسوالۍ کې د حقوقو مدیر دی.

۱۳- استاد ګلزرین، یو لایق او پېژندل شوی استاد دی.

۱۴- زیارت ګل، یو لایق او باتجربه پوځي ډګروال دی.

۱۵- حبیب الرحیم فضلي، یو لایق او باتجربه پوځي ډګروال دی.

۱۶- خانزاده (ګوار)، یو لایق پوځي باتجربه ډګروال دی.

۱۷- شامراد، د ناړې د ښوونځي سرښوونکی دی.

۱۸- سیلاني، یو لایق پوځي افسر دی.

۱۹- شهزاده خان، یو باتجربه مسلکي ښوونکی دی.

۲۰- عبدالرحمن، یو باتجربه مسلکي ښوونکی دی.

۲۱- جمعه الرحيم فضلي، يو باتجربه مسلکي ښوونکی دی.
۲۲- غلام رحيم مريدي، يو باتجربه مسلکي ښوونکی او د ناړې د محلي راډيو مسوول مدير دی.
۲۳- غلام قادر اميد، د کورنيو چارو وزارت کې يو ورزيده مسلکي افسر دی.
۲۴- اکبر سيد، يو مسلکي ښوونکی دی.
۲۵- عبيدالله، يو مسلکي ښوونکی دی.
۲۶- علي اکبر، يو مسلکي ښوونکی دی.
۲۷- علي احمد، يو مسلکي ښوونکی دی.
۲۸- سيد شريف، يو مسلکي ښوونکی دی.
۲۹- حاجي عبدالقاهر فولاد، يو لايق ښوونکی او اوس د کاپيسا په ولايت کې د ښوونې او روزنې په رياست کې د علمي مشاور په توګه دنده ترسره کوي.
۳۰- حاجي نور اکبر، د ښوونې او روزنې يو باتجربه کدر دی.
۳۱- حاجي بهادرخان، يو لايق مسلکي ښوونکی دی.
۳۲- غلام قادر بحر، د فزيوتراپي په رشته کې يو لايق باتجربه ډاکتر دی.
۳۳- حسام الدين ګړنګ، يو باتجربه لايق پوځي ډګروال دی.
۳۴- انجنير ميرعالم، يو باتجربه لايق پوځي ډګروال دی.
۳۵- فضل مولا، يو باتجربه لايق پوځي ډګروال دی.
۳۶- انجنير شيرعلم د نشه ګام، يو باتجربه او فعال انجنير دی.

۳۷- انجنیر ابراهیم د نشه ګام، یو باتجربه انجنیر دی.
۳۸- رحمت قیوم د نشه ګام، یو لایق کدر دی.
۳۹- محمد قیوم د نشه ګام، یو لایق کدر دی.
۴۰- غلام غوث د ساو، یو لایق مدیر دی.
۴۱- ملک جان، یو ښه ډاکتر مرستیال دی.
۴۲- احمدشاه د ساو، یو ښه ډاکتر او تکنالوژست دی.
۴۳- محمد رسول غمکش، یو فعال مدیر دی.
۴۴- حبیب الرحمن ساووال، یو ښه ښوونکی، لیکوال او شاعر دی.
۴۵- سید کریم جان، یو ښه کدر دی اوس د معارف مفتش دی.
۴۶- پوله خان، یو ښه ښوونکی دی.
۴۷- شېرزمین، یو ښه دیني اسلامي موضوعاتو او احکاماتو مبلغ دی.
۴۸- سیدنبي، یو ښه او لایق افسر دی.
۴۹- ولایت خان، یو ښه او لایق افسر دی.
۵۰- حاجي محمد طاهر، یو ښه او لایق افسر دی.
۵۱- حیات الله، یو ښه او لایق افسر دی.
۵۲- ګل اکبر، یو ښه او لایق افسر دی.
۵۳- عبدالجلال، یو ښه او لایق افسر دی.
۵۴- ګلزمان د نشه ګام، چې اوس د ناړي برحال ولسوال دی.
۵۵- کریم خان، یو ښه لایق افسر دی.

۵۶- فضل ربي، یو ښه لایق افسر دی.
۵۷- محمدنواز ازاد، یو لایق او په رتبه ډګروال دی.
۵۸- انجنیر عبدالله چې یو فعال کدر او د کونړ د برېښنا رئیس دی.
۶۰- حاجي حضرت شریف، یو ښه لایق افسر دی.
۶۱- شېرافضل د ساو، یو ښه لایق افسر او په ایټالیا کې یې ارکانحربي اخیستې.
۶۰- عبدالغفور، یو لایق افسر چې د وخت د شوروي اتحاد کې یې د پوځي علومو کې ماسټري اخیستې.
۶۱- ګل رحیم، یو لایق افسر دی.
۶۲- شېر د بریکوټ، یو لایق افسر دی.
۶۳- حاجي غلام نبي، چې یو لایق افسر او د پوهنیار علمي رتبه لري.
۶۳- حبیب رسول د دوکلام، یولایق ښوونکی دی.
۶۴- شېرزمین د دوکلام، یولایق افسر دی.
۶۵- حسن شریف، یولایق افسر دی.
۶۶- محمد اسحق، یولایق افسر دی.

دا هغه کدرونه دي چې د ناړې په منځني ښوونځي او لېسه کې یې زده کړې ترسره کړې دي او وتره ماغزه یې دلته د علم او د پوهې په تخم کرلو سره وده کړې ده. نن ورته ډېر ویاړونه په نصیب شوي، که

چېرې زما د قلم د نوکې څخه مستحق نور کسان پاتې وي، ببښنه ترې غواړم.

د پورته ذکر شویو کسانو نومونه دا د ناړې دمرکزي ولسونو د معارف او د ښوونې او روزنې په برخه کې د پاملرنې لوی ثبوت دی.

په ټولنه کې په هېواد کې د پوهې او علم د برکت ارزښت ډېر لوړ دی، د پوهې او د علم په برکت نړۍ روښانه شوې هر څومره چې د یوې ټولنې غړي په پوهه او علم باندې سینګار وي، په هماغه اندازه د هغې ټولنې مخې ته رڼا وي او په اسانتیا سره د ژوند په ستونزو باندې بریالیتوبونه لاس ته راځي. زموږ د هېواد زیات وګړي د پوهې او علم له درجو څخه محروم پاتې شوي همدا منفي تاثیرات دي چې کلونه کېږي چې ولسونه مو د ژوند شپې په تورتمونو او د اورونو په لمبو کې تېروي، تر څو پورې چې زموږ د هېواد او د ټولنو وګړي او ولسونه په پوهه باندې سمبال نه شي، موږ لپاره به په ژوند کې ډېرې زیاتې ناخوالې موجودې وي او که چېرې د پوهې او علم خاوندان شو ډېر ژر به د پوهې او علم په برکت د هېواد په ګوټ ګوټ کې د پوهې او د علم د رڼا ګانو او ډیوو په رڼا به ژوند تېر کړو او د ژوند څخه به ولسونه خوند واخلي. که له یوې خوا زموږ د هېواد د پټ دښمنان موږ پرمختګ ته نه پرېږدي تپل شوي جنګونو اورونه تازه کوي، نو له بلې خوا زموږ دښمنانو ته زموږ د خاورې زموږ د ولسونو د ناپوهۍ او بې علمۍ په اساس

مورې ته ډېر زيات تاوانونه او ستونزې جوړېږي. په ناپوهۍ او بې علمۍ سره نه شو کولای د ژوند په لارو باندې سم او په بريالیتوب يون وکړو، د افغان ولس او په ځانګړې توګه د ځوانانو لپاره په کار ده چې د هېواد ولسونه او ټولنې د پوهې او علم په ارزښت باندې پوهه کړي او ددې کار په سرته رسولو باندې خپل هېواد د پرديو د تپل شويو جګړو د بدمرغيو څخه خلاص کړو.

# خپل کلي ته راتلل

## اولین ځل لپاره د هجرت څخه ناړې ته راستنېدل

دا خو ښکاره خبره ده چې زموږ د هېواد ټولو قومونو ولسونو د شوروي اتحاد د کمونیستي پوځیانو د یرغل په وخت کې ډېر زیات دردونه او کړاوونه ولیدل، زموږ زیات شمېر ولسونه د جګړو په اورونو کې وسوزېدل، ملي شتمني مو وسوزېده، د ولسونو کورونه، کلي، باغونه او ابادي ځانې د بمونو په زهري لمبو کې وسوزېدل، د ناړې ولسونه چې د کوهستان مرکزي ولسونه ګڼل کېږي، په دروش ګله ټاک کیمپ کې پرېکړه وکړه چې یو تعداد کسان باید بېرته خپل کلي ته لاړ شي او هلته د پاتې کسانو سره د نږدې خبرې وکړي او خپل دایمي اړیکي ورسره ټینګې کړي، ددې کار لپاره (۱۳) تنه مشران توظیف شول:



۱- حاجي محمد عثمان ((ویښ))
۲- مامور شېرزمان
۳- وزیر خان مرحوم
۴- حاجي غلام سخي خان
۵- حاجي جیلاني خان
۶- حاجي غلام رحیم مریدي
۷- سید رسول استاد

۸- حاجي علي احمد استاد
۹- سييد نظيف
۱۰- ميرزمان خان ((قصاب))

په دې وخت کې د روسي طيارو بمبارد له کبله د ناړې کلي ته د ورتګ لپاره د ناړې مرکزي پُل په بمبار کې په کال (۱۳۶۰) کې له منځه تلی و، دغه پورته ذکر شويو کسانو د چترال څخه له ځان سره کېبل انتقال کړ چې د عمومي سړک څخه د ناړې مرکزي کلي ته د کېبل پواسطه ولسونه تګ راتګ وکړي، په دغه وخت کې تنظيمي علاقداري وه، خو څه مثبت اجرات يې نه لرل او هر څوک په خپل سر و، ګډ تصميم يې نه شو نيولی او په شخصي ګټو پسې روان و.

يو شمېر نور کسان چې په ناړې کې دېره شوي وو او په ناړې کې ځای په ځای شوي وو د بدنيتۍ له مخې يې نه غوښتل چې د ناړې ولسونه دوباره راشي او په خپلو زراعتي او للمي ځمکو باندې منګولې ولګوي او د خپل کلي او ولسونو نمايندګي په خپله غاړه واخلي. د ناړې په.شاوخا کې دېره او يوځای بل ځای راغلي خلکو فکر کاوه چې د ناړې اصلي ولسونه که بېرته خپل کلي ته ستانه شي، بيا نو په خپل سر د نورو کسانو سره زور زياتی نه شو کولی او د ناړې ولسونه زموږ د هر ډول بې ځايه کارونو مخه نيسي.

د هجرت د کيمپ څخه راغليو کسانو ته د شامصر، حاجي زړورخان د حاجي امين ملک زوی د شپې لپاره دعوت ورکړ او په مېلمستيا د هغه سره شامصر ته لاړه په سهار باندې د شامصر نه

بېرته چې نارې کلي ته راتلل، په لاره روان و، چې چا ورته راپور ورکړ چې ستاسې لپاره يو شمېر وسله وال کسان په سلام سانکي او خوړ غاړه کې ځای په ځای شوي امکان شته چې مرګ او ژوبله رامنځته شي، د نارې څخه راغلي مېلمانه مشران حيران پاتې شو چې موږ نه د چا سره دښمني لرو او نه د چا سره د دښمنۍ نيت لروو په څه ګناه موږ ته لاره نيسي؟

په هر ترتيب د نارې کسانو د تګ لاره بدله کړه او ځانونه يې د نارې پله ته ورسول او د کېبل د ايښودلو لپاره په جدي توګه پرېکړه وکړه، کېبل يې د نورو ولسونو په مرسته کېښوده او د تګ راتګ لپاره اساني پيدا شوه.

د نارې تللي کسان په بري سره خپلو د مهاجرت کورونو ته ستانه شو، که څه هم يو شمېر کسانو چې شخصي مقصدونه يې لرل، د کېبل د ايښودلو ممانعت او خلافت يې کاوه خو په دغه برخه کې شهيد انور علاقدار مرسته وکړه او چا ونه شو کولی چې د کېبل د ايښودلو ممانعت وکړي، يو شمېر غلو او ډاکوانو ويل چې د نارې ولسونه بايد نارې ته دوباره رانه شي او هدف او تور ارمان يې دا درلود چې د نارې ابادې زراعتي او للمي ځمکې ورته ابدي پاتې شي او په خپل سر په خپله خوښه ځانونو ته د ولسونو په ميراثي ځايونو کې کورونه جوړ کړي او د جهاد د مقدس نوم څخه بې ځايه ګټه پورته کړي. دا ارمان د هغو تورمخو چې د اسلام د مبين دين د احکاماتو خلاف پلانونه و هغو ته د خاورو سره خاورې شو.

او اوس هماغه د ناړې مرکزي ديندار او په اسلام مين ولسونه دي
چې جوماتونه يې اباد فعال او په خپلو ځمکو او په خپلو ورشوګانو
قبضه او پوره واک او اختيار لري او د ناړې مرکزي کلي د پخوا په
نسبت ډېر ودان او هرې خواته نوي نوي کلي کورونه جوړ شوي.
په دغه شپو ورځو کې ډېر کسان ناړې ته راغلي و چې په څلورو
ګروپونو وېشل شوي:

لومړی ګروپ د (۲۰) کسانو سره حاجي محمدعثمان

دويم ګروپ د (۲۰) کسانو سره استاد عبدالرحمن

درېيم ګروپ د (۲۰) کسانو سره حاجي احمدعثمان اتکل

څلورم ګروپ د (۲۰) کسانو سره مامور شېرزمان ملګری

ذکر شويو ګروپونو خپل وظايف په مېړانه سرته ورسول.

# د هجرت کلونه

کله چې د (۱۳۵۷ل) کال د ثور پر میاشت خلقي پاځون په هېواد کې بري ته ورسېد، د ګوارو قام هم لکه د هېواد د نورو قومونو په شان د جهاد په لاره کې د خلقي دولت او سیاست پر ضد ورځ په ورځ د جهاد لپاره چمتو کېدل. کله چې د (۱۳۵۸ل) کال د جدي پر میاشت د وخت د شوروي اتحاد کمونیستي پوځیانو زموږ د هېواد پر ضد پوځي یرغل وکړ چې په نتیجه کې د حفیظ الله امین رژیم نسکور شو په خپله حفیظ الله امین د شورویانو له خوا ووژل شو او نور ملګري او د مرکزي کمېټې غړي او دولتي او حکومتي چارواکي د پلچرخي زندان ته واستول شو. د شوروي پوځي لښکرې د هېواد په ټولو ولایتونو او سردرو کې خواره شو، په ټول هېواد کې د غمونو، ماتمونو او ظلمونو نوې دوره پیل شوه، د هېواد شین اسمان په تورو وریځو پټ شو او افغانانو ته ډېر دردونه، ستمونه او کړاوونه په نصیب شو.

د افغانانو لپاره د اسلامي مقدس جهاد کولو پرته بله لاره نه وه او په افغاني احساس مجبور او مکلف و چې د جهاد مورچلونو ته پورته شي او په افغاني او اسلامي جذبه د یو مقدس اسلامي ارمان لپاره مبارزه وکړي. په مېړانه د شوروي اتحاد د پوځیانو پر ضد د هېواد ټول وطنپرست او د اسلام پتنګان د جهاد په لښکرو کې تنظیم شول او د روسانو پر ضد د مخامخ او لاس او ګرېوان جګړو

لپاره د بل هر وخت څخه چمتو شو او خپل مورچلونه يې د يرغلګرو پر ضد تاوده وساتل. افغانانو نړيوالو ته په نره ازمون ورکړ او ټولو نړيوالو ته څرګنده ده چې افغانانو روسانو ته ماته ورکړه او په ګونډو يې کړل. د هجرت وختونه ګواريانو په صوبه سرحد کې تېر کړل چې نشه ګام او د ساو ولسونه په تور کمپ او تيمرګره کې پراته وو او د ناړۍ، دوکلام او بريکوټ ولسونه په چترال کې خپل ژوند کاوه، خو په وطن کې د هېواد په غېږه کې د کوهستان ولسونو مورچلونه لرل او د جهاد لپاره د مېړنو، اتلو، زړورو کسانو ګروپونه يې تنظيم کړي وو، چې يرغلګرو پوځونو او د کارمل د ګوډاګي رژيم د مزدورانو پر ضد په مېړنتوب او لوړه روحيه د اسلام د پتنګانو او د اسلام د سربازانو په نوم په مختلفو ولايتونو او په سختو مورچلونو کې شپې ورځې په ايمانداري او د سر په بيه تېرولې. ددې قام د ولسونو اتلولي او وطنپرستي ټولو ولسونو او قومونو ته په عملي مورچلونو او بريدونو او يرغلونو کې څرګنده او ثابته شوه او په دې لاره کې يې ډېر ځاني او مالي زيانونه په اسلامي مينه قبول کړل، خو د وياړ خبره داده چې ددې قام ولسونو د هجرت او د جهاد په کلونو کې د تنظيمي جګړو څخه خپل قام وساته او د هېچا سره يې په تنظيمي جګړو کې ګډون ونه کړ. د هجرت او د جهاد په کلونو کې د شخصي امتيازاتو لپاره د هېچا دروازو ته ونه درېدل چې په چا باندې خپل احسان بار کړي او دا هم د وياړ خبره ده چې هېچا ته يې په ټيټو سترګو نه دي کتلي نه د چا په لستونو کې

ماران شو او نه يې په خپلو لستونو کې ماران پرېښودل، ازاد او سرشاره ژوند يې وکړ او نه يې د چا په ځمکو او ابادېو، جايدادونو او مالونو دعوه وکړه او بل چاته يې هم اجازه ورنه کړه چې د دوی په ځمکو او جايدادونو قبضه ولګوي. د ډاکټر نجيب الله د حکومت د رنګېدو وروسته يو څه جنجالونه، دعوې او دسيسې د ځينو خودغرضو کسانو له خوا ددې قام ولسونو ته جوړې شوې، خو د لوی خدای(ج) په رحم سره ددې قام د مشرانو او ولسونو په هوښيار اقدام سره حل شو او حل به شي.

د کوهستان د قام ډېر مشران د جهاد او د هجرت په کلونو کې د تنظيمونو له خوا د امرينو او قوماندانانو په توګه ګمارل شوي وو، چې خپلې جهادي اسلامي دندې يې په ډېره مينه صداقت او سرلوړۍ سره سرته ورسولې او هغو ته په اخرت کې د لوی خدای(ج) له درګاه څخه د فردوس جنت غوښتنه کوم.

# په کوهستانیو کې موسیقي، سازونه، سندرې او نڅاګانې

کوهستاني ولسونه د موسیقۍ، ساز، سندرو او نڅاګانو سره ډېر په زړه پورې مینه لري او د مشرانو د روایت له مخې کوهستاني د ډېر پخوا زمانو راهیسې له موسیقۍ، سندرو ویلو او نڅاګانو سره مینه او علاقه لري.

په پخوا زمانو کې به کوهستانیو په ورځ او شپو کې به سندرې او موسیقي او نڅاګانې کول، د شپې له خوا به په لویه میدانۍ کې درې څلور غټ منډان لرګو ته اور اچاوه او ګرد چاپېره به مجلسیان کېناستل او په وار وار او په ګډه سره به یې لوبې کولې، اوازونه او سندرې به یې ویلې او د موسیقۍ لپاره به یې له چمبې (دریا)، منګي، شپېلۍ او نورو الاتو څخه کار اخیسته او نڅاګانې به یې کولې، نڅا به په دوه ډوله وه یوه انفرادي په یوازې ډول په وار وار سره او بله نڅا په ګډه وه او په سندرو کې د ولسونو غوښتنې د اتلانو ستاېل او عشقي سندرې به ویل کېدې، چې دا سندرې او موسیقي تراوسه پورې دوام لري.

کوهستاني ولسونه په ودونو کې، د ماشومانو په سنتۍ، په نامزدۍ او نورو د خوښیو ورځو شپو کې د شپې ناستې محفلونه جوړوي او په دېرو او هوجرو کې د خوښۍ لپاره د موسیقۍ او

سندرو لپاره پروګرام کوي، خو اوس د پښتو موسیقۍ نه نوي الاتو څخه هم کار اخلي پرته د چمبو او شپېلۍ، بینجو، ستار، رباب، ارمونیه څخه هم کار اخلي.

کوهستاني ډېر په شوق سازونه کوي او مستې مستې سندرې وايي، چې هلکان په وار وار د نڅا لپاره پاڅوي.

په کوهستانیو کې هر کلي کې د ساز او موسیقۍ ډله یا ګروپ ښکاره او ځرګند وي. کله چې د چا ضرورت شي او یا څوک وغواړي چې د سندرو پروګرام جوړ کړي، هغو ته بلنه ورکوي او ثابت محل ته یې راغواړي. ځوانان د سندرو کېسټونه ډکوي او اوس خو لا ویډیویي پروګرام ثبتوي او په شخصي توګه په هوجرو او ډېرو کې ځوانان اوري.

کوهستاني ولس موسیقۍ سره ډېره مینه لري او موسیقي او سندرې د زړه د ارامۍ لپاره د زړه د خوښۍ لپاره یو خاص شفا بولي، موسیقي زړه ته قوت ورکوي او د زړه ټکور په سندرو او موسیقۍ سره کېږي، ډېر زیات ارزښت ورته قایل دي، په موسیقۍ او سندرو ویلو کې په کوهستاني ولسونو کې ډېر لوړ او نامدار شخصیتونه تېر شوي چې په ستار کې حبیب رسول تراوسه پورې نوم لري او نور لکه حضرت الله خان، شېرزمان، شمس الدین، هاشم خان، ملاجان.

په سندرو کې: رسول رحیم، محمد امین خان، رحمت ولي خان، عبدالله خان، حبیب الرحمن.

او په اوسني وخت کې دغه ځوانان پوره شهرت لري:

۱- حاجي ولي
۲- حنان
۳- جلال
۴- نورالدين
۵- سيد جان
۶- شهاب الدين
۷- عتيق الله
۸- صلاح الدين
۹- شاتم
۱۰- عبيدالله
۱۱- جمعه خان
۱۲- ميرنبي
۱۳- ميرزاخان
۱۴- ناصرچمن
۱۵- صديق الله خان
۱۶- لايق خان
۱۷- فضل
۱۸- نورفيروزخان
۱۹- ګل اکبرخان
۲۰- رحمت شاه
۲۱- وزير رحمن
۲۲- شېرزمان
۲۳- عبدالولي
۲۴- شېر
۲۵- سين الله
۲۶- جلال الدين
۲۷- ګلاب
۲۸- جمع الله

# د کوهستان هغه قربانیان چې د وطن په مینه سپېڅلي شوي

زموږ ټول هېوادوال قومونه او ولسونه چې دا درې لسيزې کېږي چې د جنګ او جګړو په لمبو کې ګير شوي او ملي شتمني مو څه په اورونو وسوزېده او څه يې د هېواد دښمنانو لوټ کړه، په دې کړاوونو او دردونو کې د نورو هېوادوالو سره يوځای ګواريانو (کوهستانيو) ډېرې ستونزې ليدلي، ځاني او مالي زيانونه يې ليدلي، خو خپل سرونه يې د هېواد د عزت او د هېواد د پت دښمنانو ته نه دي ښکته کړي او د هېواد مينه د کوهستاني ولسونو په زړونو کې توده ده، د وطن په غېږه کې چې څه تېر شوي دا د کوهستان ولسونو په خپلو سترګو ليدلي او دردونه او ستونزې يې ګاللي.

کوهستاني قام وطن ته د مور څخه زيات درناوی کوي د وطن غېږ ته د مور د لمنې په حيثيت قايل دي، د وطن ابرو له خپلې ابرو څخه لوړه ګڼي او د تاريخ په اوږدو کې ددې قام بچيانو د وطن او د ولسونو د عزت په لاره کې خپل سرونه قربان کړي دي او قربانوي يې، دا ځکه وطن زموږ مور ده، وطن زموږ ابرو، حيا، عزت او زموږ د ننګونو ټاټوبی دی. د جهاد په کلونو کې ددې قام ولسونو په ايمانداری او غيرت او مېړنتوب سره د خپل هېواد څخه په کلکه ساتنه کړې او د روسانو د کمونيستي پوځيانو په مقابل کې د سر په

بیه خپل مورچلونو کې په عزت شپې او ورځې تېرې کړي، قربان یې ورکړې ده او په رښتیا سره ډېرې زحمتونه یې ګاللي دي. ددې قام ځوانانو، بوډاګانو او تنکیو ځوانانو ته د وطن په لاره کې سربښندنه ابدي ویاړ ښکاریږي، دغه ولسونه په ایمانداری د اسلام د مبین دین په رڼا کې ژوند تېروي او ځانونو ته د اسلام فدایان وایي او د اسلامي دیني کارونو د ترسره کولو په لاره کې د هر چا څخه غښتلي او د قوي ارادې څښتنان دي.

هغه کوهستاني چې په دې دریو لسیزو کې د وطن په مینه د هېواد په درنه غېږه کې قرباني شوي په لاندې ډول سره در پېژنو.

هغه کوهستاني کدرونه او افراد چې د وطن په غېږه کې په دې دریو لسیزو کې شهیدان شوي دادي:

۱- حاجي صاحب شاطهماس خان د حضرت علي زوی



۲- عبدالقادر د عبدالباقي زوی

۳- عبدالودود د عبدالباقي زوی

۴- عبدالحسن د حضرت شاه زوی

۵- محمدعزیز د عبدالعزیز زوی

۶- محمد انور د پیرمحمد زوی

۷- علي نواز د ګل محمد زوی

۸- حیات الله د ګل محمد زوی

۹- نظام الدین د عصمت الله خان زوی

۱۰- سیداجان د ملاجان زوی








۱۱- ډاکتر خان د شېرمحمد زوی
۱۲- محمدعالم د محمد عمر زوی
۱۳- عبدالوهاب د عبدالحمید زوی
۱۴- رحمت الله د حضرت الله زوی
۱۵- جلات خان د نوروز خان زوی
۱۶- شېرمحمد خان د جلات خان زوی
۱۷- بهادرخان د عبدالرحیم زوی
۱۸- سربلند د عبدالمتین زوی
۱۹- رحمت ولي د عبدالولي زوی
۲۰- امیر سید د اکبري زوی
۲۱- امیر د اجدر زوی
۲۲- میرزا نورمحمد خان د سراج الدین زوی
۲۳- عبدالصمد خان د عبدالمنان زوی
۲۴- سربلند د ساو د عبدالمتین زوی
۲۵- مجاهد د زین الله خان زوی د ساو
۲۶- شډل د رحمت ګل زوی
۲۷- لایق د حیات الله خان زوی
۲۸- عبدالمتین د بریکوټ
۲۹- محمد شریف د ادم خان زوی، د بریکوټ
۳۰- اشرف د سید خان زوی، د دوکلام
۳۱- لعل زاده د اخون جان زوی، د دوکلام



۳۲- اخنزاده د اخون جان زوی، د دوکلام
۳۳- حبیب د حاجي گل زوی، د بریکوټ
۳۴- حبیب الله د نورعالم زوی، د دوکلام
۳۵- فضل حسن د پردل زوی، د دوکلام
۳۶- رحمن د میرزامسلي زوی، د ارندو
۳۷- فضل امین د سید اکبر زوی، د ارندو
۳۸- رحمن الدین د برهان الدین زوی، د ناړې



۳۹- حضرت الله د گل امین خان زوی، د ناړې
۴۰- ازاد خان د شمس الرحمن زوی، د ناړې



۴۱- شېرمحمد د عبدالغفارخان زوی، د
۴۲- محمدعالم د ازاد خان زوی
۴۳- بهادرخان د عبدالرحیم زوی
۴۴- کشرخان د نوروزخان زوی





# دوکلام

دا ښایسته کلی چې ښکاري دوکلام دی
زما چم دی زما ځان دی زما قام دی
دا د یوه نیکه بچي دي نور څوک نه شته
هر یو تن ته یې زما د زړه سلام دی
دا تماتوبی د ننګیالو شازلمو دی
دا مورچل د خپلواکۍ او انتقام دی
دلته اوسي ویښ بچي ددغې خاورې
دلته هر مورچل قابل د احترام دی
خپلواکي ازمون کې دلته توره شوې
سحر شوی په همت دلته ماښام دی؟
دغه چم څلاند تاریخ لري ولس ته
پوخ سنګر د استقلال او د قیام دی
سر یې غوڅ دی خاورې شوې ایرې شوې
چې کوم چا په بد نیت ایښی دلته ګام دی

۱۳۷۸ل کال

یادونه: دوکلام هغه سرحدي کلی دې چې د استقلال په جنګونو کې د چترال او انګرېزانو په ضد د بریالیتوبونو پوخ مورچل پاتې شوی.

# دوکلام (Dukalam)

دوکلام د نارۍ د کلي شمال ختيځ خواته د (راسا) د سين ختيځ ته د غرونو په لمنه کې هسک پروت شين او ښکلی سمسور کلی دی چې ختيځ خواته يې د ارنوي خوړ شنګر او دير سره سرحد لري، شمال خواته د ارنوي خوړ ارنوي او چترال او جنوب ته سونګله او



غرب ته يې د راسا شپاند سين او بريکوټ موقعيت لري.

دوکلام د افغانستان د کونړونو ولايت اخري کلی دی چې د چترال ارنوي سره لګېدلی دی، دا سرحدي کلی يو خاص جغرافيايي تاريخي موقعيت لري، چې د چترال- کونړ – نورستان د تګ راتګ لارې په دغه محل کې يوځای شوې دي او د دوکلام کلي لويديځ

خواته د راسا په سین باندې یو ښه وسپنیز اساسي پُل چې تخنیکي وسایط وربانديې په اسانه تېرېږي د افغان ولسونو د مهاجرت په وخت کې جوړ شوی چې ددې پُل پواسطه ډېره اسانتیا ولسونو ته پیدا شوې ده. پخوا وختونو کې د لرګو پُل د انسانانو او د حیواناتو



د تګ راتګ لپاره موجود و، په اوس وختونو کې په دوکلام کې (بندر) کې یو کوچنی ګرم بازار شته چې چترال او نورستان ته له دې لارې جنسونه او سامان الات انتقالېږي او د کونړ مرکز ته هم تخنیکي وسایط تګ راتګ کوي او یو تجارتي بندر ګڼل کېږي، چې د دوکلام او د ارنوي په منځ کې په بندري ساحه کې د ارنوي خوړ موقعیت لري چې د کونړ سین سره یوځای کېږي او په ژمي او دوبي کې ددې خوړ اوبه جاري وي، خو په دوبي کې ددغې خوړ اوبه

ړیړېږي د ښه وسپنیز یا کانکریتي پُل د نه لرلو په وجه د دواړو
اړخونو ولسونو او سوداګرو او تجارانو ته ستونزې پیداکېږي او
کله ناکله دغه خوړ په سیلابونو کې اخري اوج ته رسېږي چې د
دوکلام او د ارنوي د ولسونو زراعتي ځمکو ته ډېر تاوانونه رسېږي
د خوړ اوبه بېباکه کېږي او په هر طرف چې روان شو مخه يې نه نیول



کېږي. ددې سرحدي ولسونو ستونزو ته
تراوسه پورې دولتي او حکومتي ادارو
توجه نه ده کړې. که چېرې یو اساسي
منظم پُل جوړ شي او د خوړ روانو اوبو
لپاره مهار (ډېوال) جوړ شي بیا به ددې
سرحدي ولسونو ستونزې په سېلابونو
کې نه پیداکېږي ددغه خوړ دواړو اړخونو ته کوهستاني قام ژوند
کوي چې د ارنوي خلک هم په قام کوهستاني دي، خو د چترال
حکومت پورې مربوط دي، ولسي مشران حکایت کوي: کله چې د
ډیورنډ لیکه (خط) په نښه شو د کوهستان قام دوه میاشتې مکمل
لوی او وړو لاریونونه او مظاهرې



کولې چې موږ د ډیورنډ خط نه منو او د بریکوټ سرحداري ته یې تلل راتلل کول چې موږ د دوکلام او ارنوي ولسونه د یو قام او د یوې کورنۍ ولسونه یو، یو ورور د یو وطن سره او بل ورور د بل وطن سره تړل اسلامي کار نه دی باید چې ارنوي ولسونه د افغانستان سره وتړل شي او د میرکنډي پورې دا وطن د افغانستان پورې وتړل شي دا چې په هغه وخت کې ډېر کمزوري حکومتونه وو او نورستان نوی د افغان حکومت سره وتړل شو، نو د کوهستان قام او ولسونو چیغې، فریادونه او مظاهرو ته چا غوږ ونه نیو؟ او ارنوي د چترال د حکومت پورې وتړل شوه خو په هغه وخت کې د چترال مهتر پاچا او انګرېزانو د کوهستان مشرانو ته وعده وکړه چې ارنوي به د افغانستان سره وتړل شي، ځکه د کوري او د لام

بریتې کواتي او ګډ خوړ ولسونه هم زیات کوهستاني او نورستاني دي، دغه هغه وخت نه تراوسه مسئله په خپل حال پاتې ده، د ډیورنډ د خط مسله د زور او ظلم خبره ده او یو ناروا او غیراسلامي پرېکړه وه چې په افغانانو باندې د انګرېزانو په خوښه په جبر باندې



د دوکلام څو تنه مشران

وتپل شوه. د ډیورنډ د کرښې یوه پېړۍ وشوه خو د دوکلام د ولسونو ځمکې اوس هم په ارنوي کې شته او د ارنوي د ولسونو ځمکې په دوکلام کې شته خو د ډیورنډ د کرغېړنې کرښې دا ولسونه یو له بل څخه جدا کړي دي، یوه ژبه یو قام یو وجود په دوو برخو وېشل پرته د شیطانت او زور ظلم څخه بل مفهوم او مانا نه ورکوي؟

دوکلام د استقلال او د خپلواکۍ په جګړو کې د افغان لښکرو او جنګیالیو د مېړانې او غیرتو، بریدونو، یرغلونو مرکزي ټاټوبی ګڼل کېږي. ددې ځای ولسونه غښتلي، زړور او په وطن مین ولسونه دي چې چاته یې په ژوند کې سترګې نه دي ټیټې شوي او د زمانو د ازمونونو څخه هسک سر بریالي راوتلي دي او خپل د شهامت او

شجاعت او مردانګۍ اعتبار او اعتماد یې په نره ساتلی دی. د وطن او د وطن د ولسونو لپاره تل د سربښندونو په اول کتار کې ودرېدلي دي.

د افغانستان د استقلال څلورمې جبهې لوی مرکز په ناړۍ او بریکوټ کې موقعیت درلود، د دوکلام ولسونو د استقلال د ګټلو مجاهدینو سره یوځای اوږه په اوږه ګام په ګام په مېړانه د انګرېزانو



او مهترپاچا عسکرو سره جنګېدلي دي. کله چې خان میرزمان خان د استقلال دګټلو د لښکرو مشري په غاړه لرله د هغه په ابتکار او نوښت سره په دوکلام کې د انګرېزانو او د چترال پاچا د عسکرو د ځارلو لپاره یو پوځي تانه د دوکلام په لوړه کې جوړه شوه چې د دې پوځي محل (تانې) مسوولیت په خپله د دوکلام د ولسونو په غاړه

واخیست چې ددې کار له امله خان میرزمان خان غازي د دوکلام د خلکو څخه ډېر رضایت او خوښي وکړه چې په دې تانه کې د دوکلام د کلي (۱۲) تنو ځوانانو په رسمي توګه خپل پوځي او جهادي دندې په غیرت او ایمانداری سرته رسولې. د دوکلام ولسونه زیرک، باایمان او په خپل وطن مین خلک دي او د زمانو راهیسې د سیمې او منطقې قومونو او ولسونو ته په ازمونونو کې سرلوړي ثابت شوي دي او د استقلال د څلورمې جبهې کې د ویاړ څخه ډک کارونه سرته رسولي چې د مشرانو په حکایت سره خان میرزمان خان غازي د بریکوټ سرحدارۍ کې د دوکلام مشرانو هر یو شاه حسین، جمروزخان او سید خان ته لونګۍ ورکړې.

د دوکلام د پخوانیو وتلیو مشرانو نومونه دادي:

۱- غلام ملک، د نوموړي زامن او لونې نه دي پاتې شوې.

۲- ملک جمروز خان مشهور په (ګلي)

۳- شاه حسین چې نوموړی به تل د جرګو په کارونو لګیا وو.

۴- ملک سید خان

۵- ملک امان الله مشهور په ملک (پنجي)

۶- حبیب نور

۷- ملک غلام

۸- ملک دریاب شاه

۹- نورزاده

۱۰- حاجي سید امین

۱۱- محمد نور
۱۲- سید شریف خان
۱۳- حاجي يارمحمد خان

د دوكلام اوسني مشران:

۱- محمد یوسف خان
۲- حاجي اكرم خان
۳- حاجي مولوي- ملازاده
۴- حاجي ګل اكبرخان
۵- حاجي قادر
۶- حاجي سلامت خان
۷- حاجي خالد خان
۸- حاجي ګل محمد خان
۹- پردل خان
۱۰- حاجي غلام غوث
۱۱- حاجي عبدالشكور
۱۲- حاجي ګل زمین خان
۱۳- حاجي حسن شریف
۱۴- شېرزمین افسر
۱۵- حاجي مولوي سيد اكبر
۱۶- حاجي خليل الرحمن
۱۷- سيد محمد خان

۱۸- محمدعمر

۱۹- حاجي فضل الرحمن

۲۰- محمدیعقوب (وال)

۲۱- نورعالم خان

۲۲- ازاد خان

۲۳- حبیب رسول

۲۴- شهزاده

۲۵- عبدالسید

۲۶- حاجي عثمان خان

۲۷- حاجي نورغني

۲۸- صفی الله

د دوکلام ذکر شوي اوسني مشرانو د جهاد په کلونو کې د شوروي د کمونیست یرغلګرو پوځیانو سره په مخامخ جهادي جګړو کې فعاله ونډه اخیستې او د یادولو وړ کارونه یې سرته رسولې دي.

د دوکلام مشرانو ډېره په مېړانه د جهاد او مهاجرت په کلونو کې په عملي توګه د جهاد د بریالیتوب لپاره ډېره سربښندنه کړې ده او د جهاد په مورچلونو کې یې خپل ولسونو او هېوادوالو ته کارنامې پرېښې دي او د دوکلام څخه نیولې تر ننګرهار او حتی په نورو ولایتونو کې د جهاد په مورچلونو کې د نورو بیدارو وطنپرستو مجاهدینو سره په خطرناکو وختونو کې ګرځېدلي چې د حاجي اکرم خان او حاجي ګل اکبرخان حاجي قادر کارونه د ستاینې وړ دي او

هر چېرته چې تللي د خپلو ملګرو سره په بريالیتوب سره يې خپلې دندې په ښه توګه ترسره کړې دي او په منطقه او سيمه کې ذکر شوي کسانو د قومونو او ولسونو په جرګو کې فعاله ګډون کړی دی.

د دوکلام ولسونه د خپلو اولادونو روزنې ته ډېره توجه کړې ده او اوسني ځوانان او نجونې ټول په ليک او لوست پوهېږي او ديني او اسلامي زده کړو کې هم مخکې دي ډېره پاملرنه يې کړې ده.

اوسمهال په دوکلام کې يو ابتدايه ښوونځی د نجونو لپاره او يو منځنی ښوونځی د هلکانو لپاره فعال دي، چې ډېر زيات شاګردان په خپلو سبقونو او درسونو باندې مشغول دي، هغه محل چې پخوا وختونو کې ددې قام ولسونو د چونې يا د تانې لپاره حکومت ته ورکړی و دا چې د کلي په منځ کې موقعيت درلود او د کورونو په منځ کې د ولسونو سره ګډ پوځي پوسته او يا قرارګاه په افغاني او اسلامي لحاظ مشرانو ته مناسبه ښکاره نه شوه، نو د پخوانۍ چونۍ په ځای کې اوس ددې قام بچيانو لپاره په اساسي توګه ښوونځی جوړ شوی چې هلکان او نجونې دوه وخته خپل تدريس کوي.

د دوکلام ولسونه د پخوا په پرتله اوس ډېر شوي د دوکلام مرکزي کلی چې د يوې سمسورې غونډۍ په سر هواره کې پروت دی دغه کلی په هر خوا خپور شوی، د دوکلام د بازار خواته چې په بندر کې موقعيت لري، نوی کلی جوړ شوی چې د دوکلام اوسېدونکي دي او درېيم د دوکلام کلی د نوسر لويديځ ته د سين په غاړه پروت دی

چې حاجي سلامت خان او حاجي حسن شريف کورونه جوړ کړي دي. د دوکلام مرکزي ولسونو په اوسنيو وختونو کې په خپل زيار او مينه ډېر ښايسته ښکلي او هوادار جامع جومات جوړ کړی او د ديني ښوونې او روزنې مرکز ګڼل کېږي او ديني مدرسه په کې فعاله ده چې ډېر زيات شاګردان په ديني زده کړو بوخت دي.

په دوکلام کې د اوبو د څښلو لپاره د بمبو نلدواني شوې ده چې د کورنو په هکله د پاکو اوبو ستونزه نه شته. زراعتي ځمکو لپاره په دوکلام کې په اساسي توګه د ويالو بندونه جوړ شوي چې ګروندګرو ته ډېره اسانتيا ده او په ژمي او دوبي کې تل ويالې د اوبو ډکې روانې وي چې بندونه د ارنوي خوړ کې په اساسي توګه تړل شوي. د دوکلام ټولو کورونو ته د برق سيستم په کليوالي بڼه منظم شوی چې د ټولو کورنيو برقي ستونزه نه شته چې د شپې له خوا د برق په رڼاګانو د دوکلام ښکلا لاپسې ښکلې ښکاري.

د دوکلام ولسونه ډېره پخه کليوالي تړه لري هغه دا چې هېڅا ته اجازه نه ورکوي چې د دې کليوالو په کارونو کې برخه واخلي، د نورو قومونو افرادو او اشخاصو ته اجازه نه ورکوي چې دلته ځمکې واخلي يا کورونه جوړ کړي. خپل کليوال او قومي ستونزې لانجې او نور مسايل په خپله د کليوالو د شورا له لارې حل او هواروي.

يوه يادونه: د نوراحمد دين ملنګ په قول: د دوکلام لرغونی او پخوانی نوم ډوکه لام دی او دا يو سوچه ګواري کليمه ده چې ډوکه په ګواري ژبه کې دانو ته وايي او لام کلي يا چم ته وايي. په ګواري ژبه د دانو د کلي په نامه يادېږي او

دغه مانا لري چې په پخوا زمانو کې به چترال او نورستان کې د غلو دانو زياته مجبوري وه او دوكلام ته د دانو او غلو لپاره د چترال او نورستان خلک د خپلو اکمالاتو لپاره راتلل د وخت په تېرېدو سره دغه دوکه لام په دوكلام او حتى دغسې پخوانی ډېرې کلیمې په اندک تغیر سره بدلې شوې دي، خو زما په عقیده هم دغه خبره تائید ده چې ددې كلي پخوانی نوم دوکه لام دی او خلک يې اصلي كوهستاني دي.

## د دوكلام د كلي مربوط ځینې مهم ځايونه دادي:

۱- دوكلام دبه (Dukalam Daba)

۲- کره واري (Karawari)

۳- کړانسه واري (Karansawari)

۴- سوماني واري (Sumaniwari)

۵- کانځه کلی (Kanzakili)

۶- کنه کادرګان (Kanaka Dargan)

۷- کنه کاشوی (Kanakashoi)

۸- شونګ ناري (Shong Nari)

۹- علي دوسه (Ali Dusa)

۱۰- ټينکه کل (Tinka kal)

۱۱- شادوکل (Shadu kal)

۱۲- ماله دوكلام (Mala Dukalam)

۱۳- الګوده (Alguda)

۱۴- مالام سير (Malam sir)

۱۵- نوسیر (Nawsir)

۱۶- کچیک سیر (Kachiksir)

۱۷- نای پن (Nay pan)

۱۸- ثلول (Chalol)

۱۹- هوران یک (Horan yak)

۲۰- دره کیل (Darakil)

۲۱- ماله کیل (Malakil)

۲۲- مالام گل (Malamgul)

۲۳- دره گل (Dara gul)

۲۴- کوټ پته (Katpata)

۲۵- سید دره (نیله شاړ (Nilashar)

# رام (Ram)

دا د ارنوي په خوړ کې يو اباد کلی دی چې اوړی ژمی سمسور او شين ښکاري ددې کلي اوسېدونکي کوهستاني ګواريان دي چې څوک ورته رام او څوک ورته رام رام هم وايي، يوه سوچه ګواري کليمه ده چې د امن مانا ورکوي. ددې خلکو کورونه خواره واره دي او د ارنوي د خوړ اصلي مالکين دي، ورشو او جايدادونه دغه خلکو پورې اړه لري خو اوس نور قومونه هم دلته ژوند کوي لکه پښتانه، ګجر او نور. د رام کوهستاني د يو کورنۍ غړي دي خو اوس زيات شوي او څو لويو کورونو باندې وېشل شوي. کله چې زموږ په خوږ هېواد کې دا درېو لسيزو جنګونه پيل شول د رام خلکو ته هم په منطقه کې د نورو قومونو سره څه ستونزې او جنجالونه پيدا شو، دا خلک اوس زيات په دوکلام کې مېشت دي او د الګوده په نامه نوی کلی اباد شوی، دلته ژوند کوي. دا چې په سرحدونو کې بيا په اطرافونو کې ژوند لپاره ښه موقع په اوسنيو حالاتو کې برابر نه دي، دغو خلکو چې پخوا د زراعت او مالدارۍ په کارونو مشغول وو اوس يې تجارتي کارونو ته لاس اچولی دی او رام زيات خلک په دوکلام، الګوده کې ژوند کوي او يو شمېر کسانو يې اوس هم په رام کې د ژوند شپې تېروي. د دوکلام او د ارنوي څخه رام ته سړک نه دی تللی خلک پياده تګ راتګ کوي او د ستونزو سره مخامخ دي.

هغه کسان چې د رام څخه راوتلي او د دوکلام په الګوده کې او يا په ارنوي کې ژوند کوي خپل اولادونه يې په ښوونځيو کې شامل کړي، د علم او پوهې سره ډېره مينه لري.

د رام خلک ويښ، بانګ او غرنی کوهستاني دي په مېلمه پالنه کې ښه مشهور دي او په سيمه کې بانفوذ او د اعتماد او عتبار وړ خلک ګڼل کېږي.

## د رام پخواني مشران:

۱- ملک سعدالله خان

۲- ملک محمدجان خان

۳- پوله خان

۴- عبيدالله خان

۵- رحمت الله خان

۶- شېرافضل خان

۷- جمدرخان

## د رام اوسني مشران دادي:

۱- غلام خان

۲- ملک جان حاجي

۳- حاجي محمد دين

۴- حياوالدين

۵- قيودات

۶- حاجي معتبرخان



ملک محمد جان خان په خپل وخت او زمانه کې يو مشهور مشر او سپين ږيری تېر شوی چې د مېړانې او ننګ کيسې يې اوس هم د مشرانو په ذهن او ژبو کې پاتې دي. حاجي ملک جان چې اوس فعلاً د رام يو پېژندلی شوی مشر دی، په سيمه کې د قومونو او ولسونو سره ډېره ښه رابطه لري، د يو ولسي مشر حيثيت لري او د قومونو او ولسونو په جرګو او مرکو کې ګډون کوي، د ښه او لوړ فکر خاوند ګڼل کېږي، يو سنجيده او هوښيار سپين ږيري په توګه يې ټول قومونه او ولسونه پوره درناوی کوي او په سييمه کې د اعتماد او باور وړ سپين ږيری شخصيت دی.

د بریکوټ ولسونو ته ډالۍ

# د شملو خاوره

دا د غازیــــانو د بریـــدونو کارنـــامو خـــاوره ده
دا د باننګــه لــښکریانو د رزمـــو خـــاوره ده
دلته یادونه د (چرخي[1]) (وکیل[2]) او (خان[3]) ښکارېږي
دا د بـــاتورو ولـــسونو تـــاریخو خـــاوره ده
چــې خپلــواکي یــې سرښـندنو پــه بــدل اخیــستې
دا د اتلـــو مېړنیـــو د شـــملو خـــاوره ده
دلتــه انګرېز یــو ګام راتــګ تــه چا پرېښودی نــه دی
دا د ویـــاړمنو ولـــسو د افـــسانو خـــاوره ده
د (سنګالي[4]) غـر نـه پوښتنه وکـړئ پوهـه بـه شئ
دا د غازیـــانو د حملـــو او د بریـــدو خـــاوره ده
د (انګرېزانـــو[5]) (متیرانـــو[6]) دلتـــه مـــلا ماتـــه وه
دا د خپلواکـــو ولـــسونو د مورچـــو خـــاوره ده

۱- چرخي: سپه سالار غلام حیدرخان چرخي.
۲- وکیل: جنرال عبدالوکیل نورستانی.
۳- خان: لوی خان غازي میرزمان خان، د استقلال د ګټلو د ځلورمې جبهې قوماندان.
۴- سنګالي: د بریکوټ شمال خواته مخامخ هسک غر چې د مجاهدینو قرار ګاه وه.

۵- انګرېزان: په چترال کې انګرېزانو پرېکړه کړې وه چې د بريکوټ په لاره به ننګرهار او کابل ته ځي.
۶- ميتران: ميتر د چترال پاچا و او انګرېزانو ميتر ته وعده ورکړې وه چې اسمار پورې به ستا مربوط شي.

# بریکوټ

د بریکوټ ښایسته او ښکلی کلی د کونړ ولایت شمال خواته په اواره کې پروت دی چې د سنګالی غر ورته مخامخ په سلامۍ ولاړ دی. د بریکوټ شمال خواته ختیځ نورستان (لنډی سین) جنوب ته یې پاشنګر او ختیځ خواته یې دوکلام او لویدیځ خواته یې د نورستان ولایت او د ګورال لوړ او هسک غرونه او د کونړیا کلی پروت دی. د بریکوټ شمال ختیځ خواته ارنوی او چترال پراته دي، بریکوټ د غرونو په لمنه کې پروت دی، هسکو غرونو او ځنګلونو



ددې کلي موقعیت ته لاپسې ښکلا ورکړې ده او د کونړ راسا سین د بریکوټ ختیځ خواته په غورځنګونو دی چې په دوابه کې د چترال

سین او د لنډ سین دواړه یوځای کېږي او په غورځنګونو او موجونو د جنوب خواته د سپین غر په لور روان دی. د بریکوټ د ښکلي او سمسور کلي شمال او جنوب خواته د نورستان د هسکو غرونو او ګړنګونو څخه دوه خوړونه راوتلي چې یو یې د کوماریګل خوړ او بل یې د کوټیا د خوړ په نامه یادېږي. بریکوټ د پخوا زمانو راهیسې یو تجارتي مرکزیت دی، ددې ځای څخه چترال او نورستان تر بدخشان پورې د تګ راتګ لارې تل د مسافرو او تجارانو او لارویانو لپاره خلاصې دي، خو متاسفانه دغه مرکزي تجارتي محل ته د حکومتي او دولتي چارواکو له خوا څه پاملرنه نه ده شوې او په پخوا زمانو کې هند ته چې د پاکستان نوم لا په کاغذونو کې لیکل شوی نه و، په دغه لاره باندې تګ راتګ کېده او قافلې تېرېدې، کله چې شرقي نورستان ته د امیر عبدالرحمن د واکمنۍ په دوره کې توجه او پاملرنه وشوه او کافرستان په نورستان بدل شو او د کونړ د مرکز اسعد اباد څخه بریکوټ او برګمټال ته سړک ووهل شو، په هماغه وخت کې پرېکړه وشوه چې دا سړک بدخشان ته ور رسېږي خو یوه پېړۍ کېږي چې د بریکوټ او نورستان په سړکونو دوباره اساسي تخنیکي او فني کار نه دی شوی، که چېرې دولتي توجه وشي او سړکونه جوړ شي پاخه شي او ترانسپورت او تجارت ته دولت او حکومت مخه وکړي، نو د بریکوټ سرحدي موقعیت به د تورخم څخه کم نه وي او بیا نو تجاران کولی شي په پوره اسانتیا

سره خپل د تجارت مالونه په دغه بندر باندې انتقال کړي او لاره به لنډه شي او اوسنۍ ټولې ستونزې به حل وي.

د بریکوټ پخوانی او اصلي نوم (موشان دم) دی، دا یوه سوچه ګوارباتي کلیمه ده چې د لوبو یا ورزشونو کلي مانا ورکوي، دا چې ټولو ته څرګنده ده چې اوسنی نورستان پېړۍ پېړۍ یوازې او ځانته پاتې شوی او د نورو قومونو سره خصوصاً د مسلمانانو سره اړیکي نه لرل او د خپل موجوده جغرافیایي موقعیت څخه نورستانیانو په مېړانه ساتنه کوله او څوک یې تګ راتګ او دخول ته نه پرېښودل. بریکوټ په هغه پخوانیو زمانو او پېړیو کې هم چې د کوهستاني قام یو خاص جغرافیایي موقعیت دی په دغه منطقه کې خاص نوم او رول درلود.

تاریخ شاهد دی چې اوسنی نورستان او کونړ په تېرو زمانو کې د نورستانیانو او ګواریانو د ژوند ټاټوبی ګڼل کېده او څو پېړۍ وړاندې یوه قوي ولسي اداره د نورستانیانو او یوه قوي اداره د ګواریانو وه چې په ولسونو یې خپله اداره کوله. کله چې اسلامي قوتونه د نورستان د اشغال او په هغو باندې د اسلام د منلو په خاطر د موشان دم پورې رارسېدلي دغه اخري محل یا کلي ته د بریکوټ نوم ورکړی او مانا یې دا وه چې د اسلام مبین دین دغه محل ته په پوره ایمانداری د اسلام دین رسېدلی دی، زما په عقیده دغه نوم د سلطان محمود غزنوي په وخت کې ایښودل شوی خو په تېرو زمانو کې د بریکوټ شمال خواته د لنډي سین په درو کې د نورستانو په

مقابل کې هیڅ مقاومت او د جنګونو د کولو توان نه دی کړی، ډېرو نړیوالو تجاوزګرو خپلې پوځي لښکرې د اوسني نورستان د نیولو په شوق استولی دی، خو کله چې د نورستان تنګې او شنې درې یې په سترګو لیدلې او د نورستانیانو مقاومت، جرئت او جنګي تکتیکونه او مهارتونه لیدلي نو نو د جنګ کولو څخه پښېمانه شوي او د تېښتې لاره یې له سیمې څخه غوره کړې، لازمه ده چې وویل شي نورستاني یا د (الینا) د کورنۍ غړي اصلي اریایي



ولسونه دي او پېژندل شوي ولسونه دي چې دغو ولسونو ته د هسکو غرونو مېشته اوسېدونکي اریایان ویل کېدل او ویل کېږي، چې وروسته به په دې اړه نور معلومات تاسو قدرمنو لوستونکو ته

وړاندې شي. رابه شو خپل اصلي مطلب ته، د بریکوټ اصلي اوسېدونکي ګواریان (کوهستاني) دي.

دغه ولسونه ډېر مېلمه پال، زړور، نېک خویه، صادق او زړه سوانده، ایمانداره او غیرتي او وطنپرست خلک دي، دا ولسونه په څو قومونو وېشل شوي، لکه فقیرداري، غریب داري او نور، د ډېرو جایدادونو زراعتي او للمي ځمکو خاوندان دي.

دغه ولسونه زیات په زراعتي او مالدارۍ چارو باندې لګیا دي.

بریکوټ د ډېرو پخوا زمانو راهیسې چې نوم یې موشاندم دی په دې منطقه کې د درېو ادارو: ۱- الینا، ۲- د ګوارو اداره، ۳- د منګول اداره او د کونړ باجوړ-دیر- او نورو سیمو خلکو به هم د ورزشونو په لوبو کې مقابلو کې ګډون کاوه.

بریکوټ د لوبو او سپورتونو مسابقاتو او ورزشونو مرکز ګڼل کېده او دلته به ډول ډول ورزشونه، پهلواني، د غشو ویشل، د ډبرو غورزول، د نښې ویشتل، د وزن پورته کول او نورې په زړه پورې لوبې کېدلې چې وتلي پهلوانانو او ورزشکارانو ته به د پورته ذکر شویو ادارو له خوا په نوبت نوبت ښه خوراکونه او سوغاتونه ورکول کېدل او د وخت لویو مشهورو لویانو به ګډون درلود او د ورزشکارانو او پهلوانانو به ډېره پالنه کوله.

## د بریکوټ پخواني مشران:

۱- جلات خان

۲- سید جان

۳- حضرت خان
۴- محمد یعقوب خان
۵- محمد کریم خان
۶- حضرت غني خان
۷- حضرت ولي خان
۸- ګل ولي خان
۹- غني خان
۱۰- ملی خان
۱۱- علي خان
۱۲- احمد خان
۱۳- اکرم خان
۱۴- ملک خان
۱۵- شېرين خان
۱۶- ابراهيم خان
۱۷- قادرشاه
۱۸- عبدالله جان
۱۹- ملامحمد خان
۲۰- حضرت محمد خان
۲۱- ډل غني خان
۲۲- ملک محمد امين خان
۲۳- شهيد معلم شېرمحمد

## د بریکوټ اوسني مشران:

۱- حاجي ادم خان
۲- حاجي ګل محمد خان
۳- حاجي شېرزمین
۴- حاجي سلطان رئیس
۵- حاجي پیدین خان
۶- حاجي ګل احمد خان
۷- حاجي جمدر خان
۸- حاجي عزیزالرحمن (عزیزي)
۹- حاجي اکرم جان
۱۰- طوطي خان
۱۱- انجنیر نورمحمد خان
۱۲- انجنیر دین محمد خان
۱۳- حاجي زمان
۱۴- ډګروال شېر قوماندان
۱۵- سازولي خان
۱۶- حاجي سلطان
۱۷- حاجي خان محمد
۱۸- عبدالله
۱۹- سین الله (جدي)
۲۰- ډاکتر رحیم

۲۱- غلام نبي ښوونکی
۲۲- حيات خان
او نور مشران هم شته، نوموړي ذکر شوي او سني مشران د وطنپرستی په روحيه د هېواد او ولسونو او قومونو په جرګو او مرکو کې پوره ونډه لري او په سيمه کې د شهرت خاوندان دي.
د بريکوت هغه کسان چې د مقدس جهاد په لښکرو او مورچلونو کې يې شپې او ورځې کړې دي دادي:
۱- حاجي اکرم جان
۲- شېرخان
۳- حاجي سيد اکبر
۴- عزيزالرحمن (کوچی)
۵- عصمت الله خان
۶- ډاکتر علي خان
۷- ايوب خان
۸- عبدالودود
۹- حبيب رحمن
۱۰- محمد سيد جان
۱۱- ګل
۱۲- شېرمحمد
۱۳- اخترمحمد
۱۴- شېرزمان

او نور ډېر شمېر مجاهدین شته چې نومونه یې زما د قلم د نوکې څخه پاتې دي، لوی خدای(ج) دې ورته په اخریت کې اجرونه ورکړي.

## د بریکوټ د ځینو ځایونو نومونه:

سلام کوټ
شام دم
سایی
کڅی
پرپټګاه
دره باټ شوی
ډل شوی (چیني ناو)
ګورو ناو
توپ موړه
کچیک شوی
ګرداو
کنټو او نڅ
ګد نبلینګه

یادونه: بریکوټ اصلي د کوهستانو (ګواریانو) د ژوند ټاټوبی دی، خو د جغرافیایي موقعیت په لحاظ یو خاص مرکزي ساحه ده او د چترال او د نورستان مخه ده په پخوا زمانو کې د تاریخ په تېرېدو سره چې دلته څوک راغلي دغه سیمه یې خوښه شوې او د تل

لپاره دلته پاتې شوي. په بريکوټ کې نن سبا پښتانه لکه وردک، کامبټي، مشواڼي، سالارزي، نورستاني، ګجر او نور قومونه هم ژوند کوي او ځينو لا پکې ځمکې اخيستي او کورونه لري او ځانونه د بريکوټ معرفي کوي، خو اصلي ټاټوبی د کوهستاني قام د ی. ددې قام د ولسونو د ښه سلوک او نېکو اخلاقو او ښه چال چلند مهرباني او زړه سوي په نتيجه کې نور قامونه دلته ژوند کوي، پخوا بريکوټ په دوو برخو وېشل شوی و چې د بريکوټ لر کلی او بر کلی خو اوس بريکوټ په ځو کلو باندې وېشل شوی او د زيات نفوس او کورونو په جوړولو سره نوي کلي او کورونه زيات شوي، چې غټ کلي په کې دغه لاندې دي:

۱- د بريکوټ مرکزي کلی، چې د غره په لمنه کې پروت دی
۲- د بريکوټ د بازار کلی (لره بانډه)
۳- د بريکوټ شام دم کلی، د ملک شېرزمين کورونه
۴- د بريکوټ ګرداو کلی، د حاجي اکرم جان کورونه
۵- د بريکوټ برکڅ کلی
۶- د بريکوټ سلام کوټ کی، چې اوس يې د کلي شکل غوره کړی دی.
۷- د بريکوټ جمدر مېنه، کماريګل خوړ شمال ته
۸- د بريکوټ حبيب مېنه، د عزيزالرحمن کوچي کورونه

د بريکوټ ولسونه د هلکانو لپاره لېسه او د نجونو لپاره هم لېسه لري، چې ډېر شاګردان لري.

بریکوټ یو ښه روغتون لري چې د عاجلو ناروغانو د بستر لپاره خونې هم لري، دلته په بریکوټ کې یو سرحدي کنډک هم شته، یو محلي راډیو هم شته چې په پښتو او کوهستاني او نورستاني ژبو خپرونې لري چې ددغې راډیو موسس شکیب الله سانین دی، بریکوټ کوچنی ولی ښه ګرم بازار لري چې د ولسونو لپاره اسانتیا شته چې هر ډول افغاني او پاکستاني جنسونه په کې پیدا کېږي.

د بریکوټ په ابتدایه ښوونځي کې پخواني استاذان:

۱- سید عثمان پاچا، سرښوونکی د څوکۍ ولسوالۍ

۲- محمد اکبر، سرښوونکی، د خاص کونړ

۳- محمد ایوب خان، د لغمان ولایت

۴- استاد امیرمحمد خان، د دوکلام

۵- جمعه دین، د دوکلام

۶- مامور عبدالسلام، د نارۍ

۷- نادر سرشار، د کونړ د مرکز

# بریکوټ یو تجارتي لوی مرکز

بریکوټ د ختیځ نورستان او د چترال او دیر او د کونړ سره د پخوا څخه تجارتي د تګ راتګ او د تجارتي موادو وړلو راوړلو لویه او ارزښتناکه لاره ګڼل کېده، د بریکوټ شمال ختیځ خواته چترال او شمال خواته یې نورستان موقعیت لري.

کله چې د امیرعبدالرحمن په وخت کې چې د هېواد پاچا و پر (۱۸۹۴م) کال د نورستان لپاره د مرکز څخه اسمار ته زیات عسکري پوځونه د سپه سالار غلام حیدرخان چرخي په قوماندانۍ باندې راورسېدل، ددې عسکري قوې له جملې څخه (۴) عسکري غنډونه بریکوټ ته راورسېدل او په بریکوټ کې ځای پرځای شو او څه عسکري پوځونه باشګل دره کې لنډي سین پرغاړه ځای پرځای شول. غلام حیدرخان د پوځونو سره بریکوټ ته راغلی و او خپل څه عسکر یې کامدیش ته استولي وو، د کامدیش خلکو د پوځیانو څخه استقبال کړی و، یانې د لنډي سین په دره کې څه ستونزې نه وې، غلام حیدرخان د نورستان خلکو ته امر وکړ چې خپل تجارتي فعالیت اغاز کړي او بریکوټ مرکز ته خپل د خرڅون شیان لکه، غوړي، شات، وړۍ او نور سامان د نورستان خلک بریکوټ ته راوړي او د بریکوټ د بازار څخه خپل د اړتیا وړ مواد په اسانۍ سره نورستان ته انتقال کړي او د هر ډول خطرونو تضمین کوم. سپه سالار غلام حیدرخان تجارتي فعالیت ته د کام قبیله چې د کامدیش

پورې اړه لري تشويق کړه او هغو ورسره ومنله او بريکوټ د يو لوی تجارتي مرکز حيثيت لاپسې غوره کړ او تر نن ورځې پورې بريکوټ د يو تجارتي مرکز حيثيت لري، خو دغه بازار ته د دوکلام د بندر بازار ډېر تاوان ورساوه. د دوکلام بازار د ډاکټر نجيب الله د رژيم د سقوط څخه وروسته چې پر (۱۳۷۰ل) کال يو څو دوکانونه د دوکلام د بندر خواته جوړ شو چې د سرحدي او دولتي قانون له مخې بايد په سرحد کې دوکانونه جوړ نه شي دا چې د مجاهدينو حکومت جوړ نه شو او که جوړ شو پوره واک او اختيارات يې نه لرل، بازار او دوکانونه په قانوني توګه د بندر څخه لږ تر لږه دوه درې کيلو متره فاصله ولري، دا چې تراوسه زموږ په خاوره کې ولسواکۍ ټينګه نه ده قوي او مظبوط حکومت نه شته نو د دوکلام بازار د بريکوټ د بازار په نسبت ډېر ګرم دی او تجارتي راکړه ورکړه هم ډېره ده او د بريکوټ بازار اوس سوړ دی.

د دوکلام بازار د سرحدي قوانينو خلاف بازار دی، چې قاچاقبرانو راکړه ورکړه په اسانۍ سره کوي.

# ډاکتر محمد رحیم کوهستانی



ډاکتر محمد رحیم د بریکوټ په کلي کې پر (۱۳۴۹ل) کال سترګې نړۍ ته په یوه بزګره کورنۍ کې غړولي دي. د قادرشاه زوی او د غریب شاه لمسی دی، مورنۍ ژبه یې ګواري ده، خپلې لومړنۍ زده کړې یې په بریکوټ کلي کې سرته رسولي او د قران شریف او دیني زده کړې یې په خپل کلي جامع جومات کې پایته رسولي دي. د بریکوټ د لیسې له دولسم ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شوی، له کوچنیتوبه ې د طب له مسلک سره علاقه درلوده.

د خپل لیاقت او زیار په اساس یې لوړو زده کړو لپاره د طب په څانګه کې لاره ومونده چې د کابل د صحي علومو په انستیتیوت کابل طبي پوهنتون انستیزیلوژي انستیتیوت د ۱۳۶۷ل کال څخه تر ۱۳۷۳ل په اعلی درجه سرته ورساوه او د زیاتو زده کړو لپاره د ډېرو لوړ نومرو په اخیستلو بنګله دېش، نیپال، یونان او هندوستان ته د لوړو عملي زده کړو لپاره تللی او په بریالیتوب د یو لایق مسلکي ویښ ډاکتر په توګه د هېواد غېږې ته ستون شوی او په عملي توګه یې خپلو ولسونو ته ډېر لوړ کارونه په خپل مسلک کې کړي او کوي یې.

په لاندې طبي دندو کې اوس مشغول دی:

- په ملالۍ روغتون کې د انستیزي سرویس شف.
- په همدې روغتون کې د ولادي عاجلو مراقبتونو او انستیزۍ څانګه کې ملي ترینر.
- د انتان د مخنیوي ملي ترینر
- په همدې روغتون کې د انتان د مخنیوي کمېټې مشر
- د روغتیا په وزارت کې د ولادي واقعاتو او اختلاتاتو د کمېټې غړی.
- په ټولنیزو سازمانونو کې غړیتوب ویاړ
- د جنوب شرق اسیا د انستیزیولوژي انجمن غړی
- د افغانستان د طبي کارکوونکو د انجمن غړی
- د طبي کارکوونکو د اصلاحي شورا غړی
- د افغانستان د انستیزیولوژستانو د انجمن موسس غړی او مالي مسوول.

نومړی د ملالۍ په روغتون کې یو مهربان او لایق ډاکتر په توګه ډېر شهرت لري، په علمي پوهه سمبال او د نېکو اخلاقو لرونکی ډاکتر دی چې د ملالۍ روغتون کارکوونکي نوموړي سره ډېره مینه لري.

نوموړی متاهل دی شپږ اولادونه لري چې درې یې زامن او درې یې لوڼې دي. د کورنۍ غړو سره خوښ او خوشاله دی، پرته له طبي کارونو په کورنیو کارونو کې هم مرسته کوي او د خپلو بچیانو په ښوونه او روزنه کې ډېره پاملرنه کوي. دده دوه لوڼې د ښه لیاقت په لرلو سره د ننګرهار په طب پوهنځي کې د دویم ټولګي محصلینې

دي، ټول بچیان یې په مینه په ښوونځیو کې درسونه وایي او د لوړو
زده کړو د چمتوالي لپاره شخصي کورسونه وایي.
ډاکتر محمد رحیم د نادولتي موسساتو سره هم مرسته لري.
یونیسف، ادرا، میلن کف، HSSP/jiKa
نوموړي د انستیزي والژزي ولادي په نوم یو مسلکي طبي کتاب
لیکلی دی چې د طبي کارکوونکو لپاره په زړه پورې او ګټور علمي
بحثونه لري.

ډاکتر محمد رحیم د روغتیا وزارت د مقام څخه ۱۲ تقدیر نامې
او تحسین نامې اخیستي او د خارجي موسساتو څخه یې دوه
ستاینونه د جنوب شرق اسیا د انستیزیلوژستانو او ولادي عاجلو
مراقبتونو د انجمن له خوا د نوښتګر ډاکتر په توګه دوه تقدیر نامې
ترلاسه کړې دي، چې دا د نوموړي د لیاقت او د علمي پوهې ښکاره
ثبوت ګڼل کیږي. د ژوند په چارو کې د ولسونو په خدمت کې ورته
بری غواړم.

# ســـاو

(Saw)

(ساو) یوه کوهستاني کلیمه ده چې د (ښکلي، پاک او پاکیزه) په مانا ده. دغه ښکلی او غرنی لوی کلی د ناړې د مرکز جنوب خواته د سین په غاړه پروت دی چې غرب خواته یې د کونړ سین په مستۍ روان دی، ختیځ خواته یې د ساو خوړ، غرب خواته یې د کونړ سین



او زنګربو شه، شمال خواته یې ببله چن او جنوب خواته یې نشه ګام او ثونک موقعیت لري.

د ساو کلي ډېر زيات نفوس لري، يو اباد او پخواني کلی دی، ددې ولسونو ژبه ساوجي (Sawagi) ده، خو په پښتو ژبه هم پوهېږي، دا يوازيني کلی دی چې ځانته په خپله ژبه خبرې کوي. په ساوجي ژبه باندې د پاکستان د چترال په ضلع کې په عشريت او بيوړ ډېر ولسونه خبرې کوي او دغه ژبه د عشرتي او بيوړي ژبې سره يوه ده او کوم توپير نه لري. د ساو کلی د لرغونو زمانو راهيسې اباد او ودان دی او په ولسونو او قومونو کې د کوهستانو په نوم ياد شوی، ډېره زياته زراعتي او للمي ځمکه لري او ولسونه يې په زراعتي او مالداري کارونو مشغول دي. د ناړۍ د ولسوالۍ څخه (۸) کيلو متره فاصله لري.


مرحوم ملک عین الله خان

په ساو کې پنځه لوی قومونه:

۱- ساوخېل
۲- ماموند، ښوکيتي
۳- لهنداو
۴- بران داري
۵- گبري

## د ساو پخواني مشهور مشران:

۱- ملک حيات الله
۲- ملک عين الله خان

۳- ملک احمد خان

۴- ملک نور جلال

۵- ملک یار محمد شاه

۶- ملک لعل

۷- عبدالغفار خان

۸- بډوک

۹- ملک سردار

۱۰- ملک میرکرم

۱۱- ملک حبیب الله

په ساو کې ولسي او قومي کارونه د څلورو کندو د مشرانو له خوا



په یووالي سره مخکې بیول کېږي. کله چې څه ستونزې ولس ته پیدا

شي، نو د کندو مشران راټولېږي د ستونزو د حل لپاره په يووالي سره پرېکړه کوي، چې د عملي کولو چارې يې مشران په غاړه لري او نور ټول ولسونه مسووليت لري چې د کندي د مشرانو پرېکړې او فيصلې په ځان او ولسونو عملي او تطبيق کړي.

## په ساو کې اوسني مشران:

۱- مولوي سيد نبي ساوخېل
۲- نقيب الله
۳- غلام محمود
۴- ګلاجان
۵- قاضي عبدالرحمن
۶- اکبرخان
۷- حبيب الرحمن
۸- سخي قوماندان
۹- ډاکتر احمد شاه
۱۰- محمد شاه
۱۱- مدير غلام غوث
۱۲- حاجي لعلي جان
۱۳- هدايت الله
۱۴- وکيل
۱۵- حاجي غلام ربي

د ساو ولسونه د علم او عرفان سره ډېره مينه لري او تل يې کوښښ کړی دی چې خپل ځوانان د علم په ګاڼه سمبال کړي، د خپلو اولادونو د تعليم په برخه کې زيار ګاللی او د علم او پوهې په ارزښت باندې پوهېږي.



په ساو کې ډېر ملي تعليم يافته کدرونه شته چې په بېلابېلو مسلکونو کې تعليم او تحصيل سرته رسولی او اوس په دولتي او ملي شخصي کارونو لګيا دي، د ساو ملي کدرونه په لاندې ډول دي:

۱- محمد رسول (غمکش)

۲- ډګروال شېرافضل

۳- لايق افسر

۴- ډاکتر احمد شاه
۵- حبیب الرحمن
۶- نقیب الله (درد پدلی)
۷- ډاکتر سید امین
۸- ملک جان
۹- مدیر غلام غوث
۱۰- ملا غني
۱۱- معلم شیرین
۱۲- مولوي سید نبي
۱۳- جګړن شدل
۱۴- ګلاب شاه
۱۵- ډاکتر محمد هاشم
۱۶- حسن خان
۱۷- صلاح الدین
۱۸- قاضي سراج
۱۹- حاجي لعلي جان
۲۰- سید نبي
۲۱- سید جعفر
۲۲- معصوم شاه
۲۳- جمال الدین
۲۴- عبدالله استاد

۲۵- مولوي لطف الله

په ساو کې ډېر ديني عالمان هم شته چې لوړې زده کړې يې ترسره کړي او د قران شريف حافظان هم شته:

۱- مطيع الله

۲- لطيف الله

۳- سيد نبي

۴- عبدالرحمن قاضي

په ساو کې د هلکانو د زده کړې لپاره يوه لېسه شته چې غلام غوث د لېسې د مدير په توګه رسمي مسووليت په غاړه لري، يو باتجربه ښوونکی دی، چې د زرو تنو څخه زيات زده کوونکي په دې لېسه کې شموليت لري.

د ساو خلک د اسلام په مبين دين مين ولسونه دي، د وطن او د اسلام لپاره قربانۍ ته تل چمتو دي، د ساو ولسونه ذاتي زيرک او ايماندار ولسونه ګڼل کېږي.

د جهاد په کلونو کې دغه ولسونو د روسانو او کمونيست پوځيانو په مقابل کې ډېره مېړانه ښکاره کړې او مورچل په مورچل د بهرنيو يرغلګرو په ضد جنګېدلي دي. دا د اسلام سره ددې ولس د مينې او محبت ښکاره ثبوت دی. دغو ولسونو د جهاد په کلونو کې ډېرې ستونزې ګاللي، د سر قرباني يې منلې ده، خو خپل د مورچلونو څخه يو خط په شا نه دي تللي او هر کله چې د اسلام دښمنو يرغلګرو سره مخامخ شوي هغوته يې ملاماتونکي

ګوزارونه ورکړي او خدای(ج) ورته بری په نصیب کړی دی. د ساو ټول ولسونه مجاهدین دي، خو د ځینو اتلو مجاهدینو نومونه اخلو:

۱- مرحوم مولوي صاحب حمید الله

۲- مولوي لطف الله، اوس د ساو د کلي د مرکزي جامع جومات امام دی، لایق شخصیت دی.

۳- مولوي نصر الله

۴- مولوي مطیع الله

۵- مولوي عبدالطیف

۶- مولوي عنایت الله

۷- قاري عنایت الرحمن

۸- ملک مرحوم نور جلال

۹- ملک جمال الدین

۱۰- ملک نظام الدین

۱۱- اصل دین

۱۲- رحمن الدین

۱۳- لطف الله

۱۴- قاضي عبدالرحمن، د جهاد په کلونو کې د امریت ویاړ یې په برخه و.

۱۵- حاجي لعلي جان

۱۶- سیف الرحمن

۱۷- اکبر خان

۱۸- سید حسین
۱۹- قاضي سراج
۲۰- گل احمد جان
۲۱- معلم شېرین
۲۲- نادر خان
۲۳- حاجي محمد رزاق
۲۴- ملک گلا جان
۲۵- نادر خان
۲۶- غلام سخي
۲۷- ارسلا خان
۲۸- سید محمد
۲۹- ملک عین الله خان
۳۰- مدیر غلام غوث
۳۱- ډاکتر ملک جان
۳۲- ډاکتر سید امین
۳۳- محمد جعفر
۳۴- غلام ربي
۳۵- حاجي محمد نبي
۳۶- سید پاچا
۳۷- وزیر
۳۸- سید عظیم

۳۹- لیاض

۴۰- امیرجان

۴۱- شېرزمین

۴۲- محمدرحیم

۴۳- محمدغني

## د ساو شهیدان:

۱- شهید مولوي شفیع الله[1]

۲- شهید سیدغفار

۳- شهید محمدجان

۴- شهید سرور

په ساو کې یوه دیني اسلامي مدرسه هم شته چې ماشومان او تنکي ځوانان په کې دیني زده کړې کوي. په ساو کې یو د نجونو منځنی ښوونځی شته چې په لسګونو نجونې په کې په زده کړو لګیا دي.

د ساو د کلي ختیځ خواته د ساو خوړ اوږده دره ده چې د ساو خوړ په نوم یادېږي، خو ددې خوړ اوبه په دوبي کې د ساو د خلکو زراعتي ځمکو او باغونو ته کفایت نه کوي او د دوبي په موسم کې

---

(۱) مولوي شفیع الله د ساو د کلي یو پېژندل شوی دیني عالم او د مرکزي جامع جومات امام او خطیب پر (۱۳۵۷ل) کال د ناړې د ولسوالۍ د وخت د مسوولینو له خوا ونیول شو او په شهادت یې ورساوه.

د اوبو کموالي په سبب د ستونزو سره مخامخ کېږي. د ساو خوړ ختیځ خواته خیبر پښتونخوا سیمه پرته ده.

## د ساو شاوخوا مشهور ځایونه:

| | |
|---|---|
| ۱- سون دم | ۶- پلان ګن |
| ۲- الګوټ | ۷- دام |
| ۳- شمتهٔ لاړی | ۸- بابي جي |
| ۴- بټاسیر | ۹- ګرام کنډو |
| ۵- وټه لوټ | ۱۰- سګر سیر |

سون دم: چې د سین په غاړه هوار کښ دی، دلته اوس د شېرګل لپاره ښه پل جوړ شوی او شاوخوا نوي نوي کورونه جوړ شوي چې نوی کلی دی.

# ارنوي

ارنوي د افغانستان په سرحد کې دوکلام ته مخامخ يو شين او زرغون کلی دی چې د چترال پورې تړل شوی او د ارنوي تحصيل په نامه هم يادېږي. د ارنوي او سېدونکي ولسونه په خټه کوهستاني دي. ارنوي په څو نومونو ياده شوې لکه: ارنوي، ارندو، هرنو او اوس ارنوي په څو برخو وېشل شوې چې: مرکز ارنوي، سواردم، منګول دم دا په ارنوي کې خاص او غټو کليو نومونه دي چې ډېر نفوس لري او کوهستاني په کې ژوند کوي، چې نور واړه کلي هم لري چې نومونه يې په لاندې ډول دي:



۱- ماله کهل

۲- انتر جن
۳- لر کلی
۴- بر کلی
۵- اوتونګه ملک اباد
۶- توحید اباد — الحاج محمدامین
۷- بیوباټ
۸- سواردم بالا
۹- سواردم پاین، چې د منګول دم په نوم هم یادېږي.

د ارنوي طول (۴) کیلو متره او عرض یې دوه نیم کیلو متره دی، چې پنځه سوه کورونه به وي او د نفوس اندازه یې تقریباً پنځه زره په ارنوي کې نور قومونه هم اوسېږي، خو تر ټولو لوی قام دلته کوهستاني دی. د ارنوي ولسونه د علم او تعلیم سره ډېره مینه لري، د عرفان او د پوهې د حاصلولو لپاره ډېر کوښښونه کوي، د خپلو اولادونو د تربیت لپاره ډېره پاملرنه لري په خپله د ارنوي خلکو کې ډېر تعلیم یافته کسان شته.

په ارنوي کې لاندې ښوونځي د هلکانو او د نجونو لپاره فعال دي او د لایقو او مسلکي استادانو له خوا ورته د تدریس چارې مخکې وړل کېږي:

۱- د هلکانو لیسه
۲- د هلکانو لپاره دوه منځني ښوونځي
۳- د نجونو لپاره دوه منځني ښوونځي

۴- یو پبلک ښوونځی

په تعلیمي لحاظ په ارنوي کې یو اندازه ستونزې شته چې د پاکستان د چترال حکومت ورته لکه څنګه چې لازم ده توجه او پاملرنه نه ده شوې او په ښوونځیو کې د مسلکي استادانو د نشتوالي په سبب نوي ځوانان د تعلیمي او ښوونې او روزنې تربیتي ستونزو سره مخامخ دي.



د ارنوی اوسني مشران

ارنوي ا ښایسته او ښکلی کلی ډېر ښه جغرافیایي موقعیت لري، ددې خلکو اقتصادي حالات برابر نه دي او د دولتي چارواکو له خوا ددې خلکو د ژوند د نېکمرغۍ لپاره بېخي توجه نه ده شوې، حال دا چې ددې سرحدي ولسونو لپاره چې په سرحد کې اوسېږي ډېر کارونه سرته رسېدلي وای او د پرمختګ په برخه کې هېڅ لازمي کارونه نه دي شوي.

د ارنوي زیات ولسونه په مالدارۍ او زراعتي کارونو مصروف دي، خو اوس ځوانانو د علم او پوهې او تحصیل په اساس په دولتي ادارو کې ماموریت، مدیریت او د ښوونکو په توګه یې

دندې اخیستې، د مالدارۍ چارې ښځې له منځه تللې، یوازې د خپلو کورنیو د ستونزو د حل لپاره کورونو کې غوا ګانې، وزې او ګډې ساتي خو د پخوا په شان د مالدارۍ کار نه کوي.


شاعر ټیکه خان


لیکوال ډاکټر عارف

د زراعت په برخه کې ددې خلکو زراعتي او للمي ځمکې شته خو داسې کورنۍ او خلک شته چې د کور ځای او شخصي ځمکې نه لري. د ارنوي زراعتي ځمکې ښه فصلونه کوي او د زراعت چارې دلته لکه څنګه چې لازم ده، د دولتي چارواکو او د زراعت د ادارو له خوا ورته توجه نه کېږي. که چېرې د زراعت مسلکي کسان د ارنوي د ځمکو لرونکو سره نږدې اړیکې ولري او اصلاح شوي تخمونه او کیمیاوي کود ورته په وخت او زمان ورکړي، نو امکان شته چې د خپلو ځمکو څخه دغه خلک ښه حاصلات راټول کړي. د ارنوي په ځمکو کې غنم، جوار، لوبیا، شولې او مې کرل کېږي، ددې خلکو د ځمکو لپاره د اوبو د لګولو لپاره څه ستونزه نه شته د

ارنوي د خوړ اوبه چې په اوړي ژمي کې رواني وي د ارنوي ويالې ډکې وي. زه هيله لرم که چېرې ددې ولسونو زراعتي چارو ته په مسوولیت سره توجه وشي ډېر خوراکي توکي به لاسته راوړي.

په دغه ځمکو کې لاندې ډول ډول خوراکي بوټي کېږي.

۱- رومیان (باتینګې)

۲- تور بانجان

۳- ټېپر (شلغم)

۴- اوګه

۵- لېړو (بامیه)

۶- کدو، څو ډوله

۷- توري

۸- مټر

۹- ورخاړی

۱۰- ټېنډې

۱۱- ګازرې

په ارنوي کې لاندې مېوه جات کېږي:

۱- انګور، څو ډوله

۲- منې، څو ډوله

۳- انار، څو ډوله

۴- ناک، څو ډوله

۵- بهي

۶- الوچه، څو ډوله

۷- خوبانۍ

۸- غوزان

۹- لېمو

۱۰- نارنج

۱۱- مالټه

۱۲- توت، څو ډوله

۱۳- بګنه

۱۴- انځران، څو ډوله

۱۵- املوک

۱۶- لوکاټ

د ارنوي ولسونه ښه ډېر ځنګلونه لري او غرونه يې د څېړيو، خونانو او نښترو په ونو پټ دي، خو د ارنوي خلکو ته تر کومه اندازې چې ماته معلومات شته څه ګټه نه ور رسېږي دا منطقه يوه سرحدي منطقه ده د حکومت ورته دومره پاملرنه نه کوي او د ځنګلاتو عوايد خالص د څو تنو غلو جيبونو ته ورځي نور کليوال



برخه نه لري.

د ارنوي مشران ډېر ايماندار، صادق او نېک خويه باحوصله، زړه سواندي خلک دي د مشرانو نومونه يې په لاندې ډول دي:

۱- محمد ملک
۲- دراب شاه
۳- محمد غوث ملک
۴- غلام سيد
۵- محمد
۶- شېرعالم
۷- غوث ملک

٨- نايب شاه

٩- مولوي ولي محمد

١٠- محمد سيد



١١- احمد شاه

١٢-علي سيد

١٣- نادر

١٤-ماربيگ

١٥- كوسه سيد

١٢-ولي

١٧-عبد العليم

١٨-سيد عليم

۱۹-شیرملک
۲۰-عبدالله
۲۱-محب الله
۲۲-غلام حسن
۲۳-سربلندشاه
۲۴-حاجي گل سمبر
۲۵-عبدالحمید ممبر
۲۶-حاجي سیداکبر چرمین
۲۷-حاجي عبدل چرمین
۲۸-استاد ادینه شاه
۲۹-بهرام الدین
۳۰-میرزا مصلی ممبر
۳۱-رحمن ممبر
۳۲-ملاقیمت شاه
۳۳-ملادین شاه
۳۴-بهرام شاه
۳۵-محمدخمارشاه
۳۶-غلام ابراهیم
۳۷-ملاجان
۳۸-مولوي غفور
۳۹-عبدالقاضي

۴۰-سندان

۴۱-ادم خان

۴۲-عمرخان

۴۳-یعقوب

۴۴-محمدایوب

۴۵-محمدیوسف

۴۶-غلام سید

۴۷-ملک غوث

۴۸-ملک لعلي خان

۴۹-ملک شېرعالم

۵۰-شېرمحمد ناظم

۵۱-نادر

۵۲-احمدشاه

۵۳-ماربیګ

۵۴-حاجي سلطان

۵۵-حاجي سیدامین

۵۶-عبدالعزیز

۵۷-ګوډ قدوسپه ارنوي کې پینځه لوی جامع جوماتونه شته او دوه دیني مدرسې فعالې دي، چې ډېر شاګردان په دیني اسلامي کتابونو ویلو باندې لګیا دي، علم او پوهه زده کړې تدریسي چارې

ورته د ډېرو لايقو ديني اسلامي عالمانو له خوا په ښه شکل سره مخکې وړل کېږي.

## د ارنوي پخواني ديني عالمان:

۱- مولوي محمد حسين

۲- بهرام شاه

۳- قاضي ماربيګ

۴- مولوي غني

۵- مولوي قيمت شاه

۶- مولوي ميرمحمد شاه

۷- مولوي رحمت دين

۸- مولوي عبدالحکيم

ددغه څو عالمانو نومونه هم ضروري دي چې د ارنوي کلي کې ډېر علمي کارونه کړي دي:

۱- جندول استاد

۲- شريف الله ، د دروش

۳- محمد کلام

## په ارنوي کې اوسني ديني عالمان چې شهرت لري:

مولوي امام شاه

مولوي رحمت ولي

قاري حضرت جان

مولوي عبدالقاضي

مولوي سردار
مولوي اجدر
مولوي غازي
قاري عبدالله
قاري امين
قاري احمد فقير
قاري يوسف

نور هم ديني عالمان او قاريان شته چې په ديني مدرسو کې کوچنيانو او ځوانانو ته په ښوونه او روزنه بوخت دي، که نومونه يې زما له قلم څخه پاتې وي، بخښنه ترې غواړم، الله دې برياليي لري.

## په ارنوي خوړ کې ځينې مهم ځايونه:

۱- وزلی پینډی
۲- ګوشه دینتی
۳- دین باټ
۴- میرک باټ
۵- سیدی ګوډه
۶- ماشه دم
۷- ریشی شیګل
۸- میتی پلول
۹- سینانکول

۱۰- ګوجرين
۱۱- تراوړ
۱۲- پلان ږل
۱۳- مالام کنډه
۱۴- شينګاړه
۱۵- دو رام سير
۱۶- مومونی
۱۷- ويجاړی
۱۸- کمڅی

## د ارنوي مشهور غرونه:

۱- بوچک
۲- بخ بيګم ډېری
۳- ليلا ډېری
۴- بروجو
۵- ګلو
۶- شاپيلک
۷- سرپ منځی
۸- دوران
۹- تلا ډنډ (د اوبو)
۱۰- چتر بټ

## د ارنوي نور ځايونه:

۱- ارنوي
۲- زيارت شوی
۳- ګورو موټی
۴- بيوباټ
۵- ډل شوی
۶- شوار دم
۷- منګول دم
۸- لاربټ سير
۹- لوټه ګوړوک
۱۰- ماله لاربټ
۱۱- دره لاربټ
۱۲- مال کار
۱۳- لهوی ګل

## په ارنوي کې دغه قومونه هم شته:

۱- ملک داري
۲- سرپرداري
۳- سرپرداي
۴- سونيار داري
۵- زيانه ګونه

## سون کیڅی:

دا د هغه نشریې نوم دی چې په ارنوي کې د مجلې په شکل په ښکلې شکل سره د چاپ په سینګار د ادب مینه والو لپاره وړاندې کېږي، دغه د ښه محتوا او د هغه مضامینو لرونکې مجله لومړۍ شماره د (۲۰۰۸م) کال د جون په میاشت کې له چاپه راووته او د کوهستان ځوانانو او د قلم او د ادب مینه والو ډېره خوښه شوه په ډېر درنښت سره د چاپ او د نشر استقبال وشو.



ددې مجلې نګران محترم ابوالفضل او ایډیټر بینچ، ابوالفضل، حیات محمد خان دی، ددې مجلې عامله مجلس، حم حیدر، حیات محمد خان، هدایت الله، عبدالوهاب، ګل فقیر، انعام الرحمن،

فضل اکبر او د مشاوریت مجلس، ابوالفضل، فضل الرحمن، محمدعلي شاه، ابوحفصه او مرستیالان یې: مولانا عبدالقاضي، فضل حنان، حاجي سلطان محمد، اعجاز احمد، حمیدالله،



حیدرعلي شاه، سعیدالله. او قلمي مرستیالان یې: حاجي ولي خان، سردار ټیکه خان. ترتیب او تدوین یې: حم حیدر، فضل اکبر دي.

دا د ارنوي او د افغانستان په ګواریانو کې لومړۍ ګڼه خواره مضامینو لرونکې مجله ده چې د لومړي ځل لپاره په ګواري ژبه باندې چاپ او نشرېږي، ددې مجلې د چاپ له امله ټولو ګواریانو ته په ډېره مینه مبارکي ورکوم او هغه درنو ورونو چې ددې مجلې د چاپ لپاره تکل او همت کړی دی ورته افرین وایم او د ژوند په ټولو برخو کې ورته بریالیتوبونه غواړم. ددې مجلې په لومړۍ ګڼه کې

ټول (۲۳) عنوانه مضامین لیکل شوي او خواره شوي دي، چې هر مضمون یې واقعاً ډېر په ادب او ژور او په ادبي او ژورنالیستي توګه لیکل شوی او ډېر لوړ اهداف او مقصدونه لري، چې ځینې







عنوانونه یې دادي:

۱- ګواری ژبې لپاره حروف: لیکونکی حم حیدر

۲- د چا ځنې چې علم زده کړې: فضاء

۳- سون کیځی، ابوالفضل

۴- ننني دوره، ګل فقیر

۵- د وخت قدر او ارزښت، انعام الرحمن

۶- مه خاندی

۷- امید، حیات محمد (حسرت)

۸- د تعلیم اهمیت او زموږ معاشره، حمیدالله (حمید)

۹- سادګي، ابو حفصه

۱۰- قناعت، مولانا عبدالقاضي

۱۱- د مور مقام، هدایت الله (راشد)

۱۲- د ابلیس کړوسی

په دغه ګڼه مجله کې ډېر خواږه د پند ادبي شعرونه هم شته چې په لوړه روحیه او په ښه انساني جذبه لیکل شوي، انتقادي، ادبي، سیاسي او اجتماعي رنګ او خوند لري.



دغه مجله ټول (۴۰) مخونه لري او ښکلې رنګه پښتې لري، چې د ارنوي د ادیبانو فرهنګیانو ځوانانو په ډېره مینه چاپ او نشر کړې چې د ارنوي د ځوانانو دغه ادبي او فرهنګي هڅه د ټولو ولسونو لپاره د ویاړ خبره ده.

یادونه: یو هم په ارنوي کې د ځوانانو په کتار کې ښاغلی ډاکتر عارف دی چې ډېر لوړ تحصیلات لري او د ژبو او ادبیاتو په برخه کې ښه ژور معلومات لري، چې اوسمهال په اسلام اباد کې په علمي او تحقیقاتي کارونو بوخت دی.

د نشه ګام ولسونو ته ډالۍ!

# نشه ګام

دا چې تل سمسوره ښکاري نشه ګام دی
ددې کلي او سېدونکو ته سلام دی
په نڅا ورته رادرومي د «درين[1]» «ايلګل[2]» خوړونه
زينتي ونو کې پټ لکه «ماجام[3]» دی
د «راسا[4]» سين يې په مخه کې بهېږي
مخامخ ورته زرغون کلی «بارګام[5]» دی
«شېرولي[6]» او «ګلولي[7]» بچيان دي دلته
چې په ژبو د ولس کې د غيرت او تورې نام دی
ددې کلي شمله ور مشران ډېر دي
«نواب خان[8]» او «محمدشاه[9]» «عبدالمتين[10]» ته احترام دی
سلامي ورته ولاړ دي اوچت غرونه
کوهستان کې ددې کلي لوړ مقام دی
«سوله دوست[11]» غونډې ځوانان لري په غېږ کې
ساتين وايي دا مې کور دی دا مې لام دی

۱- درين: د نشه ګام شمال ته خوړ
۲- ايلګل: د نشه ګام جنوب ته خوړ
۳- ماجام: په ختيځ نورستان کې مشهور اوچت او سمسور غر دی.

۴- راسا: د کونړ د سین پخوانی نوم.
۵- بارګام: د نشه ګام جنوب ته کلی دی.
۶- شېرولي: د نشه ګام د کلي یو مشهور شخصیت دی.
۷- ګلولي: د نشه ګام د کلي یو مشهور شخصیت دی.
۸- محمدنواب ملک: د نشه ګام د کلي یو مشهور شخصیت دی، چې د ټول قام د مشرۍ ویاړ یې په برخه و.
۹- محمدشاه: د نشه ګام د کلي یو مشهور شخصیت دی.
۱۰- عبدالمتین وکیل صاحب: د نشه ګام د کلي یو مشهور شخصیت دی، چې په شاهي دوره کې یې د پارلمان غړیتوب درلود.
۱۱- سوله دوست: ډګروال امان الله خان سوله دوست یو منلی او لایق افسر د وطن د مینې پتنګ و.

# نشه ګام

(Nasha Gam)

نشه ګام د ناړۍ ولسوالۍ جنوب خواته پروت دی، د ناړۍ ولسوالۍ او د اسمار ولسوالۍ په منځ کې موقعیت لري، چې یو شین او سمسور ودان کلی دی او اوس په نشه ګام کې د غازي اباد



ولسوالۍ ته انتقال شوې ده.

د نشه ګام جنوب خواته د بارګام کلی دی چې د اسمار ولسوالۍ پورې اړه لري او شمال خواته یې د ناړۍ ولسوالۍ او ختیځ خواته یې (خیبرپښتونخوا) او لویدیځ خواته یې نورستان پروت دی. نشه

ګام يو سمسور او زرغون محل دی، د نشه ګام کلي ته (ايلګل) او (درين) دواړو خوړونو چې د هسکو او دنګو غرونو او سردرو ځخه راوتلي ډېره طبعي ښکلا ورکړې ده، شمال خواته خوړ د اشپي کامديش، سيدمشال او ممديش ځخه راوتلي او په دې خوړ کې ډېر اباد کلي او کورونه شته او جنوب خواته خوړ د پارون، ايله سوم، وايګل ځخه راوتلي


د نشه ... الحاج ...

چې دا خوړ هم د سمسور او رنګينه سردرو ځخه راوتلی او ډېر اباد کلي او کورونه په کې شته د دواړو خوړونو د رڼو او زياتو اوبو له امله نشه ګام هر کله سمسور او ښکلی ښکاري. نشه ګام ډېره زياته زراعتي ځمکې لري چې ددې محل ولسونو ته د اوبو ځه ستونزې نه شته او په دوبي او ژمي کې ډکې ويالې اوبه رواني وي چې دواړه خوړونه د درين خوړ او دايلګل خوړ په نومونو سره يادېږي چې دواړه خوړونه د غرب له خوا ختيځ لور ته رواني دي او په نشه ګام کې د راسا د سين سره يوځای کېږي.

په نشه ګام کې ډېر زيات ولسونه او قومونه ژوند کوي، نشه ګام د ګوارو (کوهستانيو) لرغونی او اباد کلی دی، چې لاندې قومونه په کې ژوند کوي.

۱ - لغمان داري

۲- متلن داري

۳- بران داري

د نشه ګام ولسونه په افغاني غرور سمبال زړور، ايماندار او بادیانت او وطنپرست خلک دي، د اسلام په سپېڅلي دين مين ولسونه دي او په دغه لاره کې تل د سرونو سرښندنو ته چمتو دي.

د مېلمنو سره مينه کول ډوډۍ ورکول ددې ولسونو په سيمه او



منطقه کې څرګند نوم دی. توره، مېړانه او زړورتوب ددې ولسونو د جهاد په کلونو کې ټولو قومونو ته ثابت او څرګند شوی. د اسلام او د وطن په مينه هر ډول مالي او ځاني قرباني ورکول ددې ولسونو ښکاره ثبوت دی. په نشه ګام کې د کليوالي او ولسي کارونو د ښه تنظيم لپاره په خپلو کې څلور کندي لري او دا کندي د ډېر پخوا

لرغونو زمانو راهیسې په ګواریانو کوهستانو کې ولسي رواج او منل شوی دود دستور دی چې خپل هر ډول ولسي کارونه د کندو پواسطه ترسره کوي، چې هر کندی ځان ته مشر لري چې د ولسونو په خوښه او رضایت سره انتخابیږي، د ټولو کندیو مشران د اړتیا یا ضرورت په وخت کې چې قام یا ولس ته څه ستونزه پیدا شي راټولیږي او ټول په یوځای د ستونزو د حل لپاره پریکړه یا فیصله کوي. کومه پریکړه چې د کندو د مشرانو له خوا ترسره شي هغه پریکړه او فیصله قام او ولس ته د منلو وړ وي او هیڅوک حق نه لري چې د پریکړې یا فیصلې خلاف عمل ترسره کړي.


قومی مشر ملک رحمت ولی


ډګر وال امان الله

## د نشه ګام د کلي د کندو مشران دادي:

۱- وکیل عبدالمتین
۲- ملک ګلاب شاه
۳- ملک رحمت ولي
۴- ملک حاجي عزیزمحمد

پورته ذکر شوي د نشه ګام د ولسونو منل شوي مشران هر يو د قام



او ولسونو په خاطر داسې کارنامې او خدمتونه ترسره کړي دي چې ولسونه يې هېرولی نه شي.

مخکې مو هم ووېل چې نشه ګام د کونړونو په ولايت کې يو مشهور او ښکاره ځای دی. په دې اباد کلي کې ډېر تاريخي خدمتګار او اتل مشران تېر شوي چې دا نومونه يې د ولسونو په زړونو کې ځای لري:

۱- ملک محمد نواب خان، نوموړي د ټول قام د مشرتوب وياړ هم درلود.

۲- ملک ګلولی

۳- ملک شېرولي

۴- ملک محمد شاه
۵- ملک سید احمد شاه
۶- سردار علي خان
۷- ملک فقیرشاه
۸- فتح خان
۹- وکیل صاحب عبد المتین خان
۱۰- ملک ګلاب شاه
۱۱- مولوي صاحب نورمحمد خان
۱۲- ملک صبدرخان چې د خپل وخت یو مشهور میرزا، لیکوال او شاعر په توګه په ټول کونړ او صوبه سرحد کې شهرت درلود، خو متاسفانه د ده د لیکنو او اشعارو نمونه زما لاسته نه ده راغلې.
۱۱- ملک سیدولي
۱۲- ملک حضرت ولي
۱۳- ملک خیرالله
۱۴- ملک نور ولي
۱۵- ملک عبدالولي
۱۶- ملک میرمحمد شاه
۱۷- ملک بسم الله
۱۸- ملک مقرب شاه
۱۹- ملک حضرت شاه
۲۰- ملک محب الله

دا هغه نامتو او یاد مشران وو چې د خپل وطن او خپلو ولسونو لپاره ډېر ستر خدمتونه ترسره کړي او هر یو یې د ځان څخه په خپلو ولسونو باندې زیاته مهرباني لرله د ذکر شویو مشرانو د پرېکړو او فیصلو څخه به ولسونو پوره ملاتړ کاوه او د ټول کوهستان قام او نورو په زړه کې یې ځای درلود او یوازې نه دا چې د نشه ګام د مشرانو په نامه، بلکې د سیمې او منطقې د ولسونو مشرانو حیثیت او اعتبار درلود او ددغه یاد شویو مشرانو ډېر درناوی کېده.

د دوکلام- ارنوي- بریکوټ، نارې، ساو او نشه ګام مشرانو پوره پوره ټینګ قومي او اسلامي پیوستون درلود او تل به د اسلام د مبین دین په رڼا کې د خیر کارونو او خصوصاً د قومي او ولسي ستونزو او شخړو د حل لپاره د جرګو کارونه ترسره کول، چې نومونه یې د خلکو په زړه کې دي او د دعا لاسونه ورته د لوی خدای(ج) درګاه ته ولسونه پورته کوي او په نېکو نومونو یادېږي.

## د نشه ګام اوسني مشران:

۱- ملک رحمت ولي

۲- حاجي صالح محمد

۳- حاجي محمدزمان

۴- حاجي نعمت غني

۵- حاجي محمدقادر، مشهور په (لالا قادر) نوموړی یو زړور قوماندان په توګه شهرت لري او د سیمې او منطقې ټول ولسونه او

قومونه ورسره مينه لري او بلديت لري او د ولسونو او ځوانانو د پوره درناوي او باور وړ شخصيت دی.

۶- مدير صاحب حضرت علي، مشهور په مامور صاحب.

۷- نصرالله

۸- حاجي ګل زمان

۹- انجنير شېرعالم

۱۰- ډاکتر عزيزالله

۱۱- قاضي عبدالصمد خان

۱۲- حاجي محمد الله خان

۱۳- مدير غازي خان

۱۴- مامور صاحب عبدالکريم خان

۱۵- ډاکتر سخي (د نشه ګام د عالي لېسې مدير)

۱۶- سيف الله خان

۱۷- قاري عبدالحی

۱۸- قاري سجاد

۱۹- حاجي عزيز محمد

۲۰- حاجي دوست محمد

۲۱- انجنير محمد رحيم

۲۲- استاد سميع الله

د نشه ګام ولسونه د ښوونې او روزنې په برخه کې پوره وړاندې دي، ددې ولسونو هره کورنۍ کوښښ کوي چې خپلو بچيانو ته

پوره پوره ديني او عصري علوم زده کړې همدا سبب دي چې په نشه ګام کې تعليم يافته کسانو شمېر زيات دی او ډېر ملي کدرونه لري چې په بېلابېلو علمي څانګو کې لوړې زده کړې ترسره کړي چې د ځينو کدرونو نومونه يې دا دي:

۱- مدير صاحب حضرت علي، چې همدا اوس د کونړونو ولايت د پوهنې رياست د مرستيال په توګه دنده لري.

۲- انجنر شېرعلم، دا يو پېژندل شوی انجنير او جهادي شخصيت دی او د وطن لپاره يې ډېر خدمتونه ترسره کړي دي.

۳- انجنير عبدالله، چې اوسمهال د کونړونو د ولايت د برېښنا رياست رئيس په توګه دنده اجرا کوي.

۴- مدير غازي خان، د غازي اباد ولسوالۍ رسمي د پوهنې چارو مسوول دی.

۵- مرحوم ډګروال امان الله خان، چې د کورنيو چارو په وزارت کې د مطبوعاتو د رئيس په توګه دنده اجرا کوله.

۶- استاد عزيزالله، په سيمه او منطقه کې يو پېژندل شوی لايق باتجربه استاد په توګه نوم لري.

۷- عبدالقيوم، د هېواد يو لايق او باتجربه ژورناليست په توګه د انيس په ورځپانه کې دنده لري.

۸- عاشق الله

۹- نيازمحمد

۱۰- رحمت قيوم

۱۱- محمد قیوم
۱۲- پیرمحمد
۱۳- ډاکتر سید نبي
۱۴- ګل محمد شاه
۱۵- خان زمان
۱۲- باچا حاجي
۱۷- ډاکتر سخي (د نشه ګام د عالي لېسې مدیر)
۱۸- عتیق الله
۱۹- اخترخان
۲۰- شېر ډاکتر
۲۱- قدوس خان
۲۲- مجید خان
۲۳- حاجي ګلزمان
۲۴- سمندر
۲۵- تسل
۲۲- تیمور
۲۷- معلم نېک محمد
۲۸- نیاز محمد شاعر

د نشه ګام ولسونه د اسلام د مبین دین د لارې زړور مجاهدین ګڼل کېږي او د جهاد په کلونو کې د وطن لپاره او د روسانو د کمونیستي پوځونو د یرغلګرو په ضد د جهاد په تودو مورچلونو

کې په اتلولۍ سره شپې او ورځې تېرې کړې او په دې لاره کې يې د



هر ډول مالي او ځاني قربانۍ څخه دريغ نه دی کړی. مشهور او جنګېدلي مجاهدين يې په لاندې ډول دي:

۱- حاجي محمدصالح

۲- حاجي محمدزمان قوماندان

۳- حاجي عبدالصمد خان، چې اوس د کونړ د دارالمعلمين رئيس دی.

۴- حاجي عبدالقادر (قادر لالا)

۵- انجنير شېرعالم

۶- امرصاحب جان محمد

۷- مدير نيازمحمد

۸- حاجي محمدالله
۹- حاجي نورالرحمن
۱۰- حاجي دوست محمد
۱۱- حاجي محمد سيد
۱۲- عبدالكريم خان
۱۳- مدير غازي خان
۱۴- معلم سليم خان
۱۵- حاجي جمداعلي خان
۱۶- سمندر (قوماندان)
۱۷- نصرالله
۱۸- خان زمان
۱۹- عاشق الله
۲۰- حاجي محمد عزيز
۲۱- حاجي نعمت غني
۲۲- حاجي دوست مجمد
۲۳- مولوي نجيب الله
۲۴- فضل محمد
۲۵- شهيد مولوي نورمحمد خان، چې د جهاد په کلونو کې د قوماندان او د امر په توګه دندې ترسره کړې وې.
۲۶- قاري سجاد
۲۷- غلام حسين

۲۸- محمدحسین
۲۹- قادر افسر
۳۰- شهید محمدزمین خان
۳۱- شهید عبدالعزیز خان

د نشه ګام مجاهد او ایماندار ولسونو چې کله د خپل هېواد د پاکې غېږې څخه هجرت وکړ، د پاکستان د صوبه سرحد په بروال، جندول کیمپ، تیمرګره او چترال کې د مهاجرت کلونه او وختونه تېر کړي او د هېواد دننه د روسي یرغلګرو او د هغو د ګوډاګي رژیم په ضد په مختلفو محلاتو کې په زړورتوب سره په مورچلونو کې جنګېدلي او د مېړنتوب او قربانۍ څخه یې ملي ویاړونه د تاریخ په پاڼو کې ثبت شوي دي. د نشه ګام ولسونه د اعتماد او باور وړ خلک دي او د هر ډول ناوړه او ورانکارو عملونو څخه کرکه کوي، سپین نیتي سوله خوښوونکي او د امن طرفدار خلک دي.

## په نشه ګام کې مدرسې او ښوونځي:

مخکې مو وویل چې د نشه ګام ولسونه د معارف او عرفان سره



ډېره مینه لري او په خپلو کې ډېر ملي رسېدلي کدرونه لري، د خپلو ولسونو او خپلو بچیانو د پوهې لپاره ډېر زیات کوښښونه کوي، دا خلک په پوره پوهې سره پوهېدلي چې علم او عرفان په ټولنه کې په ژوند کې ډېر ارزښتونه لري، نو له دې کبله د مدرسو او د ښوونځیو کارونو ته په مینه سره متوجه دي او خپلو ماشومانو او تنکیو ځوانانو لپاره د تعلیم او زده کړې په برخه کې پوره پوره پاملرنه کوي. همدا اوس چې په زرګونو ځوانان او تنکي هلکان په زده کړه بوخت دي او د لايقو ښوونکو له خوا ورته د تدریس چارې مخکې وړل کېږي، ددې لېسې برحال مدیر ډاکتر سخي دی چې د معارف او ښوونځیو په کارونو او چارو کې پوره تجربه لري او تدریسي چارې د شاګردانو لپاره په ښه میتود سره وړاندې ځي.

په نشه ګام کې یوه د نجونو لیسه ده، چې په سلګونو نجونې پ
دې لیسه کې په زده کړه بوختې دي،



تدریسي چارې هم د نشه ګام د تعلیم یافته نجونو له خوا مخکې وړل کیږي، خو تراوسه پورې د نجونو د لیسې د ادارې او د ښوونځي لپاره ثابت ځای او ودانۍ نه ده جوړه شوې، انشا الله په نږدې وخت کې به دا ستونزه حل شي او د نشه ګام د کلي شاوخوا ته نږدې به ورته نوې ودانۍ جوړه شي. د نجونو د لیسې د مدیریت ویاړ محترمې (وږمه) ته په برخه دی، دا څو کاله کیږي چې د لیسې مدیریت او اداره او تدریسي چارې چلوي، دده په لارښوونه ټولې چارې تنظیمیږي چې د نجونو د لیسې ټول ښووني د لیسې د مدیریت څخه خوښي کوي او په مینه تدریسي چارې نجونو ته په مخ وړل کیږي. پټه دې نه وي چې اوس (۱۳۸۹ل) کال پورې د لیسې تدریسي چارې او ادارې لپاره په یو شخصي کور کې چې په کرایه اخیستل شوی د ښووني او روزنې تدریسي کارونه روان دي.

## په نشه ګام کې دیني مدرسې:

په نشه ګام کې دوه دیني اسلامي مدرسې شته چې یوه د هلکانو دیني مدرسه چې پرته له دیني درسونو یوه څانګه د قران شریف د حفظ ده چې په لسګونو شاګردان په کې شامل دي. ډېرو شاګردانو

ددې مدرسې د فراغت سندونه ترلاسه کړي او ډېرو هلکانو د قران د حفظ سندونه هم ترلاسه کړي. شهید مولانا نورمحمد جان په دې برخه کې د ویاړ ډک کارونه سرته رسولي دي.

یوه هم د نجونو مدرسه ده چې د نشه ګام نجونې په کې دیني اسلامي کتبور کتابونه یادوي، د قران پاک ترجمه یادوي او د قران شریف د حفظ ځانګه هم د نشه ګام د ولسونو لپاره د ویاړ او یادولو خبره ده چې ددې کلي (۸۰) نجونو د قران شریف د حفظ کولو سندونه ترلاسه کړي او د قران شریف حافظانې دي، په دې مدرسه کې نجونو ته د لیک لوست چارې هم په ښه توګه تدریسېږي.

## شهید مولوي نورمحمد جان:

مولوي صاحب نورمحمد جان د غلام محمود زوی د ملا ولي لمسی و. نوموړي خپل ابتدایي زده کړې د هېواد دننه په کندز کې او لوړې دیني زده کړې یې د پاکستان صوبه سرحد مردان کې سرته رسولې وې.

مولوي نورمحمد جان یو نامتو پېژندلی شوی خوږ ژبې دیني عالم په توګه په کونړ ولایت په سرحدي سیمو او د صوبه سرحد په منطقه کې د یو ښه لایق دیني عالم ګڼل شوی و. د قران شریف په ترجمه او تفسیر ډېر ښه پوهېده او د پراخې مطالعې خاوند و.

د اسلامي احکاماتو سرسخت پلوي و او په اسلامي علومو کې ډېر ښه پوهېده، یو اورېدنکی، منونکی او مهربان عالم و، ده به تل

خپلو خپلوانو دوستانو او کليوالو او هېوادوالو ته اسلامي ديني د پند او خوند خبرې کولې، ډېر زړور، پرهېزګار، متقي، صالح او صابر انسان و، له نورو انسانانو سره يې مينه درلوده او د هر چا سره به په نرمه ژبه غږېده، د هغه ټولې خبرې او کيسې او مرکې د پند او خوند څخه ډکې وې، هغه واقعاً يو منل شوي استاد په توګه خلکو پېژندلی و، څکه هغه چې به کله له چا سره خبرې او يا ملاقات کول د هغه خبرو به اورېدونکو حافظې ته سپارلې.

مولوي صاحب ډېر کلونه د نشه ګام د مرکزي جامع جومات مشر امام پاتې شوی و او د ولسونو په زړه کې هغه ځای درلود. کوم چا چې د هغه تقرير يا ملاقاتونه يا مرکې له نږدې څخه اورېدلې وې، هغه ټول د هغو په خوږ اواز او د هغه د زړورتوب شاهدان دي.

مولوي صاحب نورمحمد جان په سيمه او منطقه کې د شهرت يوه وجه دا وه چې هغه د مولانا ګوهرالرحمن صاحب، مولانا طاهر صاحب، مولانا جمهر صاحب، مولوي صاحب ددغه ذکر شويو عالمانو ډېر وخت شاګرد پاتې شوی و او د هغوی نږدې ملګری و او له هغو سره يې نږدې اړيکې درلودې.

مولوي نورمحمد جان د مشورو لپاره به د نشه ګام د شاوخوا سيمو کلو او باندو څخه ديني ملايان او مشران د نوموړي ملاقات لپاره راتلل او د زياتو مسلو په هکله به مراجعينو ته پوره معلومات ورکول، د ميراث او حقوقو په مسايلو باندې ډېر ښه پوهېده.

مولوي نورمحمد جان د جهاد په کلونو کې د روسي يرغلګرو په ضد

مبارزه کې ډېر په زړورتوب سره ډېر لوړ کارونه سرسته رسولي، که له يوې خوا د جهاد لپاره يې ولسونه او قومونه پاڅولي، نو له بلې خوا يې د جهاد فضيلتونه او اجرونه او ثوابونه ولسونو او قومونو ته په تقريرونو کې بيان کړي او ولسونه يې د جهاد لپاره چمتو کړي او د مجاهدينو مورچلونو ته ډلې ډلې مجاهدين بللي، له بلې خوا يې په خپله په زړورتوب د يو افغان مجاهد په نوم په مورچلونو کې د روسي يرغلګرو سره مخامخ جنګېدلی. مولوي صاحب نورمحمد جان ته دا وياړ هم په برخه شوی چې د جهاد په وخت کې د بارګام، جلاله، کاخه ګل د جهاد عمومي امر په حيث پاتې شوی او څو څو ځل د روسانو سره په مخامخ جګړو کې د ازمون د ميدان څخه بريالی او سرلوړی راوتلی دی. په مجاهدينو کې زيات د باور شخصيت و، په سيمه او منطقه کې ډېر شاګردان لري، چې د هغه په لاره روان دي او ډېر ځوانان يې په اسلامي روحيه روزلي.

مولوي صاحب نورمحمد جان پر (۱۳۸۴ل) کال د مبارکې روژې پر (۱۳) شپه په خپل کور کې د وطن او اسلام د دښمنانو له خوا په شهادت ورسېد او د تل لپاره يې ددې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د نشه ګام په هديره کې خاورو ته سپارل شوی دی.

## د نشه ګام ځوانان:

نشه ګام ډېر وېښ او مېړني ځوانان لري چې اکثريت يې باسواده کسان دي چې په افغاني لوړه روحيه د وطن او د وطن د ولسونو سره

په مينه رالوی شوي په هېواد کې د سولې او امن طرفداران او د هر




ډول ځانځانۍ، ورانکاریو په ضد کار او فعالیت کوي او د هېواد د
ابادۍ او ولسونو د نیکمرغۍ هیله لري.

په نشه ګام کې د ځوانانو لپاره د ځوانانو اصلاحي ټولنه پر (۱۳۸۸ل) کال جوړه شوې ده، چې ددې ولسونو ځوانان په کې شموليت لري او په هېواد کې د امن او سولې لپاره او د بيارغونې



لپاره د اسلام د مبين دين په رڼا کې کار کوي. د نشه ګام ځوانان په اسلامي روحيه د تعليم مسلې ته پوره توجه لري او پرته د ديني عالمانو او حافظانو څخه په عصري علومو کې ډاکتران، انجنيران، استادان او په نورو مسلکونو کې کدرونه لري.

د نشه ګام ولسونه د سپورت او لوبو سره ډېره مينه لري، چې د سپورت واليبال، کرکېټ لوبو کې د کونړ په ولايت او منطقه کې د پوره شهرت خاوندان دي او د خپل محل لپاره يې په لوبو کې ډېر وياړونه او کپونه ګټلي دي.

د والیبال او کرکټ د لوبو لپاره همېشه بیداره ښه ټیمونه لري چې د والیبال د سمسور ټیم یو ځلانده ټیم ګڼل کېږي. محمد حسین یې د ټیم مشري کوي.

یادونه: پټه دې نه وي چې ملک شېرولي د نشه ګام یو تاریخي، دیندار، ایماندار او زړور مشر تېر شوی د هغه د مېړانې کیسې اوس هم پخوانیو خلکو ته څرګندې دي چې د قام د دښمنانو له خوا د اوسنۍ ولسوالۍ خواته په موره کې په شهادت رسېدلی دی او نوم یې تراوسه ژوندی دی، نوموړی په ولسونو کې یاد د مورچلونو باتور شخصیت ګڼل کېږي.

ملک ګلولي د نشه ګام یو پیاوړی، غیرتي او سرلښکر انسان تېر شوی د هغه د نوم سره د منطقې ټول قومونه پوره بلدیت لري، یو سرشار ولسي شخصیت ګڼل کېده. د نشه ګام په جامع جومات منځ کې د ماسخوتن په لمانځه کې د وطن د دښمنانو له خوا شهید شوی دی.

دا دواړه ذکر شوي شهیدان په خټه کوهستاني او د نشه ګام دکلي اوسېدونکي و، دواړو د غیرت او د ننګونو کیسې خپلو ولسونو ته پریښې دي او هېڅ چا ته یې خپلې سترګې نه دي ټیټې کړي دا دومره زړور او توریالي انسانان وو چې مخالفین به یې په مخه نه شو ودرېدلی خپل قام او خپل ولس یې په یووالي ساتلی و او د ځمکو جایدادونو ساتنه یې په مېړانه کوله. دواړو شهیدانو مشرانو د اسمار نه تر بریکوټ پورې د لښکریانو ډله ټپله لرله او تل به د خپلو

ملګرو او دوستانو سره ټینګې اړیکي ساتل او دواړه د مورچلونو میړونه بلل کېدل او دواړه به په منطقه کې د شپې او ورځې لکه بازان او زمریان د خپلو ملګرو سره ګرځېدل، په جرګو او مرکو کې یې ونډه لرله او د بېوزلو د حقوقو یې ساتنه کوله او د زورواکو او بې لارو ځان خوښو سره یې مخامخ مقابله کوله. دواړو ته د لوی خدای(ج) له درګاه څخه جنتونه غواړو.

د ناړې په کلي کې د قومي حیثیت د لوړ ساتلو او پوره پیوستون لپاره او په منطقه کې لارو کې د پوره امن او امنیت لپاره یوه درنه غونډه وشوه، په دې غونډه کې چې د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې په مرکزي دفتر ناړه کې وشوه، د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې مشر او ځو تنو د ټولنې مشرانو او د نشه ګام ځوانانو هر یو:

خان سردار د حاجي عبدالرحمن زوی

محمد صادق د محمد اکبر زوی

رفیع الله د دین محمد زوی

محمد ریاض د حاجي متین زوی

خانزادګل د حاجي دوست محمد خان زوی

خیرمحمد د ګل محمدزوی

فخرالله د حاجي جلات خان زوی

عمر حیات د حاجي عبدالمتین زوی

د (۱۳۸۸ل) کال د کب میاشتې پر (۲۷) نېټه غونډه وشوه، په سر کې محمد نواز حقیقت سانین په اوسنیو شرایطو کې د وطن د

حالاتو او د افغانستان د دولت په هکله په روانو حالاتو دردونکې خبرې وکړې او د ولسونو او قومونو د اوسنيو غوښتنو په برخه کې رڼا واچوله او ويې ويل اوس چې زموږ قومونه د وسوسو او غمونو ترخې شپې تېروي د وطن په غېږه کې د جنګ لمبې ورځ په ورځ زياتېږي، ملي شتمني مو سوزي، ولسونه سوزېږي، ځوانانو لپاره په کار ده چې د وطن په مينه د ولسونو په مينه په اسلامي او افغاني جذبه د وطن ساتنې ته د ولسونو د نېکمرغه ژوند او امن او امنيت لپاره هوښيار او چمتو واوسي او د هر ډول غرضي اهدافو په ضد وجنګېږي. ځوانان بايد نورو ولسونو ته د وطن د پت ساتلو لپاره لارښوونه وکړي او د لارو او سرکونو د امن په اړه خپله ديني او افغاني فريضه په ښه طريقه ادا کړي. د وطن ولسونه د ځوانانو کار او فعاليت ته اړتيا لري، تر څو د ځوانانو په هوښيارانه عمل د وطن دښمنانو تور ارمانونه خاورې ايرې شي. دغه غونډه دوه ساعته دوام وکړ او د ګډ تصميم او پرېکړې وروسته د دعا کولو سره غونډه پايته ورسېده.

## مرحوم وکیل صاحب عبدالمتین خان:

وکیل صاحب د نشه ګام په یوې درنې کورنۍ کې پر (۱۳۱۴ل) کال نړۍ ته سترګې غړولي دي، په



کوچنیتوب کې یې لیک لوست په خپل جومات کې وکړ، دده پلار او نورو مشرانو د نوموړي زده کړو ته ډېره پاملرنه کوله، په خپله عبدالمتین په کوچنیتوب کې زیرک هوښیار زلمی ښکارېده او د مشرانو توجه یې ځانته اړولې وه، نوموړی په تنکۍ ځوانۍ کې د وخت د مشهور میرزا طوطي خان سره شاګرد شو او له هغه یې ګلستان، بوستان او نور د وخت دیني کتابونه وویل. نورې زده کړې یې د لغمان په کڅ کې د لایقو استادانو له خوا ترسره کړې په خصوصي توګه یې خپلې زده کړې ترسره کړې د ښه قلم خاوند شو. په پښتو، دري، عربي، کوهستانو ژبو ښه پوهېده په دیني مسایلو کې یې ډېره ژوره مطالعه لرله، د نېکو اخلاقو په لرلو سره په ولسونو کې ډېر محبوبیت درلود، مېلمه دوست او وطنپرست شخصیت و، پلار یې فتح خان نومېده چې په خپل وخت کې د قام مشر پاتې شوی و.

وکیل عبدالمتین د خپل لیاقت او پوهې په اساس د (۱۳۳۷ل) کال له پیله تر (۱۳۳۹ل) کال تر پایه پورې د وخت د شاهي رژیم د

پارلمان غړیتوب ویاړ درلود، چې دا د هېواد د پارلمان لسمه دوره وه په خپل وخت سره یې د مظلومانو د حق او حقوقو څخه په کلکه ننګه کوله د هېواد په پارلمان کې د شرقي زون یو پېژندل شوي وکیل په توګه پوره د شهرت خاوند ګڼل کېده او د وطن د ابادۍ او د وطن د بچیانو د تعلیم په برخه کې ډېره مینه درلوده او په دې اړه یې ډېر کارونه ترسره کړي دي. نوموړی د ننګرهار د ملک شېرولي چې د خپل وخت مشهور ولسي شخصیت ګڼل کېده د تره زوی او د بل مشهور قومي شخصیت ملک ګل ولي د خور زوی و. د کورنۍ مشران یې هم قومي ولسي مشران تېر شوي، چې تراوسه په منطقه کې په لوړ نوم په درناوي یادېږي.

وکیل عبدالمتین خان پر (۱۳۵۸ل) کال د روس پلوه رژیم او د شوروي اتحاد د یرغلګرو پوځونو په ضد د جهاد لپاره د خپلو ولسونو سره پاکستان ته مهاجر شو او په ډېره مېړانه او ایمانداری سره یې خپلو ولسونو سره یوځای د وطن د ازادۍ او د روس پلوه رژیم په ضد په مېړانه مبارزه وکړه او د خپلواکۍ او د کمونیستي لښکرو په ضد په ډېره مینه مبارزه وکړه، نوموړي ته د ښه خدمتونو د کولو په اساس د وخت د شاهي رژیم له خوا په پارلماني چارو کې د خدمت طلایي مډال ورکړ شوی و او د ملي شورا له خوا ورته افتخاري ستاینلیکونه او تقدیر نامې ورکړ شوې وې.

د هجرت او د جهاد په کلونو کې د افغان ولسونو د يووالي او پوره پيوستون لپاره او د مجاهدينو د بري لپاره ډېر لوړ کارونه کړي دي.

وکيل عبدالمتين د سيمې او د منطقې د ولسونو په منځ کې د پيوستون او د خير غوښتونکي سمبول په توګه لوړ مقام درلود. يو علمي، هوښيار، زړه سواند او تحليل ګر مشر ګڼل کېده، د ولسونو او قومونو په جرګو کې يې رغنده رول درلود. د قوي او متين عظم خاوند و، ډېر زړور او مهربان مشر و، نوموړي به تل د قران شريف تلاوت کاوه، يو پرهېزګار او متقي مشر په توګه يې ولسونو ډېر درناوی کاوه، له ظالمانو به يې کرکه کوله او د مظلومانو د حقوقو يې ننګه کوله. د ماشومانو سره يې ډېره مينه کوله. وکيل عبدالمتين د (۶۵) کلونو په عمر پر (۱۳۷۹ل) کال د زمري د مياشتې پر (۲۲) مه نېټه د يکشنبې په ورځ له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د نشه ګام په کلي کې خاورو ته وسپارل شو. روح دې يې ښاد وي او ياد دې يې تل وي.

د نوموړي مشران زامن هر يو عبدالقيوم چې په انيس ورځپاڼه کې د ژورناليست په توګه کار کوي، رحمت قيوم، محمد قيوم، قاضي عبدالصمد او علي احمد نومېږي چې هر يو يې دولتي دنده لري.

## بارګام (Bargam)

بارګام د نشه ګام جنوب خواته پروت دی، دا کلی د لوی کلي په نامه هم یاد یږي، چې ددې کلي جنوب ته د جلاله کلی موقعیت لري، په بارګام کې څو بېلابېل قومونه ژوند کوي، په دې کلي کې کوهستاني هم ژوند کوي او د پوره ملکیت خاوندان دي، دا کوهستاني په قام بران داري دي او په لویه کې کوهستاني او د یوې لوی کورنۍ (ګوارو) پورې اړه لري. بارګام ته کوهستاني بیی لام وايي.

پخواني مشران يې:

١ - مرحوم رحمت جان
٢ - مرحوم شاګی
٣ - مرحوم اسلم
۴ - غلجی
۵ - غلام
٦ - ګل زمین
٧ - شېرزمین
٨ - مرحوم خاچی

پورته ذکر شوي مشران په بارګام کې ژوند تېر کړی او پوره د نوم خاوندان دي او یوه درنه کورنۍ ګڼل کېږي، د لاوره، باجرئت او بهادر خلک دي، په مېلمه پالنه کې لوی مقام لري، د سیمې او محل ولسونو سره د ورورۍ ټینګې اړیکي لري او د محل خلکو ته درانه او د اعتماد وړ خلک پېژندل شوي.

اوسني مشران يې دادي:

۱- شېرزمان

۲- عظیم

۳- سخي

۴- شېرزمین خان

۵- حضرت الله

۶- محمدامین

۷- نازنین

د نشه ګام د ولسونو ژبه کوهستاني ده، د غازي اباد ولسوالۍ د نشه ګام د کلي په مرکزي ساحه کې د راسا د سین په غاړه په لوړه جوړه شوې چې د ولسوالۍ څلور خواو ته لوړ هسک غرونه تاو راتاو ښکاري چې شنو او هسکو غرونو ددې ولسوالۍ موقعیت ته لاپسې ښکلا ورکړې ده. نشه ګام یو کوچنی روغتون لري، چې په اوسني حالاتو کې د ولسونو روغتیایي ستونزې نه شي حل کولی.

دا چې نشه ګام د درین درې او دایګل درې دواړو درو د ولسونو مرکزي ساحه ده او دا خلک ټول د مالدارۍ په چارو مشغول دي د حیواناتو یو مجهز روغتون ته پوره اړتیا ده.

# په کوهستان کې حکومتي ادارې

د ډېرو پخوازمانو راهیسې ناړۍ د خپل جغرافیایي موقعیت په اساس د حکومتونو او ادارو مرکزي ساحه پاتې شوې ده او د ناړۍ د مرکز نه بیا نور اطراف او سردرې اداره شوې دي، په پخوانیو وختونو کې چې د ګواریانو مرکزي اداره تېره شوې ددې ادارې مرکزي ساحه ناړۍ وه چې د شاهي مانۍ لرغونې ابادې دېوالونه یې په دې درېو لسیزو کې د جنګونو له امله له منځه لاړه او د ډېرو ځخه یې کلیوالو ځان ته کورونه جوړ کړي دي. د ګوارو اداره ډېره پراخه وه، چې شمال ختیځ ته یې د منګول (چترال) اداره او شمال لویدیځ ته یې د الینا اداره وه او ختیځ ته دیر او جنوب ته یې چغسرای د ناړۍ علاقداري د خپلواکۍ د ګټلو سره سمه د غازي امان الله خان په دوره کې د کونړ د تشکیلاتو سره یوځای په فعالیت پیل کړی دی، چېې له دغه ځایه د چترال د میتر او د انګرېزانو سره افغان مجاهدینو جګړې او غزاګانې، یرغلونه او بریدونه شوي او دلته افغانانو ته ډېر ویاړونه په برخه شوي. انګرېزان او د میتر شهزاده پوځونه مات شوي او په شاتمبول شوي، د ناړۍ په ساحه کې تر (۱۳۱۲ل) کال راهیسې حکومتي چارې او مالیاتي چارې سمبال شوي. د ډاکتر نجیب الله د رژیم په وخت کې دغه علاقداري ولسوالۍ ته ارتقا کړې ده. په شاهي رژیم او د سردارمحمد داود د

جمهوريت په نظام کې يو فعاله سرحدي علاقداري وه، حکومتي
مشرانو به د سيمې د مشرانو په مشوره د خپل دولتي حاکميت د
ټينګښت لپاره په مشوره حکومتي کارونه ترسره کول او حکومتي
واکمني ټينګه وه. کله چې پر (۱۳۵۷ل) کال د خلقي رژيم په دوره
کې د ميزان په مياشت کې د برګمټال ولسوالۍ سقوط شوه او
واکمني مجاهدينو پورې اړه پيدا کړه ورپسې د کامديش ولسوالۍ
سقوط شوه او د ختيځ نورستان ټوله واکمني د مجاهدينو په لاس
کې شوه، د وخت خلقي نظام او روسانو پوځيانو ته ويره او تشويش
پيدا شو چې د ناړۍ ولسوالۍ سقوط نه شي، ځکه دا يو خاص
موقعيت لري، نو د وخت روسي پلوه رژيم له خوا ډېر پوځونه د
بريکوټ په سرحدارۍ او د ناړۍ په شاوخوا کې ځای په ځای شو او
پوځي پوستې يې جوړې کړې، په بريکوټ کې **۵۵** نمبر غنډ او د
مرکزي قول اردو نور پوځونه هم ورسره يوځای دلته په پوځي دندو
ګمارل شو. د نورستان د کامديش د ولسوالۍ د بېرته نيولو لپاره
پوځيانو ډېرې هلې ځلې او عمليات وکړل، خو برى يې ترلاسه نه
کړو، ډېر زيانونه او ځاني تلفات يې وليدل او ناکام پاتې شو، خلقي
نظام په بريکوټ دوکلام او پاشنګر او ناړۍ کې د عصري وسلو سره
سمبال ورچلونه ونيول چې د مجاهدينو د بريدونو او يرغلونو مخه
ونيسي په دغه وختونو کې د ناړۍ بريکوټ او دوکلام ولسونه
محاصره و او د بنديتوب تورې ترخې شپې يې تېرولې. لارې په هره
خوا بندې وې او پوځيانو چاته د تګ راتګ اجازه نه ورکوله.

تر (۱۳۵۸ل) کال وروسته د نشه ګام ساو ډېر خلک په هجرت د پاکستان خاورې ته لاړل او د مجاهدینو سره یوځای شو، چې د اوسني غازي اباد ولسوالۍ او د ناړۍ ولسوالۍ قومونو او ولسونو ژوند ډېر تریخ شو د ناړۍ مرکزي ولسونه پر (۱۳۶۰ل) کال د هجرت لاره غوره کړه، خو د وخت د پوځیانو او نورو خلقي نظام طرفدارو کسانو له خوا د بریکوټ او دوکلام او د ناړۍ ولسونو د هجرت مخنیوي لپاره تدابیر نیول شوي وو، پرته د پوځي پوستو څخه یو شمېر کسان په شاوخوا کې په عصري وسلو او مخابرو باندې مجهز شوي وو، چې د ذکر شویو کلیو د ولسونو د هجرت کولو مخه ونیسي او د اړتیا په وخت د بریکوټ پوځي عمومي قوماندانۍ ته راپور ورکړي د بریکوټ دوکلام او ناړۍ ولسونه د هجرت کولو مخکې په زور او جبر سره په پوځي ملېشو کې تنظیم شوي وو او هېچا ته اجازه نه وه چې په خپل سر باندې حرکت وکړي، شپه او ورځ د پوځي پوستو او استخباراتو (خاد) کسانو له خوا تعقیب کېده، په خلکو ظلمونه او ناروا عملونه روا ګڼل کېدل، چې د ناړۍ او دوکلام ولسونو د هجرت کولو وروسته د بریکوټ ولسونه د ډېرو ستونزو سره مخامخ شو، د پوځي پوستو پرته د استخباراتو څانګه ډېره فعاله وه او پوځیانو او روسانو ته یې د جاسوسۍ کارونه کول، د بریکوټ د استخباراتو څانګه کې اکثریت د پرچم کسانو شمولیت درلود، چې د روسانو له خوا حمایه کېدل او خبره یې منل کېده د ولسونو سره ښې اړیکي نه لرل.

د بریکوټ یو تن مشر حاجي ملک ګل احمدخان داسې وویل: زه له خپلې کورنۍ سره په بریکوټ کې بندپاتې وم د ستونزو له امله مې په هجرت کولو بریالی نه شوم په خلقي پرچمي نظام زموږ د خلکو په تګ راتګ پوره بندیز لګېدلی و د هغه وخت د واکدارانو ډېرې ترخې او نه هېرېدونکې خاطرې په زړه لرم خو د مثال په توګه یو څو خاطرې چې د هغه وخت د ظلم او وحشت او ناروا عملونو بېلګې دي وایم:

۱- یوه ورځ چې د دوبي موسم و، ډېره ګرمي وه د خپلو شخصي ځمکو غنمو حاصلات مې ډېر په کړاو او کوښښ سره راټول کړل، د غنمو راشه مې جوړه کړه د تول او وزن لپاره چمتو شو یو ناڅاپه د استخباراتو او پوځي کسانو یو ګروپ راورسېد ماته یې وویل چې دا د غنمو راشه موږ پوځي قشلې ته انتقالوو، ما ورته وویل دا زما د پدري جایداد شخصي غنم دي زه یې خپل کور ته وړم زما د کور د ماشومانو حق دی زما خبرو ته یې اهمیت ورنه کړ او پوره د غنمو راشه یې په زور او ظلم بوجو ته واچوله او وپوځي قشلې ته یې انتقال کړه.

۲- بله ورځ زه د خپل کور څخه د یو ضروري کار لپاره بیرون ته وتلی وم یو ځوان هلک ماپسې په منډه منډه راغی او راته یې وویل: ستا د قلبې غوایي پوځیانو او د استخباراتو کسانو ستا له کوره قشلې ته یوړل، زه عاجل پاڅېدم او په منډه منډه پوځي محل ته ورغلم تر څو چې زه هلته ورسېدم، زما د قلبې غوایي حلال شوي

وو، دغه ترخه صحنه مې ولیده او نور مې څه ونه ویل ځکه ګټه نه وه.

د هغه وخت د حکومتي ادارو دارنګه د ظلم تګلاره وه، چې دا مې د نمونې په ډول درته وویل. د ناړې علاقداري (۱۳۶۰ل- ۱۳۷۱ل) کال پورې سقوط وه، د تنظیمونو له خوا یو څه وخت په زرو کڅ کې تش په نامه علاقداري وه خو څه فعالیت او واک یې نه درلود.

د مجاهدینو د اسلامي انقلاب تر بري وروسته په ناړې کې بیا تش په نامه ولسوالي وه خو واکمني یې نه لرله او د ناوړه پېښو مخنیوی او د ظالمانو د ظلم مخنیوی یې نه شو کولی داړه مارانو به په لاره باندې شوکې او داړې کولې چا یې مخه نه شوه نیولی؟

کله چې د طالبانو د رژیم واکداري شوه د ناړې ولسوالۍ فعاله شوه چې ډېر ښه امنیتي تدابیر یې لرل، داړه مار، شوکمار او ډاکوان غارونو ته ننوتل او هېچا د ځان سره په لاره سړکونو وسله نه شوه ګرځولی، خلک به په اطمنان هر خوا ته تلل راتلل چې هېچا بېځایه حرکت نه شو کولی د طالبانو واکمني په دغه ولسوالۍ کې د امن دوره وه.

کله چې د طالبانو واکمني د بن د پرېکړې په رڼا کې د امریکایانو او نړیوالو په ملاتړ خصوصاً د امریکا او غربیانو په هوایي یرغلونو سره نسکوره شوه او د هېواد ولسونو د طالبانو د ژریم ملاتړ ونه کړ او د طالبانو رژیم د ولسونو او قومونو غوښتنو ته ځواب نه شو ورکولی، د افغانستان ټولو ولسونو قومونو د حامد کرزي د نوي

حکومت او پراخ بنسټ دولت ملاتړ وکړ او د حامد کرزي حکومت پر هېواد واکمن شو.

په سر کې د هېواد ولسونو د حامد کرزي د حکومت څخه ملاتړ او هرکلی وکړ او د ټولو ولسونو او قومونو دا هیله وه چې نوی حکومت به د ولسونو په ژوند باندې اسانتیا او رڼا راولي او سوله او امن به جوړ شي عدالت به ټینګ شي، حق به حقدار ته حواله شي او کار به اهل کار ته وسپارل شي، خو خبره داسې ونه شوه او ټول هېوادوال یو ځل بیا د پرېشانۍ او وسوسو سره مخامخ شو، د کرزي حکومت په تنظیمي او کورنیو اړیکو او شخصي خپلوۍ اړیکو په اساس روان شو او وزارتونه، ریاستونه او نور دولتي مقامونه د والیانو نه نیولې تر ولسوالانو پورې په شخصي اړیکو او تنظیمي اړیکو پواسطه تعین شو، کار اهل کار ته ونه سپارل شو او دولتي او حکومتي مسوولین په مرکز او اطرافو کې قاچاق، غلا، چور، چپاول، رشوت او په فساد اخته شو، چې د ناړۍ ولسوالۍ مسوولین هم په دغه شرموونکو انساني او بشري ضد اعمالو کې لوی لاس پیدا کړ، چې دغه حرکات ټولو ولسونو او قومونو ته په ډاګه شوي. دغه دوره په چور، چپاول، غلا او فساد او قاچاق کې ساری نه لري چې دا ډول منفي عملونه خپل لوړ اوج ته پورته شوي د ولسونو او قومونو شکایت او فریادونو ته څوک ځواب نه ورکوي، د دولتي او حکومتي چارواکو غوږونه ټپ شوي او سترګې یې پټې شوې دي.

د نارې د ولسوالۍ حکومتي فعالیت درېو کالو راهیسې تر (۱۳۸۹ل) پورې صفر منفي صفر او په چور چپاول او فساد کې لوړ مقام لري؟ د افغانستان د ولسونو لپاره د افسوس خبره ده چې دولتي او حکومتي چارې په فساد اخته ماهرانو ته سپارل شوي او مرکزي حکومت؟ په دري کې متل دی: «پهلوان زنده خوش است».

کرزی صاحب او د هغه مشاورین د کنټرول څخه عاجز پاتې دي؟ د نارې ولسوالۍ مسولین د ولسونو سره اړیکي نه لري، د ولسونو د ستونزو د حل لپاره څه تدابیر نه شته، د ولسوالۍ مسوولین د دوه مقامونو سره نږدې اړیکي لري، چې یو د پاشنګر د امریکایانو بېز او بل د زرو کڅ د امریکایانو بېز، ددغه ځایونو د استخباراتو او (PRT) سره ډېرې خوږې او نږدې اړیکي لري او خپل ولس ورځنې هېر دی. ډېر د افسوس خبره ده افغاني غرور او افغاني احساس یو شمېر کسانو د خاورو سره خاورې کړ.

ددغه بېزونو څخه د ولسوالۍ مسولین خوراکي مواد، تعمیراتي مواد، تعلیمي او درسي مواد، زراعتي مواد په ډول ډول بهانو د خلکو په نامه راوباسي بیا یې بازار ته وباسي او پیسې یې خپلو جیبونو ته اچوي او بله دا چې د امریکایانو له خوا چې سړک، د اوبو ویالې، ښوونځي، روغتونونونه او نور تعمیراتي کارونه کېږي حکومتي چارواکي او مسولین دغه کارونه هغه چاته حواله کوي یا په ټیکه ورکوي چې هغه ناولي کسان وي او رازونه پټ وساتي چې ددغه مسوولینو پېژندل شوي اجنټان دي، چې ددغه مسولو کسانو

سره ګوتو په شمار ناولي کسان شریک دي چې هغه د وطن او ولسونو څه پروا نه لري، په فساد اخته او ککړ دي؟

ولسونه د ولسوالۍ مقام ته د خپلو حقوقو لپاره مراجعه نه کوي چې دا ډول په فساد اداره په تاریخ کې بې مثاله ده، دارنګه مسولین او اداره به د خلکو څه خدمت وکړي او ولسونو ته به څنګه د خدمت جوګه شي؟

دارنګه کارونه د غازي اباد ولسوالۍ کې هم روان دي، په سل مترۍ کې واکمني نه لري، د نشه ګام ځنې مخالفین په زور سره د پولیسو د لاس وسلې اخلي په ډب بروړو او جلاله کې خو بیا هېڅ قدرت نه لري، په کونړ کې چې د ناړۍ او د نشه ګام ولسوالۍ دواړه سرحدي ولسوالۍ ګڼل کېږي ولسونه او قومونه د دواړو ادارو د مسولینو څخه سر ټکوي. نن سبا د دولت او حکومت د مرکزي ادارو او د ولایتونو او ولسوالیو د ادارو څخه خلک ډېر نهیلي او پرېشان دي، ټول ولسونه نهیلي دي ورځ په ورځ فساد ډېرېږي او د جنګوو لمنه پراخېږي. ولسونه د دولتي ادارو څخه فاصله اخلي او ټول هېوادوال یو مثبت عمومي بدلون ته په ډېره مینه او تلوار انتظار وباسي. په ناړۍ او نشه ګام کې دولتي چارواکي د امن او امنیت واکمني نه لري، خلک حیران دي چې چېرته لاړ شي چاته خپلې ستونزې ووایي، چاته فریاد وکړي، دولتي چارواکو ولسونو ته قومونو ته خپل اعتماد او باور له لاسه ورکړی او قومي او ولسي ملاتړ نه لري؟ ځکه د دوی څېرې او غیر انساني عملونه اوس د

هېڅ شخه پټ نه دي، په دغه دواړو ولسواليو کې د څارنوال او د قضا کارونه په ټپه ولاړ دي او که کوم مسايل د څارنوالۍ او د قضا له خوا وڅېړل شي او فيصله وربانددې وشي څارنوال او قضا يې د عملي کولو توان نه لري؟

کوهستاني ولسونه دا هرڅه په سترګو ګوري او په غوږونو اوري، خو د خپل حيثيت او ابرو لپاره د اوسني وختونو کړاونه او ستمونه او ظلمونه چې په ټول هېواد کې جاري دي، د خپل زغم او د صبر څخه کار اخلي او په ډېره هوښيارۍ سره ځانونه د فساد څخه ساتي، نه د چا سره په فساد او پټو معاملو کې ګډ دي او په دې خبره باندې باوري دي چې «کوږ بار تر منزله نه رسي» نو انشاالله دا هر څه به د افغانستان د ولسونو په غوښتنه سم او هوار شي او دغه توري شپې به په سباوون بدلې شي. کوهستاني پوره په هوښيارۍ پوهېږي چې دا وطن د ټولو افغانانو د ننګ او ژوند ګډ کور دی او دا يوازې د افغانانو ټاټوبی دی ددې وطن د پت او عزت ساتلو لپاره افغانانو خپل سرونه قربان کړي او خپل سرونه به قربانوي، ددې وطن په پولو باندې ډېرو يرغلګرو يرغلونه کړي دي، لکه انګرېزانو، چنګېزانو، کمونيستو روسانو خو دلته يې ارمانونه خاورې شوي اوس چې په وطن کې نړيوال پوځي قوتونه او په سر کې امريکايي قوتونه شته دا به ضرور زموږ د هېواد له غېږې يوه ورځ وځي او هېڅکله دايمي نه شي پاتې کېدلی، زموږ د هېواد تاريخ څکه په زړه پورې او روښانه دی چې دلته د زمانو سرکش يرغلګرو کوپړۍ

له خاورو سره خاورې شوې دي اوس چې زموږ په خاوره او وطن کې فساد او ظلمونه او جنګونه شته دا د پردیو بربنډې دسیسې دي او خپل ناولي تور لاسونه یې زموږ خاورې ته اوږده کړي، خو دا تور لاسونه به ډېر ژر د افغانانو په تورو غوڅ شي او د وطن غېږه به د افغانانو د هوسا ژوند لپاره د امن او نېکمرغۍ کور شي. افغانان اوس په دې خبره پوهه شوي چې ددې تپل شوي جنګ د اورونو لمبې په یووالي او ملي پیوستون سره وژلی شي، د ټولو هېوادوالو ملي او تاریخي دنده ده چې د ملي یووالي او پیوستون لپاره د وطن غېږه کې په اسلامي او افغاني احساس سره کارونه ترسره کړي.

# خلقي رژيم په کوهستان کې

پر (۱۳۵۷ل) کال د ثور د مياشتې پر (۷) نېټه د (ا.خ.د.گ) له خوا زموږ په هېواد کې يو لوی بدلون منځته راغی چې د ثور د انقلاب په نامه ياد شو، چې د هېواد سياسي قدرت د افغانستان د خلق دموکراتيک گوند پورې اړه پيدا کړه. سردارمحمدداود خان د هغه وخت لومړنی جمهور رئيس د خپلې کورنۍ د نورو غړو سره شهيد شو. واکمني د انقلابي شورا پورې مربوط شوه. نورمحمد تره کی د انقلابي شورا رئيس او د افغانستان د خلق دموکراتيک گوند عمومي منشي اعلان شو او حفيظ الله امين او ببرک کارمل يې د مرستيالان شو په دغه گوند کې دوه ډلې وې چې د خلق ډله نورمحمد تره کي او د پرچم ډله د ببرک کارمل له خوا رهبري کېدلې. د دواړو ډلو مرام او اساسنامه يوه وه او کوم توپير يې نه درلود او د شوروي اتحاد د کمونيست گوند پلويان گڼل کېدل، چې د پرچم ډلې په نسبت د خلق ډلې اکثريت درلود او غړيتوب يې مظلومو زحمت کشانو کاوه او پښتانه په کې زيات تنظيم شوي و، د پرچم ډله اقليت درلود او غړيتوب يې حکومتي روښنفکرانو تجارانو سرمايه دارانو فيوډالانو درلود.

د پرچم ډلې د روسانو سره پټې اړيکي لرل، همدا سبب شو چې د خلق او پرچم په منځ کې اختلاف د انقلاب د بري سره سم ورځ په ورځ زياتېده، خلقيانو پرچميان د لوړ مقاماتو څخه گوښه کړل، د

ببرک کارمل په شمول ځینې کسان يې بهرنيو هېوادونو ته د سفيرانو په توګه واستول چې په دغه سياسي لوبو کې مستقيماً د روسانو لاس و. پر (۱۳۵۸ل) کال د حفيظ الله امين له خوا نورمحمد تره کی ووژل شو او په خپله د قدرت په څوکۍ کېناست، روسانو د خپلو پوځيانو لپاره دا زمينه برابروله چې افغانستان په يو نوم باندې اشغال کړي، درې مياشتې وروسته د شوروي اتحاد د پوځيانو له خوا د حفيظ الله امين په رژيم باندې په توره شپه کې پر (۱۳۵۸ل) کال د مرغومي د مياشتې پر (شپږمه نېټه) پوځي کودتا وشوه چې په نتيجه کې حفيظ الله امين د خپلو ځينو ملګرو سره ووژل شو او پاتې ګوندي او دولتي لوړ پوړي وزيران او نور چارواکي د پلچرخي زندان ته واچول شول او ببرک کارمل د روسانو په اوږو سپور د کابل په تخت کېناست چې لويه بدمرغي زموږ د هېواد ولسونو ته په ظالمانه توګه منځته راوړل شوه چې زموږ د هېواد ولسونو ته ترخې او نه هېرېدونکې تاريخي خاطرې په تاريخ کې پاتې دي. روسان کمونيستان زموږ د هېواد ښارونو ولايتونو او رنګينه سردرو ته ننوتل او په ظالمانه توګه يې زموږ د مسلمان ولسونو په ضد خپل غير بشري ارمانونو د عملي کولو لپاره ننوتل او په ظالمانه توګه يې زموږ د مسلمان ولسونو په ضد خپل غيرې بشري ارمانونو د عملي کولو لپاره په عصري وسلو او عصري الوتکو باندې زموږ هېوادوال ووژل تهديد يې کړل د افغانانو په وينو يې غرونه، ښارونه چمنونه او دښتې سرې کړې او زيات

ولسونه فرار ته اړ کړل. د افغانستان دردېدلو ولسونو د جهاد لاره په ایمانداری سره غوره کړي او د سربښندنو په بدل کې یې د شوروي اتحاد کمونیست ګوند پوځیانو ته په نړیواله سویه په تشو لاسونو داسې ماته ورکړه چې د کرملین لېونیان په حیرت کې پاتې شو او د شوروي اتحاد کمونیستي نظام په نتیجه کې ړنګ او ناکام شو.

دا د افغانانو مېړانه او اتلولي وه، خو د افسوس خبره داده چې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند ددې هېواد د بچیانو په توره او ایمانداری له منځه لاړ، ددې لپاره چې نړیوال افغانانو ته نړیوال اتلتوب ته قایل شي، زموږ د هېواد په غمیزو یې سترګې پټې کړې او اوس زموږ جنتي او اسلامي هېواد غېږه د نړیوالو د زور ازمایی په ډګر بدل شو او افغانانو ته څوک حق او امتیاز نه ورکوي چې په خپل وطن کې د سولې او امن او نېکمرغی ژوند اختیار کړي؟؟؟ په هر ترتیب؟؟؟

کله چې په ختیځ نورستان کې د برګمټال او د کامدیش ولسوالی مجاهدینو ونیول خلقي پرچمي حکومت د ناړی په ولسوالی باندې ډېر پوځونه په بریکوټ دوکلام، ناړی، پاشنګر کې ځای په ځای کړل د کوهستان په منطقه کې زیات ددې منطقې او سردرو ولسونه د خلقي پرچمي دولت په ضد جهاد ته پورته شو او خلقیانو پرچمیانو د شوروي اتحاد د کمونیستانو په لارښوونه ډېر کوښښونه او پوځي بریدونه یرغلونه بیماري وکړل چې ولسونه د ځان تابع او تسلیم کړي، خو د هرې ورځې په تېرېدو په خلقي او

پرچمي او په روسي کمونیستانو ساحه تنګېده او د مجاهدینو مورچلونه زیاتېده، هغه کسان چې په خلقي او پرچمي کمېټه کې شامل وو سیاسي پوهه او هوښیاري یې نه لرله، ځینو خو لا پوره سواد نه درلود د ولسونو سره یې اړیکي نه لرل، په ګوندیتوب نه پوهېدل زیات کسان یې غوړه مالان او تنګ تکور پرته په څه نه پوهېدل او ولسونو ته یې د وخت د شوروي کمونیستي مشاورینو په لار ښوونه زیات تاوانونه واړول.

۱- په زور او جبر سره یې ناړې، دوکلام، بریکوټ کې کلیوال ولسونه په پوځي ملېشو کې تنظیم کړل او خلقیانو او پرچمیانو د هغو لارښوونه او کنټرول په غاړه درلود، همدغه کسانو د منطقي یو شمېر کسانو ته چې د بریکوټ د پوځیانو سره یې اشنایي درلوده او په پټه یې امتیاز درلود، د پوځیانو له خوا ورته پوره عصري وسلې او مخابرې ورکړ شوې وې چې ددغه ولسونو د مهاجرت او یا د رژیم ضد کار کولو په وخت کې ورنه کار واخلي او بریکوټ او حکومتي ادارو ته راپور ورلندې کړي.

۲- د کوهستان ټولې لارې او سړکونه د تګ راتګ لپاره بند شوي و او کلیوال خلک یې په لارو او سړکونو تګ راتګ ته اجازه نه وه.

۳- ځوانان ښوونکي، مامورین او کلیوال به د شپې له خوا ثابتو پوځي پوستو ته ګمارل کېدل او زیات وختونه به دغه کلیوال بېچاره ولسونه د پوځیانو سره یوځای تعرض او کمین د نیولو لپاره په زور ورلېږل. معلم صاحب حضرت الله خان په دې اړه وویل: پر

(۱۳۵۹ل) کال د بریکوټ ښځه پوځیان د ناړې جنوب خواته د تعرض لپاره تلل چې د ناړې ملېشو نه غوښتل چې په دغه تعرض کې ګډون وکړي، ځینې ملېشه کسان جومات ته ننوتلي و چې د مسوولینو له خوا په زور سره له جومات ښځه وویستل او د پوځیانو سره یې موظف کړل چې ځو تنه یې په هماغه استقامت کې مړه شوي وو.

۴- ددغه خلقي پرچمي اجنټانو له خوا پر (۱۳۵۷ل) کال د بریکوټ یو تن لایق ښوونکی شېرمحمد د ملک جلات خان زوی او د ساو یو دیني عالم مولوي شفیع الله ونیول شو چې تر نن ورځې پورې لا درک دي په دې ګناه چې خلقي یا پرچمیان نه وو.

۵- یو تن دولتي مامور چې هغه خلقي یا پرچمي نه و، ددغه غوړه مالانو خلقیانو او پرچمیانو له خوا په دې بانه چې (۲۵۰) افغانۍ رشوت یې اخیستی هغه ته دغو خلقي اشپزباشانو تورمخو مخ تور کړی و او په سر یې ورته د چرګانو ښکې ایښې وې او په خر باندې یې سور کړی و، کوځه په کوځه ګرځول شوی و، چې دا ځومره د بې حیایۍ او شرم خبره ده. دغه ډول د انسانانو د تحقیر ډېر ناوړه کارونه ترسره شوي دي، چې د اسلام د مبین دین د احکاماتو ضد عملونه ګڼل کېږي.

همدغه ناوړه او غیر انساني کارونو په کولو سره زموږ د هېواد د ولسونو ژوند د پردیو غلامانو، چاپلوسانو، د خاورو سره خاورې کړ، هغه بې دینه بې علمه او سرټیټي کسان چې ناوړه اعمال یې

سرته رسولي دي، هېڅکله به د ولسونو په مخ کې خپلې سترګې پورته نه کړي او تل به کوز ګوري وي؟

۲- یو تن پخواني مشر او ښوونکي پیرمحمد واحیدي ویل: پر (۱۳۶۰ل) کال د مجاهدینو له خوا په پوستو او د بریکوټ په قوماندانۍ او د ناړې په علاقدارۍ باندې ډزې او بریدونه کېدل او دغه بریدونو شدت پیدا کړ یو شمېر کسان چاپلوسه خلقي اشپز باشان چې ایمانونه یې نه لرل د ډار او وېرې او د یو ګډ تصمیم نه لرلو په وجه دومره وارخطا شوي وو چې ځینې شاوخوا کلیو دوکلام ته په تېښته رسېدلي وو او علاقدار د زړې بوسارې منځته ننوتی و. کله چې د بوسارې نه راووت خلکو ته یې سترګې نه شوې پورته کولی چې دا ډول ابن الوقت د شوروي پوځیانو ګوډاګیان او غلامان چې خپل افغاني او اسلامي جذبه یې په بې ایمانۍ له لاسه ورکړې وه.

۷- میرزا صاحب عبدالحق چې یو پخواني پېژندل شوی ولسي مشر دی داسې وویل: شرایط ډېر سخت او تنګ شو، د خوراکي موادو د نشتوالي سره ولسونه مخامخ شو، د علاقدارۍ واکداران خلقیانو چغو او فریادونو ته د ولایت مشرانو جواب نه ورکاوه، یو تن ماته وویل: کاکا راشه له والي سره خبرې وکړه، ما ورته وویل په خپله خبرې وکړه هغه راته وویل والي پرچمي دی زما خبرو ته اهمیت نه ورکوي، نو ما ورته وویل چې ستا مشر ستا خبرو ته غوږ نه نیسي نو ته؟ (.) خوري څه کوې؟ چې دلته ناست یې؟ چې څو ورځې

وروسته علاقداري سقوط شوه او موږ د هجرت لاره غوره کړه، ډېر جنايتونه شوي چې دا څو مسايل د مثال په ډول بيان شو.

داسې بېسواد او سياسي بېسواد مزدورانو او خلقيانو زموږ مظلومو ولسونو ته ډېر خطرناک مسايل جوړ کړي وو، د داسې چاپلوسو غوړه مالو خلقيانو د بې علمۍ او ناپوهۍ په اساس زموږ ولسونو ته ډېر ځاني او مالي تاوانونه ورسېدل. د وطنپرستو او پوهو ځوانانو او ولسونو ملي او انساني دنده ده چې داسې ازمون شوي د پرديو چاپلوس غوړه مالو ته نور د ولسونو په منځ کې ځای ور نه کړي. غوړه مال او سازشي کسان قام او ولس او منطقې ته د خطرناکې ناروغۍ د مکروب د موجوديت مانا ورکوي، ښکاره خبره ده چې چېرته مکروب وي هلته ولسونو او ټولنې ته خطر پېښېږي، وطنپرست په قام او وطن مين ولسونه بايد داسې مکروبونه محوه او نابود کړي، تر څو ولسونه او ټولنه پاکه پاتې شي هغه د پرديو مزدوران غوړه مالان چې تل د بلچا په اوږو سپاره وي، په مکارۍ چاپلوسۍ هر ډول ته نخښږي، شرم او حيا نه پېژني، افغاني او اسلامي حيثيت نه لري.

دارنګه ابن الوقت مرتجع کسان د خپل شخصي يوې افغانۍ ګټې لپاره د قام او د هېواد مليونونه افغانۍ د زيان څه پروا نه لري، دا د خرڅ شوي او غلام کسانو خاصيت دی.

ډېر افسوس د هغه غوړه مالو چاپلوسو سرټيټو کسانو په حال چې په خلقي رژيم کې يې بې مسوليته د خلقي اشپزباشانو په توګه په

محفلونو کې رقصونه کول او د نورو د خوښې لپاره يې د خپلو ولسونو ژوند تريخ کړی و چې د هغو د سرټيټۍ او بې ځايه حرکاتو په وجه ولسونو ته زيات زيانونه ورسېدل، خو د قام او ولسونو په برکت يې نجات پيدا کړ. د هجرت په کلونو کې هم دغه د پرديو د عقيدو غلامان اصلاح نه شو د زورواکو د هوجرو خدمتګاران شو او په توبو توبو خپلو رقيبانو ته په سجده شو، سياسي رقيبانو دغه سياسي بېسواد کسان چترال، پېښور ته ځو ځو ځل ولېږل بنديان يې کړل.

داسې کسان هم شته چې د سياسي رقيبانو په دېرو کې اوس شپې کوي او د هغو د مېرمنو د کوچنيانو روښي مينځي ډېر افسوس د هغه غوړه مالانو چاپلوسانو په حال چې د تره کي د رژيم او د کارمل د رژيم د وخت نه نيولې تراوسه پورې چې د کرزي د رژيم نهم کال پوره کېږي خپلو شرمناکو او بې ننګه اعمالو ځخه لاس نه دی اخيستی که پرون يې د روسانو د غلامانو د خوښۍ لپاره کار کاوه، نو نن د امريکايانو او انګرېزانو د غلامانو غلامان دي. افسوس د هغه چا په حال چې د زمانو زورواکو ډول ته رقصونه کوي او په چاپلوسۍ او ټيټو سترګو ژوند کوي.

دا د يو افغان لپاره د شرم خبره ده، داسې چاپلوسان او غوړه مالان شته چې نه علم لري، نه تعليم لري نه کاري تجربه لري، خو د بل چا د غلامۍ په منلو سره د رياست، مديريت او پارلمان لپاره په چاپلوسۍ لاره لټوي، داسې کسان لکه ناشکن ګيلاس يو دم زرې

زرې، رش رش شي؟ کوم کار چې د علم او شخصي پوهې، لیاقت او تجربې سره ترسره شي هغه کار کې برى او سرلوړي په نصیب شي.
یو کوچنی مثال: د ښوونکي دنده په یوه ټولنه کې ډېره ارزښتناکه او مقدسه ده، که چېرې یو بېسواد انسان د ښوونکي په ځای د شاګردانو ټولګي ته ننوځي، نه شي کولای چې د ښوونکي رول او سپېڅلې دنده ترسره کړي، په همدې ترتیب د هر کار د انجام لپاره مسلکي علمي ماهرانو ته اړتیا ده، چې کار اهل کار ته حواله شي او هر انسان باید په خپله قضاوت وکړي، خپل علمیت تعلیم او پوهه په نظر کې ونیسي او د خپل توان په اندازه ټوپونه ووهي په چاپلوسۍ او غلامۍ منلو سره د مقام نیول د هېواد او د ولسونو سره د وطن سره دښمني ده. زما هیله ده توصیه ده چې چاپلوسي او غوړه مالي د انسان عزت او ابرو له منځه وړي او ددې کار څخه ډډه کول په کار دي، اصلاح ورته غواړم، انسان باید د خپل هېواد او ولسونو سره مینه ولري او دغه مینه پاکه او بې امتیازه وي. په پښتو کې متل دی چې (هر شی چې خام وي پخېږي، خو که انسان خام پاتې شي نه پخېږي)؟
کوهستاني ولسونو د لرغونو زمانو راهیسې خپل انساني او ټولنیز ژوند د انسانیت په چاپېریال کې لوړ ساتلی او د وطن په غېږه کې د پردیو په مقابل کې د نورو هېوادوالو قومونو او ولسونو سره یوځای په مېړانه جنګېدلي دي، خپل سرونه یې د وطن د ننګ په مورچلو کې بایللي خو هېڅکله یې خپلې سترګې او سرونه چاته نه

دي تيټ کړي او په خپل افغاني غرور او احساس سره د وطن د عزت او د وطن د پټ ساتلو په لاره کې د خپل تن د وينو او د سربښندنو څخه دريغ نه دی کړی کوهستاني ولسونه د وطن سره د وطن د خاورې کانړو بوټو هسکو غرونو سره د سيندونو او ګړنګونو سره ډېره مينه لري او په دې مينه کې ورته د وينې او سر بايلل ابدي او تاريخي وياړ ښکاري او په ګواري ژبه کې د وطن د مينې متل داسې دی:

جاينی کنځ وطننی کنځ تی مان: ژباړه: د مور غېږه د وطن غېږه ده.

وطننی کنځ جاينی کنځ تی مان:ژباړه: د وطن غېږه د مور غېږه ده.

# اوسني ګواري شاعران او فرهنګيان

ګواريان چې په هسکو غرونو او سردرو کې ژوند تېروي، په ادبي او فرهنګي برخه کې د وياړونو او ستاينو وړ شاعران او فرهنګيان لري. په سردرو کې د وطن په مينه سندرې وايي، ترانې وايي ډېر لايقه او پوهه ځوانان لري ښه ذهن او ژور فکرونه لري، نوښتګر خلک دي. په ګواريانو کې ډېر شاعران او فرهنګيان شته چې يو يو يې درته درپېژنم. ګواريان په پښتو او ګواري ژبو شعرونه وايي، شعرونه او نظمونه يې خواږه او د وطن او د ولسونو مينه په کې له ورايه ښکاري.

(۱) حضرت الله صلاحي:



نوموړی د صلاخان زوی دی او پلار يې يو نامدار، جرګه مار او د قومونو ولسونو مشر تېر شوی دی. نوموړی پر (۱۳۲۴ل) کال د ناړې په مرکزي کلي کې سترګې نړۍ ته غړولي دي. زده کړې يې په خصوصي توګه سرته رسولي دي په پښتو او دري ژبه کوهستاني ژبه روانې خبرې کوي او د ښه قلم خاوند دی.

نومونړی د دولت په چوکاټ کې ډېرې دندې ترسره کړي دي او اوس د کونړ ولایت د ناړۍ په ولسوالۍ کې د ځارنوال په توګه دنده اجرا کوي، د پوره مطالعې صاحب دی او د دعوت تبلیغ یو پېژندل شوی فعال کدر دی، د ډېر پخوا څخه شعرونه او نظمونه لیکي، شعرونه او نظمونه یې عشقي، ادبي او اجتماعي بڼه لري، ډېره روانه او خوږه ژبه لري، د نومونړي ډېر شعرونه د ځوانانو له خوا د ځوانۍ په دوره کې د موسیقۍ په چوکاټ کې ویل شوي دي، یوه شعري پښتو ټولګه لري چې چاپ ته یې چمتو کړې ده.



(۲) احمدزمان ناقرار: احمدزمان ناقرار د مشرقاضي مشر زوی دی، لوړې زده کړې لري، یو پوځي په لوړو پوستونو کې په مېړانه او جسارت دندې ترسره کړي دي، د شعر او ادب ډګر ته یې اوس په مینه او افغاني احساس بدې وهلي ډېر خواږه په پښتو او کوهستاني ژبه شعرونه او نظمونه لیکي. نومونړی پر (۱۳ل) کال د ناړۍ په مرکزي کلي کې په یوه دیني روښنفکره کورنۍ کې سترګې نړۍ ته غړولي. ډېر زیرک، چابک، حاضر ځواب او مېلمه پال وطندوست شاعر او لیکوال دی، اوس په شعر او نظمونو کې د (شیران زوی) تخلص کوي چې پلار او نیکه یې د ولسونو سره یوځای د ژوند شپې کړي دي او د ولسونو مشران تېر شوي. نومونړی

يوه شعري ټولګه په پښتو ژبه او يوه شعري ټولګه يې په کوهستاني ژبه د چاپ لپاره چمتو کړې ده، د لوړ فکر خاوند دی.

(۳) مامور شېرزمان: مامور شېرزمان د اکرم خان زوی د ناړې



په کلي کې په يوه بزګره کورنۍ کې يې دې نړۍ ته سترګې غړولي دي. لومړنۍ زده کړې يې په خپل کلي او جومات کې ترسره کړې او بيا يې په خصوصي توګه خپل تعليمات سرته رسولي دي. په پښتو، دري او کوهستاني ژبو ډېر ښه پوهېږي.

د زراعت او ځنګل دارۍ په چارو کې يې زده کړې کړې دي او په دې برخه کې ډېره تجربه لري، په پښتو او ګواري ژبه شعرونه او نظمونه ليکي.

(۴) الحاج غلام رحيم مريدي:



ښاغلی مريدي صاحب د شيخ فضل الرحيم زوی د ناړې په مرکزي کلي کې پر (۱۳۳۲ل) کال په يوه بزګره کورنۍ کې سترګې نړۍ ته غړولي دي. خپلې لومړنۍ زده کړې يې د ناړې په کلي کې پايته رسولي او بيا د ختيځ نورستان د برګمټال د عالي لېسې څخه په اعلی درجه فارغ شوی دی. د کورنيو اقتصادي ستونزو او سياسي ستونزو په نسبت يې لوړې زده کړې ونه کړې، خو خپله مطالعه يې په مينه او شوق

سره تراوسه دوام لري. نوموړي ډېرې خصوصي زده کړې په خپل شوق او علاقې له مخې کړي دي او د ناړه په عالي لېسه کې د اجتماعي علومو يو پېژندل شوی لايق او د ټينګې ارادې باتدبيره شخصيت دی. په اجتماعي علومو کې لکه تاريخ او جغرافيه د ډېرو وختونو راهيسې ژوره مطالعه لري او ډېرر وختونه يې په لوړو ټولګيو کې د ښوونکي په توګه درسونه ورکړي. په تدريسي چارو کې هم ډېره تجربه لري ډېرره زياته سياسي او اجتماعي تجربه هم لري.

کله چې پر (۱۳۶۰ل) کال د وطن د غېږې څخه هجرت وکړ، د هجرت په کلونو کې هم کرار کېننا ست د خپلو هېوادوالو د هوښياری، د ذهنونو د روښانولو په خاطر بيا هم د ښوونکي په توګه د چترال په ښوونځيو کې دنده ترسره کړه، ډېر زيات شاګردان يې روزلي او ټول ورسره مينه لري، دا ځکه چې الحاج مريدي صاحب په خپله د نېکو اخلاقو خاوند دی، د وطن او د وطن د ولسونو په ارمانونو ډېر ښه پوهېږي.

مريدي صاحب د افغان ولسونو د دردونو ترجمان دی، زه پوره باور لرم چې استاد مريدي په ګواريانو کې ډېر ويښ او په فکري او سياسي اجتماعي لحاظ لوړ مقام لري. الحاج مريدي ډېر پخوانی شاعر، ليکوال او اديب دی خواږه شعرونه او نظمونه ليکي، ادبي ټوټې ليکي د شعرونو رنګ يې افغاني، سياسي، اجتماعي او د خپلې ټولنې د دردونو ترجماني ده.

مريدي صاحب يو ښه ژورناليست دی په پښتو، دري او کوهستاني ژبو ډېر ښه پوهېږي، ښه شعري خوی او تبعه لري.

پته دې نه وي چې استاد د جهاد په کلونو کې ډېره په مېړانه جهاد کړی دی او په مورچلونو کې يې په مېړانه مبارزه ترسره کړې ده او ګام په ګام د يرغلګرو په ضد بريدونه او ګوزارونه کړي دي، د مريدي شعرونه خواږه او روان دي. په ويلو او لوستلو کې ځه ستونزه نه لري.

مريدي پرته له دې چې ښه شاعر ښه ليکوال ښه ژورناليست او ښه وتلی لايق ښوونکی دی، د ويار ځای دی چې د ناړې په مرکز کې د ناړې د سيمې د راډيو مسوول چلوونکی دی. د راډيو لپاره په خپل قلم او زيار ډېر ژور ديني، ادبي، فرهنګي، سياسي او اجتماعي خپرونې جوړوي او تنظيموي، خپلو ولسونو ته يې تقديموي دا د نوموړي د لياقت او پوهې او فرهنګي شوق او علاقې ښکاره او لوړ ثبوت دی.

زه خپله د استاد غلام رحيم مريدي لياقت او نوښت ته د هغه استعداد ته په درنو سترګو ګورم او هغه ته د ګوارو د قام ځلانده ستوری وايم، تل دې بريالی وي.

مريدي د ملي ارمانونو د ادبي فرهنګي مرستيال او فعال غړی دی او يوه شعري ټولګه يې په کوهستاني ژبه او يوه ټولګه يې په پښتو ژبه د چاپ لپاره چمتو کړې ده.



(۵) استاد عبدالشکور شکورزاد: د دوکلام د کلي اوسېدونکی دی او په دوکلام کې په یوه بزګره کورنۍ کې پر (۱۳۴۰ل) کال زېږېدلی دی، د دولسم ټولګي پورې یې زده کړې کړې دي او ډېر وختونه کېږي چې د ښوونکي په توګه دنده ترسره کوي، په پښتو ژبه شاعري کوي او کله کله خپل شعرونه په ادبي غونډو کې په ترنم کې هم وايي.



(۶) محمدرسول غمکش: ښاغلی غمکش د سیدعباس زوی او د ګل عباس لمسی دی پر (۱۳۳۳ل) کال د ساو په کلي کې په یوه بزګره کورنۍ کې سترګې دې نړۍ ته غړولي دي او د کونړونو ولایت د مرکز د عمراخان د عالي لیسې څخه په عالي درجه فارغ شوی او د کابل پوهنتون د حقوقو پوهنځي څخه په اعلی درجه ډیپلوم ترلاسه کړی دی. د ډېر وخت راهیسې نوموړی د دولت په چوکاټ کې د یو فعال کدر په توګه کار کوي زه یې د نږدې نه پېژنم با استعداد، لایق، منور باتحلیل هوښیار او نوښتګر شخصیت دی. کله کله شعرونه، نظمونه، او ادبي ټوټې لیکي، اشعار او نظمونه او ادبي ټوټې یې یو خاص ټولنیز رنګ لري، د ښه قلم خاوند دی په پښتو، دري، کوهستاني او ساوجي ژبو باندې ښه پوهېږي. نوموړی ښه محاسب او میرزا دی او په پښتو ژبه یې ډېره شاعري کړې ده، شعرونه یې خواږه او روان دي، د ښه استعداد او د ډېرې

تجربې لرونکی پرته د ادبي او فرهنګي کارونو نوموړی یو ښه اداره چي دی او د مدیریت په اصولو ښه پوهیږي.

(۷) **حبیب الرحمن:** ښاغلی حبیب الرحمن د لقمان زوی د ساو د کلي اوسېدونکی پر (۱۳۳۵ل) کال په یوه بزګره کورنۍ کې سترګې نړۍ ته غړولي دي، لومړنۍ زده کړې یې په خپل کلي کې سرته رسولي او د کونړ د مرکزي (عمراخان) عالي لیسې څخه په اعلی درجه فارغ شوی، نوموړی یو ویښ بیدار چالاک او نوښتګر د ژور فکر لرونکی شخصیت دی، یو وخت د افغانستان په وسله وال پوځ ې د افسر په توګه دنده اجرا کړې ده.

کله چې په وطن د شوروي کمونیست پوځیانو له خوا ناڅاپي یرغل وشو، د هجرت لاره یې ونیوه د جهاد او د مبارزې لپاره د پاکستان چترال ته مهاجر شو د شوروي پوځونو او د کارمل د رژیم په ضد د جهاد تودو مورچلونو ته په خپله اسلامي او افغاني جذبه پورته شو ډېر وختونه یې وسله واله مبارزه وکړه او د یرغلګرو کمونیست پوځونو او د کارمل د ګوډاګي رژیم نوکرانو سره مخامخ وجنګېده.

استاد حبیب الرحمن پرته د جهاد نه د وطن د بچیانو په روزنه او د علم او د پوهې د لوړولو لپاره په چترال کې د مهاجرو په کمپ کې د ښوونکي په توګه دندې اجرا کړې دي. نوموړی یو لایق او مسلکي ښوونکی دی، چې ډېر کلونه یې د وطن د بچیانو د ښوونې او

روزنې په چارو کې د يو فعال ښوونکي رول ادا کړی دی. استاد حبيب الرحمن يو شوقي او نوښتر او فرهنګي شخصيت دی.

په پښتو، دري، کوهستاني او ساوجي ژبو پوهېږي او ښه قلم لري. د ورکتوب څخه شعرونه او نظمونه وايي، نوموړی د ځوانانو د محفلونو نقل پاتې شوی او د ځوانانو سره په دېرو او هوجرو کې د خوښيو د مجلسونو جوړونکی دی.

د موسيقۍ او ساز او سرودونو سره زياته علاقه لري، تل به يې ځوانانو ته خپل شعرونه او نظمونه ورکول او د موسيقۍ سره دده اشعار او نظمونه ځانته خوند کوي، په خپله هم استاد د ځوانۍ په دوره کې خپل شعرونه او نظمونه د ستار او منګي سره هماهنګ کول ډېر خوږ او تاثيرناکه سندريز اواز لري، خو دارنګه محفلونه به خاص د ځوانانو په خصوصي دېرو او هوجرو کې کول.

استاد حبيب الرحمن په رښتيا سره ښه شاعر او ښه نظم ليکونکی دی، دده شعرونه د وطن او د خپلو ولسونو د درد اواز دی، ډېره شاعري يې په پښتو ژبه کړې ده او په خپله ساوجي ژبه کې هم ښه شعرونه او نظمونه ويلي دي.

(۸) **الحاج شفيق الله مشفق:** ښاغلی مشفق د حاجي غلام شاه زوی د ناړې په کلي په يوه بزګره کورنۍ کې پر (۱۳۴۵ل) کال زېږېدلی د مهاجرت په وختونو کې يې د چترال د دروش ليسې څخه په اعلی درجه فارغ شوی دی او بيا يې د پېښور په ښار کې د جهاد پوهنتون د څمکپوهنې له پوهنځي څخه فارغ شوی، په پښتو،

دري، عربي، انګرېزي، کوهستاني، اردو او چترالي ژبو پوره پوهېږي او په پښتو ژبه شعرونه او نظمونه ليکي، يو لايق او با استعداد ځوان دی، د ناړې په عالي لېسه کې د ښوونکي په توګه دنده اجرا کوي. د پښتو شعرونو يوه ټولګه لري چې چاپ ته چمتو ده.



(۹) محب الله مفتون: ښاغلی مفتون د شهيد عبدالصمد خان زوی د ناړې په کلي کې په يوه بزګره کورنۍ کې پر (۱۳۵۸ل) کال زېږېدلی، د دولسم ټولګي پورې يې زده کړې کړې دي. په پښتو، دري او کوهستاني ژبو پوهېږي او په کوهستاني او پښتو ژبه شعرونه ليکي، نوموړی تنکی ځوان دی او ښه راتلونکی لري.



(۱۰) ذاکرالله افضلي: ښاغلی افضلي د حاجي جيلاني خان زوی د ناړې کلي په يوه بزګره کورنۍ کې زېږېدلی او د ناړې د عالي لېسې څخه په ښه درجه فارغ شوی دی، ښه شعري شوق او ذوق لري.

په پښتو، دري او کوهستاني ژبو ښه پوهېږي او په کوهستاني او پښتو ژبه شعرونه او نظمونه ليکي، شعرونه يې ښه دردناکه او عشقي رنګ لري.

(۱۱) مولوي شهاب الدين: ښاغلی مولوي صاحب د مولوي غلام خان زوی د ناړې د کلي اوسېدونکی دی پر (      ۱۳ل) کال په يوه ديني کورنۍ کې سترګې دنيا ته غړولي. ابتدائيه زده کړې يې په ناړې کې او د خيبر پښتونخوا د تيمرګرې د مهاجرو د ليسې له دولسم ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شوی، بيا يې ديني علومو ته مخه کړه او ډېرې زده کړې يې په ديني علومو کې په مدرسو او خصوصي توګه ترسره کړي دي يو ځوان او با استعداده ديني عالم دی ډېر ښه ادبي ذوق او شوق لري ډېر ښه رنګين شعرونه ليکي، شعرونه يې روان او خواږه دي. د ژوند په دوره کې ورته برياليتوبونه غواړم.

(۱۲) حاجي نورمحمد خان: حاجي نورمحمد د قادرشاه خان زوی د بريکوټ د کلي اوسېدونکی پر (۱۳۳۳ل) کال په بريکوټ کې په يوه بزګره کورنۍ کې يې سترګې دې نړۍ ته غړولي، لومړنۍ زده کړې



يې په بريکوټ کې او بيا د عمرا خان لسې له دولسم ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شوی دی.

نوموړی د کابل د تخنيکم د ۱۴ ټولګي څخه د موټر په رشته کې په اعلی درجه د انجنير په توګه فارغ شوی دی. پر پښتو، دري او کوهستاني ژبو ښه پوهېږي، ډېر وخت کېږي چې رسمي په دولتي

ادارو کې کار کوي او د ډېر کوچنيتوب راهیسې شعرونه او نظمونه لیکي شعرونه یې خواږه دي او د ښه قلم خاوند دی.



(۱۳) خانزاده ګوار: ښاغلی ګوار د محمد زینت شاه زوی د ناړې په کلي کې په یوه بزګره کورنۍ کې پر (۱۳۳۲ل) کال سترګې نړۍ ته غړولي دي. لومړنۍ زده کړې یې په ناړې کې سرته رسولي بیا د کابل په عسکرۍ لېسه کې د اووم ټولګي څخه تر دولسم ټولګي پورې پایته ورسولې. پر (۱۳۵۵ل) کال په حربي پوهنتون کې د توپچي پوهنځي کې شامل شو او پر (۱۳۵۷ل) کال په اعلی درجه ډیپلوم ترلاسه کړ، نوموړی نور ډېر پوځي او سیاسي کورسونه لوستلي دي. یو تعلیمیافته مسلکي افسر په توګه یې ډېر کلونه د دفاع وزارت په جزوتامونو کې دنده اجرا کړې ده. پر (۱۳۸۱ل) کال د کورنیو چارو وزارت په سرحدي جزوتامونو کې په لوړو پوستونو کې کار کړی دی، نوموړی د دفاع وزارت د هوایي پوهنتون په چوکاټ کې د استاد په توګه هم دنده ترسره کړې ده.

ګوار له کوچنيتوبه یو ذهین، فکرمند، با اراده او ژور فکر لرونکی باتدبیره شخصیت دی، ژوره مطالعه لري او تل ښه ښه کتابونه ګوري، په پښتو، دري او کوهستاني او روسي ژبو باندې ښه پوهېږي او پښتو ژبه کله کله شاعري کوي، نظمونه لیکي چې شعرونه یې ژور او ټولنیز، سیاسي، اجتماعي او عاطفي بڼه لري.

ګوار اوس د خپلې علاقې او شوق له کبله یو ښه لایق او باتجربه ښوونکی دی او د ناروغ د نجونو په لیسه کې دنده لري.

# شکیب الله سانین



شکیب الله حقیقت سانین د محمد نواز حقیقت سانین زوی پر (۱۳۲۱ل) کال د ننګرهار په ولایت کې سترګې نړۍ ته غړولي، خپله ابتدائیه زده کړې یې د کابل د بي بي مهرو قلعه وکیل په منځني ښوونځي کې ترسره کړي او د کونړونو ولایت د ناړۍ ولسوالۍ د بریکوټ لیسې له دولسم ټولګي څخه پر (۱۳۸۱ل) کال په اعلی درجه فارغ شوی دی. دا چې شکیب الله د کوچنیتوبه ډېر چالاک، چمتو، ویښ او د پوځي مسلک سره یې مینه لرله. د خپلې شخصي مینې او علاقې له مخې چې د پیلوټۍ سره یې لرله، په هوایي او مدافعه هوایي کې د هوایي پوهنتون محصل شو او په هوایي پوهنځي کې د پوره روغتیایي کتنو او معایناتو وروسته د ورتلوت پیلوټۍ په رشته کې شامل شو او پوره (۱۲) میاشتې یې په مینه او شوق او علاقه د پیلوټۍ نظري درسونه ولوستل چې د ځینو سیاسي او پوځي ستونزو له امله هوایي پوهنځی په هوایي پوهنتون کې لغوه اعلان شو او د شکیب الله درسونه نیمګړي پاتې شو او د زیاتې پرېشانۍ سره مخامخ شو.

نوموړي د لوړو زده کړو سره ډېره علاقه او مینه لرله، نو مجبور شو چې په نورو مسلکونو کې لوړې زده کړې پایته ورسوي. پر

(۱۳۸۲ل) کال د کانکور د ازموینې له لارې د ننګرهار پوهنتون د شمولیت لاره پیدا کړه چې په همدغه کال د ادبیاتو په پوهنځي کې د انګرېزي ادبیاتو په څانګه کې شاشمل شو او پر (۱۳۸۲ل) کال د ادبیا پوهنځي د انګرېزي څانګې څخه د لسانس په درجه فارغ شوی. نوموړی د ډېر کوچنیتوب راهیسې د ادبیاتو ژورنالیزم او کلتوري کارونو سره علاقه درلوده. د ننګرهار د پوهنتون په دوره کې د خپلې علاقې له مخې د ازموینو په بري سره د نړیوال ژورنالیزم رشته کې څو کاله پرله پسې زده کړې وکړې او په بري سره یې د نړیوال ژورنالیزم په رشته کې د فوق العاده مسلکي ژورنالیزم په څانګه کې نړیوال سند ترلاسه کړ او د خپلو همزولو ژورنالستانو په ډله کې د نړیوال ژورنالیزم استادانو له خوا د یو نړیوال ژورنالست په توګه ومنل شو.

شکیب الله سانین، یو لایق،ارام، صابر، خوش اخلاقه، ذهین او د لوړو خیالاتو او د ژور فکر خاوند دی. د خپل وطن سره ډېره زیاته مینه لري او د وطن د سمسورتیا نېکمرغۍ ارمان لري. شکیب الله سانین د ننګرهار په پوهنتون کې د ادبیاتو په رشته کې اول محصل و چې د ګواري کوهستاني ژبې او کلتور په برخه کې یې د خپل لسانس څخه د علمي مونوګراف په لیکلو سره د خپل فراغت سند ترلاسه کړ چې لیکل شوی علمي او تحقیقي اثر یې د ادبیاتو په پوهنځي کې خوندي دی، چې انشا الله یوه ورځ به په کتابي بڼه ولسونو ته وړاندې شي.

شکیب الله سانین د پوهنتون د فراغت څخه وروسته په شخصي لګښت د کونړ په ولایت کې د څلا په نوم یوه شخصي اف ام راډیو فعاله کړه او د هېواد او د کونړونو ولسونو ته یې ډېر د ویاړ کارونه سرته ورسول او د لومړي ځل لپاره یې د راډیو د نشراتو له لارې په کوهستاني ژبه ګټور کارونه ترسره کړل. د څلا راډیو ته یې ادیبان او فرهنګیان راټول کړل او د نننۍ وخت او د ولسونو او ځوانانو د غوښتنو سره سم پروګرامونه یې ترتیب او نشر ته وسپارل. ډېرو ځوانانو ته یې د ژورنالیزم او نوي ادبیاتو په اړه لنډمهاله کورسونه جوړ او ځوانان یې د ژورنالیزم سره اشنا کړل چې همدا اوس هم د راډیو د نشراتو علاوه مطبوعاتي مرکز فعال دی او ډېر شمېر ځوانان په کې تنظیم شوي دي. شکیب الله سانین د «غونچه» مجلې مسوول مدیر په توګه دنده اجرا کوي او غونچه مجله یوازې په کونړ نه، بلکې په ټول ختیځ زون او هېواد او منطقه کې یوه منل شوې علمي، سیاسي، ټولنیزه او ادبي مجله ده، چې مضامین یې د لایقو او درنو باتجربو استادانو له خوا برابرېږي چې ډېر مینه وال لري او د کونړ په ولایت کې د هسکو غرونو او سردرو د ادب مینه والو ادبي تنده ماتوي.

شکیب الله سانین د څلا په نامه یوه ازاده جریده نشروي، ددې جریدې موسس په خپله دی او په څلا جریده کې ډېر په زړه پورې ادبي، سیاسي، فرهنګي او ټولنیز معلومات خپروي، چې په رښتیا سره دغه جریده هم ډېر لوستونکي او مینه وال لري.

## الحاج غلام نبي ناړیوال:

الحاج غلام نبي ناړيوال د حاجي شاطماس زوی د حضرت علي لمسی او د ګل سید کړوسی دی. ابتدایه زده کړې یې په خپل کلي ناړه کې ترسره کړې دي او بیا د کابل د حربي ښوونځي څخه په اعلی درجه فارغ شوی دی او لوړې زده کړې یې د وخت په شوروي اتحاد کې د اجتماعي علومو په رشته کې په ډېر ښه درجه پایته رسولي دي. نوموړی د اجتماعي علومو په برخه کې ماستري لري، په پښتو، دري، کوهستاني او روسي ژبو ښه پوهېږي.

ناړیوال د ادب او فرهنګ سره ډېره مینه لري د ښه استعداد او د ژور فکر خاوند دی، په ادب پوهنه کې هم ښه پوهېږي په سیاسي اجتماعي او فرهنګي مسایلو کې ښه تحلیلګر او لیکوال دی، ښه او ژوره مطالعه لري او کله کله تحلیلي، اجتماعي، سیاسي او ادبي لیکنې او ژباړې کوي. یو ښه د لنډو کیسو اثر چې (تارین فیته) په نامه چې د بیلابیلو مجلو او کتابونو څخه راټول کړي او په ګواري ژبه یې د چاپ لپاره چمتو کړي دي.

ناړیوال یو ویښ نوښتګر او پوهه استاد دی یو وخت کې د کابل د اجتماعي علومو په پوهنځي کې د استاد په توګه کار کاوه نوموړی د ښه لیاقت او پوهې په لرلو سره د پوهنیار علمي رتبه لري او اوس د کورنیو چارو د وزارت یو فعال افسر دی چې په پوځي رتبه ډګرمن دی.

# نور احمد دین (ملنګ)



مرحوم نوراحمد دین ملنګ دعبدالحلیم زوی په ختـه کوهستانی د کونړ ولایت او پـه خـاص ډول د کوهـستان د منطقـې یـو پېژندلی شوی لیکوال لوی او روان شاعر په توګه ولسونو ته پېژندل شوی شخصیت ګڼل کېده.

د لیکوالـو او شـاعرانو پـه منځ کې د اجتمـاعي مضامینو پـوخ انتقادي لیکوال و او پر (۱۳۱۱ل) کال د ناړې په مرکزي کلي کې سترګې نړۍ تـه غړولي دي. ابتـدایي زده کړې یې د خپـل کلي پـه جومات کې سرته رسولي او نور علمي زده کړې یې په خصوصي ډول له ځانګړو ښوونکو او دیني عالمانو څخه زده کړي دي.

ښه پوخ خوش نویس میرزا او په تحریراتو کې ډېره ښه تجربه لرلـه. په پښتو او دري ژبو پوره پوهېده او په صرف او نحو کې پـوره ژور معلومات درلودل، په زړه پورې خواږه نظمونه، غزل، ترانې او ادبي ټوټې لیکلي، شعرونه یې انتقادي او ټولنیز رنګ درلـود، پـه خپلـو شعرونو او غزلـو او ترانـو کې بـه یـې خپـل ولـسونو تـه د حقـایقو، رښتینولۍ، ویښتیا او بیدارۍ لپاره بیان کاوه.

په دري او پښتو ژبه يې روان قلم درلود او په عربي او اردو ژبو هم پوهېده، ولسونو به ورته د يو فاضل او مهربان او هوښيار او سوله دوست انسان په سترګه کتل.

مرحوم ملنګ يو خوش صحبته، خنده رويه او اشنا پرسته سړی و، له کينې او حسد سره کرکه لرله. نوموړی به مجلس او جرګو کې د مينې او اخلاق او صميميت تودوالی ورکاوه.

تل به د يارانو او دوستانو او ملګرو سره په يوځای کېناستلو او ملاقاتونو ته به خوښ ښکارېده. په مېلمنو يې ډېره مهرباني کوله او کوښښ يې کاوه چې مېلمنو او يارانو مجلس ګرم وساتي، خبرې به يې په خندا او په مينه کولې په کليوالي او قومي او محلي مجلسونو کې به يې برخه اخيسته، خبرې به يې کولې او خپل تازه مانا دار، پند لرونکي شعرونه او نظمونه به يې ولسونو ته اورول. په کوم مجلس او جرګه کې به چې نوموړي ګډون درلود ولسونه به دده خبرو، بيان او شعر اورېدو ته انتظار کاوه، چې څه به وايي. د قران شريف ترجمه او تفسير باندې ښه پوهېده، ګلستان، بوستان، پنج ګنج، فقه، ميراث صرف او نحوه او نور ډېرر مثمر کتابونه يې لوستلي وو او نورو ته يې تدريسولی شول.

نوراحمد دين ملنګ د وخت د پوهو استادانو او ديني عالمانو ډول ډول نور کتابونه هم لوستلي وو او بېرته يې د يو رسېدلي استاد په توګه شاګردانو ته تدريس چارې مخکې وړلې. ډېر شاګردان يې لرل او د ښوونکي او استاد په توګه يې ډېر وخت عملي

چارې ترسره کړې وې، د نوموړي په ښوونه کې دده ماما ملک شهید نوراحمدخان میرزا ډېره توجه او پاملرنه کړې وه، چې هغه هم د خپل وخت یو پوهه، هوښیار میرزا ګڼل کېده. نوراحمد دین ملنګ یو ولسي شاعر او لیکوال و چې ډېر شمېر غوره شعرونه او نظمونه اوس هم ولسونه په مینه زمزمه کوي او ځینې یې لا په ترنم کې وایي. ډاکتر محمد نواز سانین د نوراحمد دین ملنګ د خور زوی دی او په خپله وایي: زه چې کله کوچنی وم په درېیم او څلورم ټولګي کې وم، نو ماته به زما ماما نوراحمد دین ملنګ شعرونه او ادبي ټوټې ولیکل ما به په ښوونځي او ټولګي کې په مینه ولوستل، زما د شعر لیکلو او نثر لیکلو یو نه هېرېدونکې خاطره ده چې زما راتلونکي ته زما ماما پاملرنه لرله او یادونه یې په ما لازم او ضروري ده. نوراحمد دین ملنګ په وطن او ولسونو باندې ډېره مینه او مهرباني درلوده او د وطن ابادي یې د ولسونو نېکمرغي بلله یو واقعي ایماندار او مجاهد په توګه یې د جهاد په کلونو کې برخه درلوده او تل به د نماینده او د یو استاد په توګه ولسونو دده نوم په درنښت یادوه.

د نوموړي لیکوال او شاعر څخه څه اثار موږ ته نه دي پاتې شوي زه د مرحوم ملنګ جان کور ته ورغلم او باوري وم چې ډېر ناچاپ شعرونه او لیکنې به یې په کور کې وي، د هغه مېرمن راته وویل زما خاوند د ناروغۍ په سخت وخت کې وویل چې زما ټول شعرونه او لیکنې انتقادي شکل لري زما د یاداشتونو مکمل بکس به د

سین منځته واچوئ چې وروسته يې په کتلو رانه څوک خفه نه شي ما د هغه خبره ومنله او ټول بکس مې د هغه سین ته واچاوه!

ددې خبرې په اورېدو زيات پرېشان شوم او حيران پاتې شوم، کاشکې د هغه څه ليکل شوي اثار مونږ ته په لاس راغلی وای خو دا کار ونه شو.

نوموړی پر (۱۳۷۲ل) کال د ناړۍ په کلي کې ددې فاني نړۍ څخه خپلې سترګې د ابد لپاره پټې کړې او د ناړۍ په فقيراباد هديره کې خاورو ته سپارل شوی دی.

# د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنه

ددې ادبي او فرهنګي ټولنې اساس پر (۱۳۷۲ل) کال د وري میاشتې پر (۱۵) نېټه ایښودل شوی دی، د وطن په هر لوري ددې ټولنې بنسټ کېښودل شو، چې د وطن په غېږه کې د ولسونو ځوانانو په منځ کې د ناخوالو د حل لپاره ځوانان او روښنفکران په افغاني مسوولیت سره چمتو شي او د وطن د ولسونو دردونه د وطن د ولسونو غوښتنې په ادب سره ځوانان خپلو کړېدلو ولسونو ته وړاندې کړي.

ددې ټولنې په لارښوونه د ولسونو په منځ کې د ولسونو مشرانو قومونو او ځوانانو سره ډېرې ادبي غونډې، مشاعرې او نور په زړه پورې پروګرامونه په بریالیتوب سره ترسره شو. ددې ټولنې غړو د دیني عالمانو او نورو باتجربه مشرانو په مشوره د ولسونو د ارمانونو لپاره هنري، ادبي او فرهنګي محفلونه او درنې غونډې جوړې کړې دي.

ددې ټولنې په لارښوونه په ښوونځیو کې د لایقو شاګردانو او لایقو ښوونکو د ستاینو لپاره ادبي غونډې جوړې شوي او د قومونو مشران او د کلو ځوانان دغسې غونډو لپاره غوښتل شوي دي.

ددې ټولنې په زیار د ځوانانو لپاره د دوکلام څخه د مرکز کونړ پورې د ځوانانو لپاره د سپورت په زړه پورې ټورنمنټونه څو څو ځل

پروګرام، ترتیب او عملي شوي دي، په دې لوبو کې ځوانانو په مینه اوشوق ګډون کړی او د سپورت مینه وال په سلګونو تنه د ننداري شاهدان دي او ځوانانو د سپورت په بېلابېلو لوبو لکه، والیبال، کرکېټ، ډبره غورزول، د پړي کشکول او داسې نورو لوبو کې ګډون کړی دی. ددې ټولنې د مشرتابه له خوا د سپورت مخکښ ځوانان خصوصاً لوبغاړي د سوغاتو ستاینلیکونو پواسطه تشویق شوي دي. د ملي ارمانونو ادبي ټولنې د ښوونځیو د شاګردانو د ادبي او فرهنګي تندې د ماتولو لاره په ښوونځیو کې مشاعرې او غونډې جوړې کړې دي. داسلام د مبین دین زده کوونکو ته چې اکثره یې ځوانان او تنکي هلکان دي د هغو د تشویق لپاره یې هلې ځلې کړي دي او د قران عظیم الشان د تلاوت په زړه پورې مسابقې یې په لاره اچولي او په دغو مسابقو کې همغه خوږو ځوانانو ته برخه ورکول شوې ده، چې د قران شریف حافظان یا قاریان وو.

ددغسې په زړه پورې غونډو د ښه او ډېر درنښت په خاطر دیني عالمانو ته د غونډو د ګډون لپاره بلنه ورکړ شوې ده چې لایقو قاریانو ته درجه بندي وکړي او دیني عالمان او ځوانان قراني بلبلان په سوغاتونو او ستاینلیکونو سره ستایل شوي. دوه کاله درمخه د ناړې په مرکزي جامع جوماتت کې د ټولنې له خوا یوه درنه لویه غونډه جوړه شوه چې د سیمې ځوانانو او دیني عالمانو برخه لرله چې د دیني عالمانو او د ټولنې د مشرانو په ارزیابۍ کې یو تن مولوي قاري صاحب محمدنواب چې پنځه زامن یې هم د قران

شریف حافظان دي په ارزیابۍ کې لومړی مقام او قاري صاحب فضل مالک دویم مقام او نور قاریان په ترتیب سره درجه بندي شو او ټولو ته سوغاتونه د دیني عالمانو په لاسونو ورکړل شو.

د ملي ارمانونو د ټولنې له خوا د نشه یي توکو په ضد څو څو ځلې غونډې شوي او د نشه یي توکو په ضد د نشه یي توکو د استعمال خطرناکه ناروغي او په ټولنه کې زیانونه ځوانانو ته څو څو وارې بیان شوي دي او ځوانانو ته د نشه یي توکو د استعمال په ضد په زړه پورې تجربه شوي منفي عوامل په ډاګه شوي او ښه نتایج ترې لاسته راغلي.

ددې ټولنې په لارښوونه د خوږ او لرغوني وطن افغانستان ملي او تاریخي ورځې تجلیل شوي او دغه درنو محفلونو ته د قومونو مشران او ځوانان بلل شوي، ددې ټولنې په هلو ځلو په سیمه کې ددې جنتي خاورې د ساتلو لپاره په ولسونو کې د سولې او امنیت د ټینګښت لپاره او ددې خاورې او ولسونو د ارام او نېکمرغه ژوند د دښمنانو د شېرو په بربنډولو کې پوره پوره کارونه ترسره شوي او روان دي، د ملي ارمانونو ادبي ټولنه په سیمه او هېواد کې د غونچه مجلې په نامه یوه محلي مجله هم کله کله چاپ او نشروي او په زړه پورې مضامینو په لرلو سره ددې مجلې مینه وال او خوښوونکي له حده زیات دي.

د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنې بنسټ ایښودونکی ددې خاورې د مینې پتنګان هر یو ډاکتر حاجي محمدنواز حقیقت

سانین، استاد حاجي غلام الرحیم، استاد حاجي شفیق الله مشفق او شکیب الله سانین او نور ګڼ شمېر ادبي او فرهنګي ځوانان دي.

دا چې د ګواري ولسونو لپاره د ملي ارمانونو ادبي او فرهنګي ټولنې تر (۱۳۷۲ل) کال راپدېخوا ادبي او فرهنګي کارونه په عملي توګه ترسره کړي دي او د ټولو افغانانو د پیوستون او د ادب او فرهنګ د پراختیا لپاره کار کوي، دا یې اساسنامه ده:

## لومړی فصل
## عمومیات

لومړۍ ماده: ددې ټولنې نوم د ملي ارمانونو فرهنګي ټولنه چې په انګلیسي (National Desires Cultural Association).

دویمه ماده: ټولنه یو دایروي نښان لري، په منځ کې قلم او دواړو خواوو ته یې کتابونه چې مانا یې د علمي سطحې لوړوالی ادب او د فرهنګ مخې ته ورړل دي.

درېیمه ماده: دا ټولنه یوه ازاده خپلواکه ادبي او فرهنګي ټولنه ده چې په هېڅ یو سیاسي ګوند او ډلې پورې تړل شوې نه ده، ددې ټولنې غړي په خپله خوښه په نورو ګوندونو او اجتماعي فعالیتونو کې ونډه اخیستی شي.

څلورمه ماده: دغه ټولنه د خپلو خواخوږو او مینه والو هر ډول بې قیدو شرط اعالي او مرستې په درنښت سره مني.

پنځمه ماده: ددې ټولنې مالي پانګه د مالي په لاس کې ده او د مالي لګښت يې ددې ټولنې د مشرتابه له خوا د اجرا وړ دی.

شپږمه ماده: د ټولنې د رهبري شورا کولی شي د وخت د شرايطو د تحليل سره سم په اساسنامه او د ټولنې په اهدافو کې بدلون راوړلی شي.

اوومه ماده: ددې ټولنې رهبري شورا خپل مالي چارې او لګښتونه د ټولنې د غړو د اعالي او ګډون ونډې او مرستو په ذريعه او فرهنګيالو او ملي شخصيتونو مرسته د بشر دوستانه ملي ارمانونو د اهدافو په خاطر ترتيب او تنظيموي.

اتمه ماده: د ټولنې رهبري په پنځو کلونو کې يو ځل د ټولنې انتخابات کوي او د ټولنې غړو ته خاص او مشخص وضايف ورکوي، د ټولنې رئيس او د رهبرۍ د عالي انتخاباتو له لارې غوره کېږي او د ټولنې غړو ته د چا او د ښه تنظيم لپاره د يو کال لپاره دندې سپارل کېږي.

نهمه ماده: په دې ټولنه کې هغه کسانو ته چې ملي ګټو ته يې زيان رسولی وي او لاسونه يې د چا په وينو سره شوي وي، د شموليت حق نه ورکول کېږي.

لسمه ماده: د ټولنې مرکزي دفتر د اوس لپاره د نارۍ د ولسوالۍ مرکز چې د کونړ ولايت کې موقعيت لري کار او فعاليت کوي، خو د ټولنې د رهبرۍ شورا د پرېکړه له مخې کېدی شي چې مرکزي دفتر کابل يا جلال اباد ښار ته انتقال شي.

# دويم فصل
## اهداف

يوولسمه ماده: د ملي ارمانونو د فرهنګي ټولنې ملي سپېڅلې دنده چې د ګران افغانستان د دولت د لاټينګښت لپاره دوامداره ډول سره کار او فعاليت ترسره کړي او د ټولنې دنده ده چې په ادبي او فرهنګي چارو کې د ملي پيوستون لپاره عملي کار او فعاليت ترسره کړي.

دولسمه ماده: ددې ټولنې دنده ده چې د وطن په غېږه کې د جنګ جګړو په ضد او د هر ډول ځانځانی په ضد د ټولنې او ملي امن لپاره ادبي او فرهنګي فعاليت وکړي.

ديارلسمه ماده: ټولنه د بشري حقوقو د جدي رعايت لپاره فعاليت کوي او د هر ډول نژادي او سمتي توپير په ضد فعاليت کوي او د ښځو د حقوقو د مکمل رعايت لپاره جدي او عملي کار کوي.

څوارلسمه ماده: د ټولنې اساسي او اصلي دنده ده چې د ګران وطن افغانستان ادبي او فرهنګي چارو ته وده ورکړي او د ژبو او فرهنګ د لاپرمختګ لپاره عملي هلې ځلې ترسره کړي.

پنځلسمه ماده: ټولنه دنده لري چې هېواد د ملي او تاريخو ورځو او ملي شخصيتونو د خاصو ورځو کې د تجليل لپاره ادبي او فرهنګي غونډې جوړې کړي او د ملي احساس سره ادبي غونډو سيمينارونو او مشاعرو ته سازمان ورکړي.

شپاړسمه ماده: ټولنه د ملي احساس سره سم د هېواد د فرهنګ او ادب د لاپرمختګ په منظور په بېلابېلو ژبو کې تحقیق ترسره کړي او په دې برخه کې رسالې، جریدې، مجلې او کتابونه چاپ او خپاره کړي.

اوولسمه ماده: ټولنه دنده لري چې د بې سوادۍ په ضد چې د هېواد په غېږه کې یوه خطرناکه ناروغي بلل کېږي، مبارزه وکړي او په کلو او بانډو کې د بې سوادو نارینه او ښځو لپاره د سواد د زده کړې کورسونه تنظیم کړي.

اتلسمه ماده: ټولنه دنده لري چې د ښوونځیو شاګردانو سره خصوصاً ماشومانو سره عملي مرسته وکړي او په ښوونځیو کې د مسوولینو په مرسته ادبي غونډې مشاعرې او فرهنګي چارې تنظیم او عملي کوي.

نولسمه ماده: ټولنه دنده لري چې د نشه یي او مخدره موادو په ضد فعالیت وکړي او ماشومان او ځوانان د دغه ناوړه اعمالو وژغوري او د ښوونې او روزنې چارو ته یې تشویق او پام وګرځوي او د بېوزلو او معیوبو ماشومانو او ځوانانو سره مرسته او پوره پاملرنه وکړي.

## درېیم فصل
## تشکیلات

شلمه ماده: ټولنه (۷) کسیزه شورا چې په ټولنه کې تر ټولو باصلاحیته او لوړه شورا ده په میاشت کې یو ځل غونډه کوي خو د ضرورت په وخت کې کولی شي چې غونډې جوړې کړي.

یوویشتمه ماده: د ټولنې اداري تشکیلات دادي:

۱- د ټولنې رئیس
۲- د ټولنې مرستیال
۳- د ټولنې اداري مسوول او مرستیال
۴- د ټولنې مالي مسوول
۵- د ټولنې د روابطو مسوول
۶- د ټولنې منشي
۷- د ټولنې فرهنګي مسوول
۸- د ټولنې د اطلاعاتو مسوول

## څلورم فصل

## د غړیتوب شرطونه

دوه ویشتمه ماده: ددې ټولنې غړیتوب هغه څوک ترلاسه کولای شي چې:

- د افغانستان تابیعت ولري
- عمر یې له (۱۵) کالو څخه کم نه وي
- د هر ډول ژبني، قومي تعصب څخه پاک وي
- د وطن د ادب او فرهنګ سره مینه ولري
- د ټولنې اساسنامې سره ټکر کې واقع نه وي

- په ټولنه کې د شمولیت لپاره (۵۰) افغانۍ پانګې ته ورکړي او په میاشت کې (۱۰) افغانۍ ټولنې ته ورکړي.

# پنځم فصل

د ټولنې څخه د خارجېدو شرطونه:

درویشتمه ماده: د پوره لاربښوونې او توصیح څخه وروسته د خارجېدو شرایط:

- د ټولنې د نوم څخه ناوړه ګټه اخلي
- د ټولنې د اصولو سره سم چلند نه کوي
- د ټولنې غونډو ته نه حاضرېږي
- د ټولنې دندې نه اجرا کوي
- د ټولنې شمولیت ونډه نه ورکوي

څلویښتمه ماده: د ملي ارمانونو فرهنګي ټولنه ددې اساسامې او اهدافو په رڼا کې چې د (۵) فصلونو او څلویښت مادو کې ترتیب او د رهبرۍ شورا له خوا تصویبپ شوه خپلې ادبي او فرهنګي چارې په مینه په مخ وړي. (ومن الله التوفیق)

دا لیک په ګواري ژبه د ګواري- پښتو قاموس لپاره د سریزې په نوم لیکل شوی.

## یه که ته باتی

ګوار قام، لو او لو که زینته اریایي قام تنه، پاغیزه الله پاکی دنیا کی لولو، قامونه پیدا کیری توس خو سانین باتی وی تینی چی سپری دنیا کی انسانان بابا ادم(ع) نه زوزات ته نیت یه قام واری قامه رتی، کریک اضافه امتیاز نه لري مان، چټ انسانان مساوی او یه شان حقوق لري میت، کره کانخه کره لوتره کره پیله کره وزله، کره شرقه، کره غربه، کره شماله کره جنوبه تانو زینتی لیک تیر کی میت. چټ انسانان کره یه نامی کره بی واری نامی هر کره تانو نصب او نژادی یاد بی میت.

امنه منطقا کی بی لولو قومونه ته نیت لکه:

ګوار، منګول (چترالی)، ګجر، نورستانی، اوګان، عشریتی او واری لو قومونه نام ته نیت، قامونه مونه شخصی نظریی دوقسم ته نیت:

۱- زینته قام

۲- میسن قام (پی سن قام)

الف- زینته قام سی قام تنه چی تانوزیب تانو کولتور ساتون بو او تانو زیب تانو کولتوره ساتی که شه خی فرهنګی او کولتوری لحاظی سیاسی لحاظی اقتصادی لحاظی ژو په میت سره زه میت

پودمی دی میت یه واریا. اس لهی نونگی زمانا منځی لهٔ پی میت
پودمی څوی تی میت او هر دیس لپله نتیجه گومیت.
ب- میسن یا (پی سن قام): میسن قام سی قام تنه چی تانو زیب
تانو فرهنگ کولتور وړون بو او واری کسنه زیبی وارینه کولتوری



څووت بو څه قامانگی میسن قام جه میت او کی افتخار نه لری
میت، قام کی شی تنه؟
قام سی تنه چی تانو زیب تانو کولتور وده تیمان کره چې تانو زیب
او کولتور نه لری میتی څووانگی قام نه جه میت. کین چی تانو
زیب او کولتور وړون بو قامی حیثت او قامی اعتبار نه لری میت او
کریک قامی چی تانو قامی خصلته نه ساتون بوڅه قامه نه عزت

سوم او ساګه بیمان اوسی قام هر کول شوته مالوته ګیری مان تیبه او واری قامونا لزی شوتا دره کی نه به میت.

امه ګوار، تانوا، مستقیل قام ته نیک او تانووا لومیشتی لو کوملی زیب لری میک، زیب الله پاکی امنه قامانکی ډل نعمت لهی توس او این ډل نعمت یی شکر پکار تنه.

نون سپری دنیا کی (۳۰۰۰) پینه لوزیبی انسانان باطی کی میت اسوچټ، زیب نامه کی (۱۰۰) زیبی دنیا نه خلک لیک او لوست کی میت، واری چټ زیب نام فقط او فقط یکولی باتی کی یک شه څی ته نیت او چټ دنیا کی (۲۵) رقم خط لیکان دیمان زیات زیپ نام خط لیکیک که شه څی حروف (الفبا) نه لری میت دنیا کی چې کته زیب نام ته نیت چټ زیب نام یه شان ته نیت یه زیب واری زیبه پینه بهتری نه لریمان.

مونه لومیشنه ګنداله ګواربلیا یه ناماو!

که ته باتی ضرور ته نیت چی لیکی میم میشته ګوار تعلیم یافته ځوانان اصلی باتی وی تینی چی زیبه کی فرهنګی نفوذ لو اهمیت لری مان او هر مانوش (انسان) تانو جاینه زیبی یاد بی مان او تانو زیب منزی خاص پیوند لری مان دومه باتی وی تینی چی دنیا کی هر زیب واری زیبه پینه سوچه نه تینی هر زیب واری زیبه منزی ټکه ځی تینی او کریک زیب چی لیکان نه ګی بو. نشرات نه لری مان بوی بو. سی زیب سمندره نه اووه کی لاهو بی مان کریک زیب چی قامه کی جوان ګی بولیکان ګی بو نشرات کیروس بوسی زیب لولو زینتی

کیلیکه نی، چانس لریمان نوری چټ قلم وده ګوار ځوان نسل این باتی یی پرزیتیو چی تانو زیبی باتی کیراوه تانو زیبی خط لیکاوه غم او شادی که تانو زیبی تانو کولتوری پروګرام ژوپاوه ضرور باتی تینی، کره چی تانو زیب تانو کولتورانکی اهمیت قایل نه بوت بو تانو جای باب او تانو قامی رسالته کور پاتو، کیراوه تنه او بس؟

ګوراباتی لومیشتی لوکوملی زیب تینی ګواری زیبی باتی کیراوه مجلس ژوپاوه جه واوه. لامه کی محفله کی دیره او حجرا کی فخر نی باتی تینی.

لام مونه ولس مونه خو افسوس چی مونه ملا جماعته کی اوګان باتی یا اردو باتی یا منګول باتی یی نصیحت یا ترجمه کیریمان یا تبلیغ کی مان بیدار قام تانو جماعته تانو لامه تانو محله کی تانو زیبی چټ مسائیله تشریح کی میت زیب وده کی مان پودمی دی مان او که لام مونه جماعت مو نه محل مونه غم مونه شادی مونه واری زیبی تقریر او تشریح تانو زیب او تانو قامه اوپ کیراوه تنه او تانو زیب منزی جفا تینی؟

نون چی مونه موخه کی ګوار ګاشتی ګواری لغتنامه اردو او اوجرګان باتی لوبی سن کتابی شکلی ته میم لوزیات فخر کی میم هر پته تانو ایخینی بالی میم او لو خوشال ته نیم او هر ګواری کلیمه جیکی مونه هړه میش بی مان او مونه ارماننه کاراکی انشا الله پوشه نام انساوه کی میت کریک قلمی، علمی ادبی فعالیت چی نوری شروع بی تنه ګواری قامه نه تاریخ ګواه تنه چټ قلم وده ګواریان حق

لري میت تانو زیبی ادب او کولتور شه خي فعالیت کیریتیو سباره نونګه نسل می ره تی فخر کیمان تیته.

ارنو لامه کی چی که ته زن نوجوانان لوبو سی «القلم» انجمن ژوپی تون تانو زیب تانو فرهنګ او تانو قامه نه حیسته ګدال کی میتی لوډل فخره نی باتی تینی نون «۲۱» قرنه کی ښوی ته نیک نوری میس کین ګواری قامنه ادب او کولتوره شه خي کتاب لا کی چی کین ګوار ګاشتی یه پته کین نه لیکی تون، سون او روپ، ګواری ژبه ښنګه ولیکو دو اثر لیکان دی ته نیت او سون کیخي ارنو لامه کی کاړاوه.

ادب او فرهنګه نی پنته کی ګواری زیبه شه خي لوزیات افتخارات لري مان نوری چی ګواری قاموس ترتیب بی تنه کین چی زحمت کاړیتونی ډله الله پاکنه درګاه کی ښوانکی اجرونه کوخي میم او قامنه ادبی او فرهنګی پنته کی ښووانکی لولو رحمتونه کوخي میم.

«سانین»

# نورستان او کوهستان

نورستان د کونړ ولایت شمال لوید یځ ته یوه ښکلې، حیرتناکه او سمسوره سیمه ده، تازه په خپل کتاب «ریشه های تاریخی و فرهنگی» کې داسې لیکي: «نورستان امروز در گوشه شرق کشور ما بین (۳۴) و (۳۶) درجه و (۳۰) دقیقه عرض البلد شمال و بین (۷۱) و (۳۰) درجه طول البلد شرقی واقع بوده و دارای ساحه تقریباً (۵۰۰۰) میل مربع است.

در غرب توسط دریای پنجشیر، در شرق ذریعه سلسله کوهی که دره کنر، باشگل را از چترال جدا می سازد. درشمال توسط سلسله جبالی که حد فاصل بین منابع تشکیل ابهای جاری و دریاهای نورستان به طرف جنوب به منجان و بدخشان به طرف شمال به دریای آمو میشود و درجنوب توسط دریای کابل محاط گردیده است اکنون در حاشیه اخیر جنوبی نورستان ساحه لغمان مرکز که نوسیندگان گاهی به نام نورستان سفلی هم یاد کرده اند. قبایل پښتون سکونت دارند.»

د نورستان د خلکو سره ګواریان د پیړیو پیړیو راځنې ډېر نږدې د وروری او اریایي توب او د وینې د شریکوالي اړیکي لري او دواړه ځانونه د (الینا) د لوی کورنۍ اصلي کورنۍ بولي. نورستان او کوهستان دواړه ځنګ په ځنګ پراته دي او د ژوندون ټول وختونه یې په ګډه تېر کړې دي. کلتوري او قومي ټینګي اړیکي لري او یو

بل سره په ګاونډ کې د زمانو راهیسې ګډ اوسېدلي دي. نورستان ګواریانو ته (ستره) وایي او خپل قام او خپل ورونه یې بولي او ډېر احترام او قدرداني ورته کوي، د نورستان خلک خصوصاً پخواني مشران په شجره او نسبدارۍ مسایلو کې ډېر ښه پوهېږي.

د کوهستان او نورستان خلک ډېرې ښې اړیکي لرل او لري یې. د ثور د انقلاب وروسته پر (۱۳۵۷ل) کال ختیځ نورستان کې د افغانستان د دولت او رژیم په ضد جهاد شروع کړ او په ټول افغانستان کې د لومړي ځل لپاره د جهاد غږ د نورستان ولایت څخه پورته شو او په دې لاره (جهاد) کې ډېره مېړانه ډېره قرباني د نورستان ولسونو ورکړې ده. په ختیځ نورستان کې دوه ولسوالۍ دي چې یوه د برګمټال او بله د کامدیش ولسوالي ده دواړه بېلا بېل قومونه دي او نور قومونه هم دلته ژوند کوي خو په لویه کې ټول نورستاني دي.

د کامدیش د ولسوالۍ د مشرانو او د برګمټال د ولسوالۍ د مشرانو د انقلاب او د هجرت او د جهاد په کلونو کې ډېر زیات اختلافات د ځینو مسایلو په اړه لرل چې په کامدیش کې ولسي قدرت او اختیارات او د ولسونو ملاتړ د مولوي صاحب صادق په لاس کې و چې نوموړی یو لوی دیني عالم او د کامدیش د ولسونو سرلښکر و او د برګمټال د ولسونو مشر او سرلښکر د مولوي افضل په نوم یادېږي.

د دواړو مشرانو او ولسونو د اختلافاتو په وجه باندې د جهاد او مهاجرت په کلونو کې ډېر زيات خطرناکه او تاوده جنګونه ترسره شو او يو بل ته به يې لارې نيولې، ددې جنګونو څو څو کلونه تېر شول. د کوهستان د مشرانو له خوا د نورستان د لانجو او جګړو او خپل منځي جګړو د بنديز او دواړو ولسواليو مشرانو او ولسونو د پخلاينې په منظور يوه جرګه جوړه شوه چې د کوهستان قام لاندې مشرانو په کې برخه او ګډون درلود.

۱- ملک رحمت ولي د نشه ګام
۲- ملک ميرزا نورمحمد خان د ناړې
۳- ملک عبدالخالق د ناړې
۴- ملک رحمت نور د ناړې
۵- ملک عبدالباقي د ناړې
۶- حاجي محمدعثمان د ناړې
۷- حاجي لعل زمان خان د ناړې
۸- حاجي سيدانشاه د ناړې
۹- نوراحمددين ملنګ د ناړې
۱۰- حاجي عبدالمتين د ناړې
۱۱- استاد پيرمحمد خان واحيدي د ناړې
۱۲- حاجي عبدالمتين د ناړې
۱۳- عبدالصمد د ناړې
۱۴- شاه ولي د بريکوټ

۱۵- سلطان د بریکوټ
۱۶- ملک محمدجان د نارې
۱۷- حاجي معلم د ساو

په دې لویه جرګه کې نورو ډېرو درنو مشرانو هم برخه لرله، چې د لوی خدا(ج) په توکل د پېښې شوې درنې فتنې د هوارې لپاره چې د دوه لویو قومونو په منځ کې جوړه شوې وه او یو بل ته ګواښونه او مورچلونه جوړېدل د یو بل د مرګونو لپاره لارې ګودرې کتل او د مړو شمېر یې دواړه اړخه (۸۰) تنو ته رسېدلی و.

د جرګې مشران او سپین ږیري د کامدیش او برګمټال ولسوالیو ته لاړل او د دواړو طرفینو څخه د روغې جوړې لپاره په ډېره اسانۍ سره واکونه او اختیارات د لانجو او د جګړو د هوارې په خاطر تر لاسه کړل ډېرې شپې یې په کامدیش او برګمټال دواړو ولسوالیو کې تېرې کړې، ځکه چې دا ډېرو کلونو جنګونو او دښمنۍ ته د پای ټکی کېښودل هم څه ساده خبره نه وه، بلکې په دې مسایلو کې ډېرې ستونزې وې، د جرګو کسانو څو څو ځل دواړه ولسوالیو مشرانو د خبرو لپاره د لانجې د هوارې لپاره تګ راتګ وکړ چې په نتیجه کې د کوهستان د جرګې ګډون کوونکي بریالي شو چې د دواړو قومونو ترمنځ غوڅه پرېکړه وکړي او مشران د دواړو قومونو یو د بل سره مخامخ کړي.

پر (۱۳۶۴ل) کال د کوهستان مشرانو د جرګې ګډون کوونکو خپله فیصله دواړو قومونو مشرانو او ولسونو ته واوروله، چې د

دواړو ولسونو مشرانو د تائید او قبول وړ وګرځېده. د جرګې مشرانو څو غوایان او ګڼ شمېر مشران له ځانه سره برګمټال ته او د برګمټال څخه کامدیش ته راوړل او د کلونو دښمني او خفګان په وروری او خوښی بانديې د مشرانو د هلو ځلو په واسطه منځته راغی او دواړو قومونو مشرانو یو بل ته د پوره درناوي او د قتلونو د معافی او د وروری د ټینګښت ډاډ ورکړ او د جرګې ګډون کوونکو د دواړو فریقو څخه خوښي ښکارنده کړه او د دواړو قومونو د مشرانو د انسانیت او اعتماد او باور له وجې چې د کوهستان مشرانو ته ورکړی و ډېر خوښ و.

همدا راز کله چې د افغانستان استقلال او د چترال او د کونړ د څلورمې جبهې په دوره کې هم د کوهستان مشرانو د لنډي سین څخه نیولې تر دېوانه بابا پورې د خپلو نورستانیانو ورونو د ستونزو او اختلافاتو د له منځه وړلو په منظور په جرګه ختیځ نورستان ته تللي وو په همغه زمانه کې هم د کوهستان د مشرانو د جرګې ډېر زیات درناوی شوی و او د کوهستان ولسونو د مشرانو مشورې یې په مینه منلې او اورېدلې وې. اوس هم د نورستان او کوهستان خلک د لرغونو زمانو راهیسې ډېرې ټینګې د وروری اړیکې او یو بل ته درنښت ورکوي. پته دې نه وي چې ذکر شوې د برګمټال او کامدیش جرګه ډېر وخت دوام درلود خو په کامیابی سره پای ته ورسېده.

## عبدالباقي فضلي:



عبدالباقي فضلي د ناړې د فضل الرحيم زوی او د مريد لمسی او د غلام سيد کړوسی دی. غلام سيد د خپل وخت يو مشهور ديني عالم تېر شوی چې نوم يې تراوسه مشران په مينه يادوي. فضلي پر (۱۳۲۷ل) کال د ناړې په کلي کې سترګې نړۍ ته غړولي دي. پر (۱۳۴۴ل) کال د ناړې د ابتدائيه ښوونځي څخه فارغ شوی او بيا د ننګرهار په عالي دارالمعلمين کې شامل شوی چې (۱۳۵۱ل) کال يې د فراغت سند ترلاسه کړی دی.

نوموړی د اول ټولګي څخه تر دولسمه پورې عمومي اول نومره پاتې شوی، ډېر ذهين لايق او اګاه شخصيت دی، پوهه، لايق، باتدبيره با اراده استاد دی چې کلونه کلونه يې د ولسونو د اولادونو په روزنه کې تېر کړي. نوموړی د کامديش د ولسوالۍ ولسوال هم پاتې شوی دی. د (۱۳۵۵-۱۳۵۷) پورې د کندوز ولايت د امام صاحب ولسوالۍ کې د ښوونکي په توګه دنده اجرا کړې ده.

استاد فضلي يو وخت د قلندر تخلص کاوه، د ډېر ښه قلم خاوند ګڼل کېږي. پر (۱۳۶۰ل) کال يې د جهاد لپاره چترال ته هجرت وکړ او د مجاهدينو د اولادونو د ښوونې او روزنې په کار کې يې ډېره ونډه اخيستې، نوموړی يو پېژندل شوی د مجاهدينو قوماندان هم پاتې

شوی او د وطن د دښمنانو سره او د روسانو سره په مخامخ جګړو کې جنګېدلی دی. څو څو ځله د وطن د د ښمنانو په بېلابېلو جوړو شویو دسیسو کې زندانونو ته تللی دی. نوموړی یو زیرک، هوښیار، وطنپرست شخصیت په توګه ولسونه پېژني او ډېر درنښت یې کوي.

## الحاج عبدالقاهر (فولاد):

الحاج عبدالقاهر فولاد د حاجي محمد حسین زوی د سلطان جان لمسی او د علي جان کړوسی دی، په خته کوهستانی او پر (۱۳۳۵ل) کال یې د ناړې په کلي کې سترګې نړۍ ته غړولې دي.

پر (۱۳۵۳ل) کال د اسمار د عالي لېسې څخه فارغ شوی، پر (۱۳۵۷ل) کال د ننګرهار د عالي دارالمعلمین څخه په اعلی درجه د فراغت سند اخیستی او د ښه استعداد او لیاقت په اساس چې لري یې د کامدیش د ولسوالۍ د نجونو د لېسې د مدیر په توګه یې دنده اجرا کړې ده.

پر (۱۳۶۰ل) کال د جهاد په منظور چترال ته مهاجر شو او د مجاهدینو او مهاجرینو په کمپونو کې د یو لایق استاد په توګه د ولسونو او مهاجرو د اولادونو د ښوونې او روزنې په برخه کې فعال رول واخیست او د استاد په توګه یې دنده پیل کړه.

ده به تل مهاجرو او مجاهدینو ولسونو ته د علم او پوهې او د ښوونې او روزنې د ارزښت په باره کې خپلو ولسونو ته لارښوونه

کوله او ډېر تنکي او نوي ځوانان يې د پوهې د حاصلولو لپاره ښوونځيو ته جذب او شامل کړي.

ده به تل ولسونو ته ويل چې د علم او د پوهې پرته ولسونو او وطن ته د خدمت جوګه نه شو جوړېدلی. فولاد صيب يو لايق، ويښ، زيرک او د ژور فکر لرونکی مسلکي استاد دی چې کلونه کلونه يې د هېواد د بچيانو په روزلو کې فعاله ونډه اخيستې ده.

فولاد صاحب د هجرت په کلونو کې په چترال کې د ښوونې او روزنې په برخه کې په لوړو پوستونو کې بېلابېلې دندې په هوښيارۍ او سلامتۍ سره ترسره کړي، او ډېر زيات شاګردان يې روزلي دي. نوموړی د نارې په عالي لېسه کې د يوه لايق او مسلکي ښوونکي په توګه دنده اجرا کړې ده.

فولاد صاحب يو خانداني شخصيت دی، په ولسونو او قومونو کې د ډېر نفوس او محبوبيت خاوند ګڼل کېږي. د (۱۳۸۲ل) کال راپدېخوا په هېواد کې د ختيځې حوزې د ښوونې او روزنې په چارو کې لوی لاس لري او د ننګرهار، لغمان، کونړ او نورستان په ولايتونو کې ښه کارونه ترسره کړي دي.

فولاد صاحب د افغانستان د اساسي قانون د جوړولو په لويه جرګه کې د چترال د مهاجرو عمومي نماينده پاتې شوی چې دا د نوموړي د لوړ شخصيت او د ولسونو سره د محبوبيت ښکاره ثبوت دی.

د افغانستان د جمهوري رياست په ټاکنو کې د کونړ ولايت (N.F.C) پاتی شوی دی. د افغانستان په لومړي پارلماني ټاکنو کې د کونړ ولايت (D.F.C) مسوولیت په غاړه درلود. نوموړی په ډېرو علمي سيمينارونو کې برخه اخيستې او د مهاجرت په کلونو کې هم په علمي سيمينارونو او غونډو کې ګډون کړی دی او د (C.H.W) او (P.M.N) کورسونه يې ويلي دي او د نورو بين المللي پروژو علمي او ښوونې او روزنې په چارو کې ورته ډېر کورسونه ويلي او د بلجيم هېواد د ښوونې او روزنې د نوي ميتودونو علمي کورسونه او (S.M.C) د ښوونځيو اداري کمېټې د رئيس په توګه عملي کارونه کړي دي. د مهاجرت په وختونو کې يې د ولسونو په غوښتنه او ملاتړ ډېر وختونه قوماندان پاتې شوی، د جهاد په مورچلونو ګرځېدلی د وطن د دښمنانو او يرغلګرو په ضد يې د يادونې وړ کارونه ترسره کړي، له خلکو سره د مينې ټينګې اړيکي لري، په مېلمه پالنه کې ډېر مهربان دی.

فولاد صاحب د چترال په ضلعه کې د مهاجرو په کمپونو کې د سرمعلم او سوپروايزر د رهنما او تفتيش او د جرمني د موسسو له خوا (B.E.F.A.Re) څو کاله په دنده پاتې شوی.

نوموړی ورين تندی ډېر نېک عمل ولسي د ښو اخلاقو او په وطن او ولسونو مين زړه سواند علمي کدر دی او اوس د کاپيسا په ولايت کې د ښوونې او روزنې د چارو مشاور دی.

فولاد صاحب په پښتو، دري، کوهستاني، انګرېزي او چترالي ژبو پوهېږي د ښه تېز قلم خاوند دی دده د ډېر اوږد ژوند او بریالیتوب په هیله.



## غلام قادر (امید):

غلام قادر امید د غلام خان زوی د حضرت علي لمسی او د ګل سید کړوسی دی، په ختمه کوهستانی دی او پر (۱۳۳۵ل) کال د ناړې په کلي کې سترګې نرۍ ته غړولي دي، لومړنۍ زده کړې یې په خپل کلي کې سرته رسولي او بیا د کابل په ابن سینا په عالي لېسه کې او د اسمار د عالي لېسې له (۱۲) ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شوی لوړ تحصیلات یې د حقوقو په رشته کې د وخت د شوروي اتحاد د ریګا د جمهوریت په لاتویا په اکاډمۍ کې ترسره کړي دي او د خپلې اکاډمۍ لومړی درجه ډیپلوم یې د خپل لیاقت په اساس ترلاسه کړی دی. نوموړی د خپلې خوښې او علاقې له مخې ډېر کلونه د هېواد په بېلابېلو محلاتو او ولایتونو کې د ښوونکي په توګه دنده اجرا کړې ده او کله چې د لوړو زده کړو څخه د هېواد غېږې ته د یو مسلکي فعال افسر په توګه راستون شو، د کورنیو چارو په وزارت کې په تعدیل د خپلې رتبې پوځي رتبه باندې منل شوی او د بلخ په ولایت کې د امنیې قوماندانۍ په چوکاټ کې د بلخ د هوایي ډګر د امنیت د قوماندان او د بلخ د

ولایت د امنیتي زون د تصفیوي قوماندان په توګه دنده ترسره کړې ده.



نومـوړي د حیرتـان د ښـار د موسسو د امریت دنده هم ترسره کړې. کله چې په هېواد کې پر (۱۳۷۰ل) کال د ډاکتر نجیب الله رژیم سقوط شو او د تنظیمي جګړو دوره شروع شوه چترال ته مهاجر شو هلته هم نوموړي د مهاجرو په کمپ کې د ښوونکي او سرښوونکي دنده ترسره کړه.

امید صاحب یو مسلکي لایق، پاک باوجدان او د نېکو اخلاقو خاوند سرشار او هوښیار پولیسي افسر دی. نوموړی زیرک او باتحلیل او سنجیده او دورانديش فعال شخصیت دی په ولسونو کې د نېک عمل په اساس پوره محبوبیت لري او د ژوند د خوږو او ترخو شپو ډېر ښه باتجربه افسر او ښوونکی ګڼل کېږي.

امید صاحب په پښتو، دري، کوهستاني او روسي ژبو ښه پوهېږي او په رښتیا سره ډېر ښه قلم لري د لیکلو ډېر لوړ استعداد لري او د دفترداری او د محاسبې او د مدیریت په برخه کې په علمي توګه رسېدلی دی دده خپل شخصي مدیریت د ستاینې وړ دی او د مدیریت په برخه کې د ډېرې تجربې خاوند دی. د خپلو ملګرو او دوستانو سره همکارانو سره صمیمي او د اخلاقي او شفقت ژوند

کوي او اوسمهال امید د کونړونو ولایت د امنیې قوماندانۍ د اداري چارو د مرستیال په توګه دنده اجراکوي، نوموړی د ولسونو سره په موسکا او مهربانۍ سلوک لري. امید صاحب د خودخواه او ظالمانو او هیله ګرو ډېره کرکه کوي او د مظلومانو او بېوزلو ولسونو سره مینه لري، په ژوند ورته بری غواړو.

## انجنیر دین محمد:



انجنیر دین محمد د محمدغني زوی د عبدالغني لمسی د بریکوټ په کلي کې پر (۱۳۳۵ل) کال په یوه بزګره کورنۍ کې زېږېدلی دی خپلې منځنۍ زده کړې یې په بریکوټ کې پایته رسولې، د ښه لیاقت او نومرو په اساس پر (۱۳۵۱ل) کال د کابل ښار په ثانوي تخنیک کې شامل شوی او پر کال (۱۳۵۳ل) ددې مسلکي لیسې د تعمیراتو د څانګې څخه فارغ شو.

نوموړی د ډېر کوچنیتوب راهیسې یو ذکي، لایق، روښنفکر او د ټینګې ارادې لرونکی ګڼل کېږي، په خپلو درسونو کې یې ډېر زیات زیار او کوښښونه کول ټولو خپلوانو کلیوالو نوموړی د لیاقت په اساس پېژانده.

انجنیر دین محمد (۱۳۵۴ل) کال کې د فواید عامې وزارت په چوکاټ کې د نیمروز ولایت د (سنجش او براورد) د مدیر په حیث دنده اشغال کړه د خپل لیاقت او نوښت په اساس یو کال وروسته کابل ته تبدیل شو، د (۱۳۵۵ل) کال څخه تر (۱۳۵۷ل) کال پورې د ښوونې او روزنې د وزارت په چوکاټ کې د ساختماني ریاست د تعمیراتو په ریاست کې د انجیر په توګه دنده ترسره کړه.

انجنیر دین محمد یو زړور او مسلکي کدر په توګه د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د انجیر په توګه کارونه ترسره کړي دي. نوموړی د کابل په ښاروالۍ کې د پلان جوړولو او مهندسۍ په ریاست کې هم د یو فعال انجنیر پاتی شوی. انجنیر دین محمد په پښتو، دري او کوهستاني ژبو پوهېږي یو لایق او مسلکي کدر دی د ولسونو په منځ کې ځای لري او د نېکو اخلاقو په سبب په ولسونو کې محبوبیت لري په ختیه کوهستانی دی چې اوس هم د کابل په ښاروالۍ کې رسمي د انجنیر په توګه کار کوي. نوموړی فوق رتبه دی، د وطن د ابادۍ او د ولسونو د هوساینې ارمان لري او د ژوند په ډېرو ازمونونو کې د ټینګې ارادې په اساس سرلوړی دی.

انجنیر دین محمد ډېر زحمت کش او ژور او علمي شخصیت دی په ژوند ورته برکت او روغتیا هیله لرم.

## شهید ملک رحمن الدین:

ملک رحمن الدین مشهور په کوهستاني ملک یو ایماندار، غښتلی، زیرک په ولسونو مین او مشهور شخصیت تېر شوی دی.
نوموړی د افغانستان د خپلواکۍ په څلورمه جبهه کې چې د کونړونو ولایت شمال لویدیځ کې ناړۍ ولسوالۍ او بریکوټ کې موقعیت درلود یو پېژندل شوی قوماندان او مشر په توګه د وطن د ساتنې او د انګرېزانو په ضد د جهاد په دوران کې د چترال په جنګونو کې پوره پوره برخه لرله او ډېر مجاهدین یې د دغې جبهې د برې لپاره د سیمې د مختلفو سیمو او د ورځني جهاد مورچلونو ته بللي او نه هېرېدونکي خدمتونه او کارونه یې ترسره کړي دي.
ملک رحمن الدین په وطن او د وطن په ولسونو ویاړ کاوه او خپلو ولسونو ته یې د افغان مشر په توګه د انګرېزانو او د هغو د ګوډاګیانو په ضد د سرلښکر رول لوبولی دی او د ګوارو (کوهستاني) قام د مشر په توګه د کونړ خانانو د چترال شهزادګانو او د نورستان مشرانو او د دیر نوابانو نوموړي ته درناوی کاوه او د یو ولسي مشر په توګه په سیمه او منطقه کې د اسمار نه تر دوکلام او شاوخوا درو بانډو ولسونو پېژندل شوی مشر ګڼل کېده.
ملک رحمن الدین د خان میرزمان خان سره چې د خپلواکۍ د جبهې د عمومي مشر دنده یې په غاړه درلوده او د غازي امان الله خان سره یې نږدې اړیکي لرل، د وروري او ملګرتوب ټینګې اړیکي درلودې. خان میرزمانخان په رحمن الدین ملک باندې پوره اعتماد او باور درلود او خان میرزمان خان ته د ملک رحمن الدین

ايمانداري، مېړانه او زړورتوب څرګند شوی و. ملک رحمن الدين يو زړه سواند مهربان او مينه ناک متقي او خوږ ژبې انسان و، خبرو يې په ولسونو کې ډېر تاثير درلود او ټول ولسونه او قومونه يې په ځان راټول کړي وو، څه يې چې ويل هغه به يې عملي کول او د ولسونو په منځ کې د يو والي غوښتونکی او لارښوونکی ګڼل کېده.
په بېوزلو ولسونو باندې يې ډېره توجه لرله او د ظالمانو مخې ته به لکه هسک غر ودرېده او د ولسونو او قومونو د نوموړي سره زيات محبوبيت درلود، همدا وجه وه چې د نوموړي هر امر او قومانده به ولسونو منله او د يو محبوب مشر په توګه هر چاته د منلو وړ شخصيت په توګه په سيمه کې د پوره شهرت خاوند و.
ملک رحمن الدين د خپلواکۍ د څلورمې جبهې په پوځي کارونو کې لوی لاس لرونکی و او ډېر ګروپونه او لښکريان يې څو څو ځل د چترال انګرېزانو په ضد ملاماتوونکي ګوزارونه ورکړي او تل به يې لښکريان د بريالیتوب سره خپلو محلاتو ته اوچت سره راتلل. ده به تل په خپلو لښکريانو وياړ درلود او ولسونو به په دې وياړ کاوه او د لوی خدای په فضل سر به تل په خپلو دندو کې د هر ازمون څخه اوچت سر راووت.
کله چې ملک رحمن الدين د امير عبدالرحمن خان په وخت کې ختيځ نورستان د اسلام مبين دين منلو ته دعوت شو، د سيمې د يو غښتلي مشر په توګه يې ډېر وياړمن کارونه سرته رسولي.

ملک رحمن الدین د ختیځ نورستان د مشرانو سره ډېرې نږدې اړیکي لرلې او د وخت حکومتي مشرانو به هم د نوموړي سره په زیاتو مسایلو کې خبرې اترې او مشورې کولې، په هغه وخت کې نوموړی د پېژندل شوي ښه سلاکار دنده په غاړه لرله چې په ختیځ نورستان کې یې ډېر زیات کارونه په اسانۍ سره په بري سرته ورسېدل. سپه سالار غلام حیدر خان چرخي او جنرال عبدالوکیل نورستاني به د ملک رحمن الدین سره مشورې کولې او د انګرېزانو جوړې شوې دسیسې خاورې ایرې شوې.

د ملک رحمن الدین مېړانه او وطندوستي او په ولس د مهربانۍ کیسې اوس هم د ولسونو په زړه کې پاتې دي.

ملک رحمن الدین د نارۍ د کلي نه د یوې غونډې (جرګې) د ګډون لپاره بریکوټ ته تللی و چې د نوموړي سره ملک محمد یوسف، ملک همایون، ملک رحمت الله، احمد شاه نیکه، حضرت بیګ، میاخان او شمس الرحمن په دې سفر کې ملګرتیا کوله. دغه لویه جرګه د دوکلام او د ارنوي د خلکو د ځمکو د تبادلې په اړه وه یو شمېر خلک په ارنوي کې وو، خو ځمکه یې دوکلام کې پاتې وه او یو شمېر خلک په دوکلام کې وو، خو ځمکه یې په ارنوي کې پاتې وه د جرګې مطلب او غوښتنه دا وه چې ځمکه تبادله شي، هغه د تبادلې مسئله تر ننه پورې پاتې شوې ده.

کله چې د بریکوټ غونډه پای ته ورسېده د خپلو ملګرو سره په آس باندې نارۍ ته روان و چې د پاشنګر جنوب خواته په کڅ کې دده

د مرګ لپاره قاتلینو یو ګروپ مورچلونه جوړ کړي وو، چې نابېره وریاندې ډزې وشوې، ملک رحمن الدین په خپل سپین اس سور په ډزو ولګېده او له دې فاني نړۍ څخه یې سترګې پټې شوې. د قاتلینو له جملې څخه یو تن د ملک رحمن الدین خواته مخامخ روان و دا چې دده زین شوی اس هم په مردکیو لړېدلی و او نه شو پاڅېدلی، شمس الرحمن د ملک رحمن الدین ملګري په راروان سړي باندې غږ وکړ چې څنګه روان یې؟ شمس الرحمن ته یې وویل زه د ملک رحمن الدین وسله اخلم، شمس الرحمن هغه سړی په نښه کړ، نږدې راتګ ته یې پرې نښود او هغه یې په ځای مړ کړ او نور قاتلین د محل څخه په تېښته د کوټیا په لور لاړل. د ملک رحمن الدین په شهادت کې ډېرو کسانو لاس درلود او یوه لویه خاینانه دسیسه وه.

ګل محمد خان چې د ناړۍ د کلي یو پخوانی مشر او سپین ږیری دی داسې کیسه کوي: زه نوی د ځوانۍ په مرحله کې وم چې میاخان ملک د پاشنګر له خوا راغی او کلیوال یې خبر کړل چې ملک رحمن الدین د پاشنګر په کڅ کې چا په ټوپک وویشت او شهید شو، موږ د پاشنګر په لور حرکت وکړ.

محترم نورمحمد کاکا چې زموږ د کلي یو پخوانی مشر دی او عمر یې (۱۴۰) کالو ته رسېږي وایي کله چې ملک رحمن الدین د پاشنګر په کڅ کې شهید شو ښه مې په یاد دي چې موږ هلته لاړو په سلګونو او زرګونو انسانان دغه محل ته راټول شوي وو او یو شمېر

وسله وال کسان د قاتلانو پسې ووتل او د ملک رحمن الدین جنازه د ناړۍ په لور ولسونو پورته کړه چې په زرګونو انسانان د ناړۍ کلي ته راغلل او سیمه او ټوله منطقه کې د لوی غم څادر خور ښکارېده. د ملک رحمن الدین په جنازه کې په زرګونو انسانانو برخه لرله او د ناړۍ په هدیره کې خاورو ته سپارل شوی دی، الله(ج) دې وبښي.

## رحمن کوهستاني:

رحمـــن د میـــرزا رئـیس غـــلام مـــسلي زوی د ارنـــوي د کلـــي اوسېدونکی یو وېښ لایق او فعال شخصیت د قام او د ولسونو په مینه مست ځوان و، پر (۱۹۴۷م) کال زېږېدلی خپل ابتدائیه زده کړې یې د خپل پلار میرزا مسلي په پاملرنه په ارنوي کې سرته رسوي او نور تحصیلات یې په خصوصي توګه د ماهرو او تکړه استادانو له خوا په مینه کړي دي. ډېر کتابونه یې ویلي وو په دروش او چترال کې یې هم زده کړې سرته رسولې وې، نوموړی به تل د کتابونو مطالعه کوله او ځان یې پوره رسولی و، د ښه قلم او لوړ جرئت خاوند و، هغه یو ښه ویاند او نطاق و، په پښتو، چترالي، کوهستان، اردو او انګرېزي ژبو پوهېده او لیکل او لوستل ورته اسان و، هغه په قام او منطقه کې ډېر محبوبیت درلود، با اخلاقه، سنجیده، متقي او نېک خویه او صمیمي انسان ګڼل کېده.

تل به یې د خپلو ولسونو د نېکمرغۍ او هوسا ژوند لپاره فکر کاوه او د قام او منطقې مشرانو درناوی د هغه دنده وه او ځوانانو

به يې علمي کارونو تحصيل او زده کړو لپاره تشويقول او لازمه مرسته به يې ورسره کوله او هغه به هر کله په جرګو او مرکو کې ولسونو ته ويل چې د نېکمرغۍ او د هوسا ژوند لپاره اول کار د علم زده کړه ده بې له علم او زده کړې هېڅ کار نه برابرېږي. د ټولو ستونزو د حل لپاره يوازينۍ لاره د علم حاصلول او زرښتناکه کار باله. رحمن شهيد د ولسونو او د سولې او امن د دښمنانو له خوا د دروش او د ارنوي په لاره کې پر (۱۹۸۷م) کال د ظالمانو له خوا په وينو سور شو او په شهادت ورسېد.

## لايق:

لايق د حيات الله زوی د ساو په کلي کې پر (۱۳۳۲ل) کال سترګې نړۍ ته غړولي دي، خپل ابتدائيه زده کړه يې د ساو په کلي کې سرته ورسول او بيا يې د شيګل د لېسې څخه د دولسم ټولګي د فراغت سند واخيسته.

د کابل د وړو ضابطانو په ښوونځي کې د ټانک په رشته کې شامل شو پر (۱۳۵۳ل) کال د افسر په توګه فارغ شو او د چرخي پله د ټانک په قوا کې دنده لرله. نوموړی په رښتيا يو دردمند، دلسوز، با اخلاقه او بامطالعه شخصيت د خپل وطن او خپلو ولسونو سره يې ډېره مينه لرله او د جابرانو او ظالمانو څخه يې کرکه کوله او د بېوزلو د هوسا ژوند لپاره يې مبارزه کوله يو د سياسي او ټولنيز فکر خاوند و.

پر (۱۳۵۷ل) کال د ثور په بدلون کې یې په خپله ګډون درلود، د ډاکتر نجیب الله په وخت کې د جلال اباد په پوځي ګارنیزون کې د زرهدارو قواوو د قوماندان په توګه مقرر شو چې په خپله د ډاکتر نجیب الله له خوا نوموړی د ښو دندو د اجرا له امله ستایل شوی و او د میړانې مډال ورته ورکړل شوی و.

نوموړی د وطن او د وطن ولسونو د دښمنانو له خوا پر (۱۳۶۷ل) کال په شهادت ورسېده او د کابل په سمیټ خانه کې خاورو ته سپارل شوی دی.

## محمد ګل شډل:



شډل چې اصلي نوم یې محمد ګل و خو شډل یې تخلص کاوه او د شډ په نوم یادېده، پلار یې میراحمد ګل نومېده، نوموړی د ساو د کلي او سېدونکی و د ډېر کوچنیتوبه د دیني زده کړو لپاره د باجوړ، دیر، پېښورو مردان مدرسو کې دیني زده کړې سرته رسولې وې او پر دیني مسایلو ښه پوهېده او نورې زده کړې یې په خصوصي توګه د لایق استادانو څخه کړې وې. په پښتو، دري او اردو ژبو پوهېده لیکل او لوستل یې کولی شو. د ښه قلم او استعداد خاوند و د ډېرو کلونو وروسته خپل پلرني ټاټوبي کونړ ساو کلي ته ستون شو او د وطن د ابادۍ او بېوزلو کسانو سره یې

ډېره مینه لرله. پر (۱۳۵۸ل) کال د کورنیو چارو په وزارت کې د ښه استعداد او لیاقت لرلو په اساس د افسر په توګه دنده واخیسته، نوموړی پر (۱۳۷۴ل) کال د تورخم او پېښور په لاره کې د یوې ترافیکي پېښې له امله په حق ورسېده.

## مولوي شفیع الله ساووال:

مولوي شفیع الله ساووال چې تولـه کورنۍ یې په قاضیانو شهرت لري د ساو کلي اوسېدونکی و، نوموړی ځوان او با استعداده دیني عالم د ساو په کلي کې سترګې نړۍ ته غړولې وې. له کوچنیتوبه یې په دیني مدرسو کې په دیني ښوونه او روزنه بوخت و، ډېر لایق او پوهه دیني عالم و، په پښتو، دري، اردو او عربي ژبو پوهېده، د قران کریم ښه مبصر او ښه ترجمان و. ډېر کتابونه یې لوستلي وو په دیني مسایلو ښه پوهېده او ډېر شاګردان یې لرل، پر (۱۳۵۷ل) کال د خلقیانو له خوا ونیول شو او په زندان کې په شهادت ورسېده.



## ښوونکی شېرمحمد:

ښوونکی شېرمحمد د ملک جلات خان زوی د بریکوټ د کلي اوسېدونکی و. نوموړي خپل ابتداییه زده کړې د بریکوټ په کلي کې سرته ورسولې او د ننګرهار د عالي دارالمعلمین یې په بریالیتوب پای ته

ورساوه او د یو لایق ښوونکي په توګه یې په بېلابېلو ښوونځیو کې د یو ښه ښوونکي په توګه دنده اجرا کړه.

ښوونکی شېرمحمد د بریکوټ د یوې درنې کوهستانۍ کورنۍ یو روښنفکره بااستعداده ځوان ښوونکی و.

پر (۱۳۵۷ل) کال د ناړۍ ولسوالۍ د خلقیانو د ګروپ له خوا ونیول شو او په همدغه کال په زندان کې په شهادت ورسېده.

## شهید عبدالوهاب:



شهید عبدالوهاب د مرحوم حاجي عبدالحمید زوی د ناړۍ د مرکزي کلي اوسېدونکی، لومړنۍ زده کړې یې په خپل کلي کې سرته رسولې وې او بیا د کابل په حربي ښوونځي کې شامل شو او د حربي پوهنتون د توپچي پوهنځي څخه اول نومره پر (۱۳۵۵ل) کال فارغ شو.

یو څه وخت د کابل په ګارنیزون کې دنده سرته ورسوله پر (۱۳۵۷ل) کال د خوست (۲۵) فرقې ته تبدیل شو نوموړی یو لایق، ورزیده، باجرئت افسر په توګه په خپلو همزولو او افسرانو کې ښه نوم درلود. په پښتو، دري، انګرېزي ژبو پوهېده او ریاضي او ساینسي مضامینو کې پوره مهارت درلود. نوموړی ځوان او لایق افسر د وظیفې په جریان کې پر (۱۳۵۸ل) کال د وطن د دښمنانو له

خوا په شهادت ورسېده. د نوموړي يو زوی پاتې دی چې فضل وهاب نومېږي او په ناړې کې د ژوند شپې تېروي.

## شهيد ملک نورمحمد خان:



شهيد ملک نورمحمد خان د سراج الدين زوی د مير مسعود لمسی د ناړې په مرکزي کلي کې يې سترګې دې نړۍ ته غړولي دي. نوموړی په وړکتوب او د ځوانۍ په وخت کې ډېر ديني سبقونه په خپل کلي او پاکستان کې سرته رسولي او د هغه وخت مروج کتابونه لکه بوستان، ګلستان او نور ډېر کتابونه يې د وخت د لايقو پوهانو او ملايانو څخه ويلي وو.

په پښتو او دري ژبو ډېر ښه پوهېده او د ميرزا نورمحمد خان په نوم يې په منطقه کې پوره نوم درلود، ډېر باتدبيره، سنجيده، هوښيار او لايق شخصيت و. په کليوالو او دوستانو کې يې د يو مېلمه دوست ملک په نوم شهرت او محبوبيت درلود او د هغه په ديره کې به تل مېلمانه موجود وو، هغه عادت درلود چې د ماښام لمانځه څخه وروسته چې جومات کې څوک مېلمانه به وو هغه به د ځان سره کورته وړل ډېر سخي او مهربان ملک و.

پر (۱۳۶۰ل) کال د وطن د غیږې څخه د مهاجرت لاره غوره کړه او د چترال د دروش په تحصیل کې گله ټاک کې یې ژوند غوره کړ. هغه یو سرسخت مجاهد و او د روسانو د کمونیستي پوځیانو یرغلگرو د ناکامۍ په ارمان و او خپلو نږدې ملگرو ته به یې ویل زه پوره باور لرم چې روسي پوځیان او گوډاگی رژیم د مجاهدینو په مخه نه شي ودرېدی زموږ کامیابي ضروري ده، الله پاک د حق طرفدار دی او مجاهدینو ته د روسانو په ضد بریالیتوب په برخه کوي.

ملک نورمحمد خان چې د منطقې یو پېژندل شوی او منل شوی مشر سپین ږیری و پر (۱۳۶۲ل) کال د ناړې د کلیوالي ستونزو د حل لپاره د کونړ ولایت مرکز ته د یو شمېر نورو ملگرو سره په موټر کې روان و چې د اسلام د مبین دین د احکاماتو ناخبرو ډاکوانو او لاره وهونکو له خوا د اسمار په سپینکي کې په شهادت ورسېده.

په دغه نه هېرېدونکې غمگینه او ناروا پېښه کې د ملک نورمحمد خان سره حاجي صاحب عصمت الله او ښوونکی حاجي علي احمد هم ملگري وو او یو بل مشر سپین ږیری عبدالصمد هم په دغه پېښه کې شهید شو، چې دواړه شهیدان د کونړ ولایت څخه چترال گله ټاک کمپ ته انتقال او هلته خاورو ته وسپارل شول.

## شهید ملک عبدالولي:

ملک عبدالولي د گل ولي زوی د سیدولي لمسی د ناړې د مرکزي کلي د بر کلي اوسېدونکی چې یو دلاور او مېلمه پال وطنپرست

شخصیت و د خپلو دوستانو او ملګرو په منځ کې پېژندل شوی با احساس افغان و د ولسونو یو خدمتګار او نېک خویه انسان و، نوموړي ځوان احساس درلود او د خپلو ولسونو او قومونو په منځ کې پوره محبوبیت لاره.

پر (۱۳۶۰ل) کال د روسي یرغلګرو قوتونو په ضد د وطن د غېړې څخه د کمونیست روسي پوځیانو د ناکامۍ او د جهاد لپاره چترال ته د خپلو کلیوالو په ګډون مهاجر شو، د مهاجرت په دوره کې هم په ولسونو کې یو ښکاره او څرګند او ویښ قوماندان په نوم ډېر شهرت پیدا کړ او په دې بریالی شو چې د جهاد لپاره څو جنګي ګروپونه د مجاهدینو تنظیم کړي او د روسانو او د کارمل د ګوډاګي رژیم په ضد یې فعاله ونډه لرله او نور مجاهدین به یې د جهاد د مورچلونو د لا ټینګښت او بري لپاره راجلبول. نوموړی شهید پر (۱۳۶۲ل) کال د چترال د دروش په تحصیل کې چې مجاهدین په (ګله ټاک) کې اوسېدل د مجاهدینو د کورونو د اسانتیا لپاره چې د سیدور په خوړ کې د مهاجرو له خوا د اوبو د ویالې د جوړولو په عملي کار کې سخت ټپي او شهید شو، الله دې وبښي.

## ملک عبدالظاهر غورځنګ:

ملک عبدالظاهر د ملک عبدالله پهلوان زوی د نارې د مرکزي کلي اوسېدونکی دی. نوموړی یو غښتلی په هېواد او په بېوزلو

مين شخصيت و، چې پر (۱۳۲۰ل) کال د جوزا د مياشتې په شلمه نېټه دا چې د هېواد په غېږه باندې پر (۱۳۵۸ل) کال د جدي په مياشت کې د روسانو له خوا په توره شپه يرغل شوی و او د وطن ښکلو او رنګينه سردرو ته روسي کمونيستي پوځونه راغلي و، د ملک عبدالظاهر په زړه کې ناسور پرهرونه جوړ شوي وو او د هېواد په غېږه کې د ګوډاګي رژيم د نسکورېدو ارمان يې په زړه کې ټوپونه وهل.

نور نو د ژوند لپاره د هېواد غېږه ورته ګرم تنور ښکارېده او د روسي کمونيستي پوځونو له خوا په افغان ښوزلو ولسونو يرغلونه، بريدونه نه شو زغملی د هجرت او د جهاد لاره يې غوره کړه. د خپل کور او کلي څخه د خپلو تنکيو کوچنيانو سره د پاکستان د چترال سيمې ته مهاجر شو، په لاره کې يې ډېرې زياتې ترخې او نه هېرېدونکې پېښې وليدلې چې د وطن د دښمنانو له خوا په افغان ولسونو عملي کېدل دا چې ملک عبدالظاهر يو خانداني عزتمن او ابرومند ژوند تېر کړی و او دغه ناخوالې، زور او بې عدالتي چې په خپلو سترګو وليدله، نوموړی د ډېر خفګان او پرېشانۍ له امله چې افغان ولسونه ورسره مخامخ و، د چترال د دروش د ګله ټاک په کمپ کې د زړه سخته ناروغتيا روته پيدا شوه او د هجرت په نويو شپو او ورځو کې چې لا د لارې ستوماني يې نه وه ارامه شوې په زړه غمجن يو ناڅاپه په شهادت ورسېد او همځلته خاورو ته وسپارل شو.

## الحاج معلم حضرت الله خان:

دا دنیا فاني ده او هېڅوک د تل لپاره ژوندی نه پاتې کېږي، پښتو متل دی دنیا ته راتګ په وار او تګ بې واره دی، د مرګ نېټه




هېچا ته نه ده معلومه، معلم حضرت الله خان د حضرت شاه زوی د حضرت بیګ لمسی د کونړونو ولایت د ناړي ولسوالۍ په مرکزي کلي کې تقریباً (۲۵) کاله مخکې په یوه بزګره کورنۍ کې سترګې نړۍ ته وغړولې. نیکه یې حضرت بیګ د استقلال د څلورمې جبهې یو فعال مجاهد په توګه د چترال په غزاګانو کې د غازي میرزمان خان په لښکرو وکې ګډون درلود او په ارنوي، لامبربټ، کواتی، دمیل، دروش، میرکنډی، ایون کې د انګرېزانو سره مخامخ جنګېدلی و، په سیمه کې په خپل وخت سره یو پېژندل شوی شخصیت ګڼل کېده. دده د ښه زړورتوب او ایمانداری او باداری په وجه غازي میرزمان خان ته ډېر نږدې او اعتمادي مجاهد و، د نوموړي اتلولي او مېړانه ټولو ته څرګنده شوې وه. حضرت بیګ بابا

د غازي ميرزمان خان سره پر (۱۳۰۳ل) کال د پکتيا د منګلو د شورش په ختمولو کې او د (۱۳۰۷ل) کال د شينوارو د بغاوت په خاموشولو کې ارزښتناک خدمتونه د ناري د نورو مجاهدينو او زړورو جانبازانو سره يوځای سرته رسولي و، حضرت بيګ بابا د غازي ميرزمانخان په لښکرو کې يو ښکاره او پېژندل شوی زړور مجاهد په توګه نوم درلود.

نوموړی د ملک رحمن الدين او ملک محمد يوسف سره چې د هغه وخت او زمان مشهور مشران وو د کابل شاهي (ګارد) ماڼۍ ته د ځوان پاچا اعليحضرت غازي امان الله خان ملاقات او ديدار ته د کونړونو ولايت د نورو مشرانو سره چې سرلښکر غازي ميرزمان خان د ټولو مجاهدينو د مشرتوب وياړ درلود، تللی و. غازي ميرزمان خان د کونړونو ولايت د ټولو مشرانو او مجاهدينو په غوښتنه د افغانستان خپلواک او ځوان پاچا غازي امان الله خان د تګ لارې او پوره واکمنۍ نه خپله ننګه او ملاتړ اعلان کړ. غازي امان الله خان د کونړ د مجاهدينو د زړورتوب او سربښندنو څخه په ډېره مينه يادونه کړې وي او د غازي ميرزمان خان څخه يې مننه وکړه او يو بل يې د خوښۍ نه په غېږه کې ونيول. د هغه وخت د مشرانو تاريخي کيسې اوس هم ژوندۍ پاتې دي. پته دې نه وي چې په دې اوږد تاريخي سفر کې د ناړې د سرحدي سيمې نورو مشرانو هم برخه لرله چې په ځانګړي کتابي ټوک کې د تشريح سره يوځای وګورئ. د معلم حضرت الله خان مشر ورور مرحوم ملک عبدالباقي

هم يو نامتو زړور شخصيت تېر شوی و چې د هجرت او جهاد په کلونو کې د مجاهدينو امر پاتې شوی و، په ولسونو کې يو منل شوی ښه سپين ږيري نوم درلود.

ددې لپاره چې زموږ اصلي خبره د معلم صاحب حضرت الله خان په اړه ده او خبره اوږده نه شي نو راځو خپلې خبرې ته!

معلم حضرت الله خان په ډېر کوچنيتوب کې د ليک لوست د زده کړو لپاره په خپل کليوالي جومات کې په زده کړو پيل وکړ، ډېر ژر يې د پام جان استاد په لارښوونه په اساسي توګه د پنځه وخته لمونځ په اداکولو د ترجمې سره ياد کړل او قران شريف يې ختم کړ او د نورو ديني علومو او ليک لوست د وخت د مشهورو استادانو هر يو پام جان استاد او جندول استاد شاګرد شو، چې د هغو د تکړه او لايقو شاګردانو د جملې څخه ګڼل کېده، د معلم صاحب حضرت الله خان پلار په ليک لوست نه پوهېده، خو د خپل زوی د علم او پوهې زده کولو لپاره ډېره پاملرنه کوله. معلم حضرت الله خان پرته د ذکر شويو استادانو څخه د مرحوم ميرزا عبدالواحد مشهور په (لعلي ميرزا صاحب) او نانګل مرحوم ميرزا صاحب سره شاګرد شو، پرته د نورو ديني کتابونو په پښتو ژبه او دري ژبه يې هم کتابونه ولوستل، ګلستان، بوستان، پنج ګنج او نور کتابونه يې په اساسي توګه وويل او د رياضي علوم يې هم ددغه مشهورو استادانو څخه وويل او پوره ديني پوهه يې ترلاسه کړه.

معلم صاحب حضرت الله خان یو دینداره، باایمان، لایق، ذکي او تېزهوش، متقي او حاضر ځوابه انسان دوست او وطن دوست شخصیت و چې د مظلومانو سره یې ډېره مهرباني او مینه لرله او د ظالمانو څخه یې کرکه کوله. د ښه احساس لرلو په وجه د هر چا په زړه کې یې ځای درلود او پر (۱۳۸۲ل) کال سعودي عربستان ته د حج د فریضې د ادا کولو لپاره تللی و.

معلم حضرت الله خان د اسلام د مبین دین د ټولو شرعي علومو څخه پوره پوره معلومات درلودل او د دیني علومو احکامات به یې مطالعه کول او نورو ته به یې بیانول. نوموړی ډېر کلونه د ځوانۍ په مرحلو کې د کلیوالو او د سیمې ځوانانو د یو مهربان او ښه ښوونکي په توګه دنده هم ترسره کړې وه، نوموړي ډېره ښه حافظه درلوده او د یو لایق ښوونکي په توګه د خپلو شاګردانو لپاره د ښو زده کړو لپاره خاص تدریسي میتود څخه کار اخیسته چې شاګردانو به هدده د تدریس څخه ښه پوهه ترلاسه کوله. د خپلو ټولو شاګردانو سره یې ډېره مینه درلوده او د خپلو شاګردانو نومونه ورته په یادو زده وو، زیات وخت به یې خپلو شاګردانو ته کورنۍ دندې سپارلې او د سپارل شویو دندو څارنه یې کوله. ټولو شاګردانو دده سره پوره محبت او صمیمیت درلود او په سیمه او محل کې ټولو ولسونو معلم حضرت الله خان ته د یو ښه لایق او باتجربه ښوونکي په نوم پوره درناوی کاوه، نوموړی په کوچنیانو شاګردانو ا و په کوچنیانو

کلیوالو او د محل سیمې کوچنیانو باندې خپلوانو او دوستانو باندې ډېر شفقت او مهرباني لرله.

معلم حضرت الله خان د یو اجتماعي شخصیت په توګه ټولو ولسونو قومونو ته ښکاره او څرګند شوی و، ډېر مېلمه دوست انسان په توګه پېژندل شوی و، تل به د مېلمنو سره په خپله جونګړه او هوجره کې خوښ ښکارېده په مېلمنو یې ډېره مهرباني او پېرزوینه درلوده او په ورین تندي به د مېلمنو خدمت لپاره په خپله هر وخت چمتو او تیار ولاړ و، یو قدرمن او اخلاص من ښوونکی او قومي او ملي مشر حیثیت یې درلود.

معلم حضرت الله خان کله چې زموږ د هېواد په غېږه کې د روسانو د کمونیستي یرغلګرو د تورې شپې ناروا یرغل او تجاوز وشو، نور نو په وطن او کلیوالي ژوندون کې ورته روزګار سخت شو، پر (۱۳۶۰ل) کال یې د وطن د غېږې څخه د مهاجرت لاره ونیوله، د نورو هېوادوالو په څېر کلي او هېواد یې پرېښود او د چترال دروش ګله ټاک سیمې ته د ارنوي له لارې ځان په ډېرو کړاوونو ځان هلته ورساوه یو څه وخت یې هلته په کېږدیو او ختو په کنډوالو کې تېر کړ چې هلته ورته ډېرې دردوونکې ستونزې مخې ته راغلې او د چترال څخه د تیمرګرې د مهاجرو کمپ ته مهاجر شو چې هلته هم د غره په سر د ژمي یخو شپو او د دوبي ګرمیو ته د خپلو کوچنیو بچو سره دېره شو، ډېرې ترخې شپې او ورځې په شوګیرو کې تېرې کړې او د روسي یرغلګرو او د کارمل ګوډاګي رژیم د پرزولو لپاره

د جهاد کولو لپاره د هسکو غرونو د جهاد د مورچلونو لاره خپله کړه د خپلو زامنو سره به د جهاد په منظور ډېرې هلې ځلې وکړې او د جهاد په مورچلونو کې يې ډېرې شپې ورځې په ويښه تېرې کړې. نورو خپلو ملګرو مجاهدينو ته به يې د جهاد د برکت او فضيلت په اړه خورېې او د پندې خبرې کولې. د جهاد د مورچل ملګرې به دده سره ډېر خوښ و، ده به تل مجاهدينو ته په خپل برياليتوب او روسانو او پلوه رژيم د ړنګېدو خبرې کولې او مجاهدين به يې يووالي ته هڅول او د اسلام د مبين دين دښمنانو په مقابله کې د مجاهدينو د برې زېرى ورکاوه. معلم حضرت الله خان سره دده د مورچل ملګرو ډېره مينه درلوده او دا يې يو اتل مجاهد په نوم پېژنده، يو زړور، قاطع او بشردوست انسان و، نوموړي ناکامي نه منله او تل به يې په جرګو او مرکو او مورچلونو کې د کاميابۍ خبرې کولې.

دا چې يو د مظلومانو د حق ملاتړ يې کاوه او د ظالمانو سرسخت مخالف و او د ولسونو او قومونو د يووالي او پوره پيوستون دلپاره يې کار کولو او د يو سپين نيتي مهربان نېک مسلمان په توګه د ټولو مسلمانانو په زړه کې ځاى درلود، زيات وختونه به نوموړي د ولسونو او قومونو په غوښتنو سره په جرګو او مرکو او د خير په کارونو سره تېرول، نوموړى به د ولسونو د يووالي او خير او برکت لپاره به تل په جرګو کې برخه او ونډه لرله، په جرګو کې به دده

خبرې او دريغ روښانه او څرګند و او د خپل اقرار او پرېکړو به يې په کلکه او ښکاره ننګه کوله.

معلم حضرت الله خان ددې فاني نړۍ څخه پر (۱۳۸۸/۱۲/۱۱) نېټه يو ناڅاپه په داسې حال کې چې د لوی خدای(ج) فريضه يې ادا کړې وه په خپل کور کې د سه شنبې په شپه لس بجې د ابد لپاره سترګې پټې کړې، جنتونه ورته غواړو.

حاجي صاحب زيارتګل دده د مرګ په هکله وويل: معلم صاحب حضرت الله خان زموږ د کلي او سيمې د ولسونو لپاره يو نامتو شخصيت په حق ورسېد، نوموړی يو هسک غر او يو لوی لښکر حيثيت درلود، رښتيا چې دا نړۍ فاني ده! د نوموړي جنازه د ناړۍ په مرکزي کلي کې د پُل خواته په لويه ميدانۍ کې د محترم مولوي صاحب رحيم الله په امامت وشوه او د ناړۍ په بر کڅ کې په داسې حال کې چې ډېرو نږدې ملګرو يې حاجي تاج برهان، حاجي محمد ايوب خان، حاجي تازه خان، ملک محمد زير، ملک عبدالمتين او حاجي محمد عثمان او پيرمحمد د قبر په سر ولاړ و او د سترګو يې د اوښکو ڇينې بهېدې او په سلګونو نور خپلوان او عزيزان او دوستان يې اخري ديدن لپاره راټول شوي وو، خاورو ته وسپارل شو، په دې مراسمو کې مولوي صاحب ولي رحمن او مولوي صاحب رحيم الله ديني خبرې وکړې او نوموړي ته يې د مغفرت دعاګانې وکړې د نوموړي په جنازه کې د سيمې د ټولو کلو باندو مشرانو ځوانانو ولسونو قومونو برخه اخيستې وه.

پته دې نه وي چې د نوموړي دوه ځوان زامن هم د مهاجرت په کلونو کې په شهادت رسېدلي وو.



## الحاج ملک برهان الدین:

ملک برهان الدین د ملک محی الدین زوی د ملک رحمن الدین لمسی دی چې پر (۱۳۳۳ل) کال د ناړې په مرکزي کلي کې يې سترګې دې نړۍ ته غړولي، ابتداييه زده کړې يې د ناړې په کلي کې کړې وې او د دولسم ټولګي شخه يې د فراعت سند اخيستې دی، په خصوصي توګه يې ډېره زده کړه کړې وه، په پښتو او دري ژبو پوهېږي او د ښه قلم خاوند دی، يو څه وخت يې د ښوونکي په توګه هم دنده اجرا کړې ده، د هجرت په کلونو کې يې د يو غښتلي او پياوړي قوماندان په توګه د جهاد په مورچلونو کې وخت تېر کړی او د روسي کمونيستي يرغلګرو په ضد يې په کونړ، ننګرهار، نورستان او چترال کې ډېر د يادونې وړ کارونه سرته رسولي دي.

نوموړی يو خيرخواه، سوله دوست باحوصله او د ژور فکر خاوند دی، تل په خپلو ولسونو کې د خير او امن د کارونو لپاره هلې ځلې کوي.

الحاج برهان الدین په ولسي جرګو او مرکو کې همیشه د یو نېک او صالح سپین ږیري په توګه برخه اخلي او د جرګو او د مرکو په کارونو ښه پوهېږي، پلار او نیکه یې د کونړ ولایت او د منطقې پېژندل شوي ولسي قومي مشران تېر شوي او ولسونه او قومونه ورته اوس هم ډېر درناوی کوي او د هغو د نېکو کارونو یادونه کوي.

ملک برهان الدین د جهاد په کلونو کې خپلو ولسونو ته ډېر با ارزښته کارونه سرته رسولي او تل به د جهاد په مورچلونو کې د خپلو ملګرو سره یوځای ګام په ګام د لښکر مخکې روان و، نوموړی به د جهاد په مورچلونو کې خپلو ملګرو ته د کامیابۍ او د بري ډاډ ورکاوه او د یو ښه او هوښیار جهادي ښوونکي رول یې لوبولی دی. د هجرت په کلونو کې د مجاهدینو د کورنیو او د مجاهدینو د اولادونو د ښوونې او روزنې په کارونو کې پوره پوره د ستاینې وړ خدمتونه کړي دي، په ناړۍ، بریکوټ، کوټیا، کونړ مرکز او ښېوه کې او نورو خاصو ځایونو کې د خپلو ملګرو سره د مخامخ جهاد لپاره دده سنګرونه ولسونو ته ښکاره او څرګند و.

الحاج ملک برهان الدین په ختېه کوهستانی او یو پېژندل شوی خانداني شخصیت ګڼل کېږي. مشر زوی یې رحمن الدین نومېد چې د خپلو ولسونو د ارمانونو لپاره قرباني شوی دی.

د ملک برهان الدین پلار د خپل وخت او زمانې یو مشهور زړور او ایماندار سپین ږیری او ملک تېر شوی چې په نوم یې اوس هم

ولسونه ویاړ کوي او د خپلو ولسونو قومونو یې ډېر ارزښتناکه خدمتونه ترسره کړي دي، نیکه یې ملک رحمن الدین یو سرشار، بهادر، باتور او عزتمند مشر و چې د استقلال په جنګونو کې د انګرېزانو په مقابله کې تاریخي خدمتونه ترسره کړي و، د هغه د کارنامو او د هغه د کارونو او ایمانداری څخه ټول ولسونه پوره پوره اګاهي لري. ملک رحمن الدین د استقلال د ځلورمې جبهې په برې کې او د ختیځ نورستان د امن او امنیت په خاطر ستر کارونه ترسره کړي و، هغه د کونړ د خان میرزمان خان غازي سره اوږه په اوږه قدم په قدم یوځای د خپلواکۍ د ګټلو لپاره د خپلو لښکریانو سره د چترال په جګړو کې مستقیماً برخه اخیستې وه، د ناړۍ پخواني مشرانو او سپین ږیرو له روایت له مخې غازي خان میرزمان خان به تل د ملک رحمن الدین سره په جګړییزو مسایلو هر وخت په خپلو کې جرګې، مرکې او مشورې کولې او ګډ تصمیم به یې نیوه. خان میرزمان خان د ملک رحمن الدین سره د ورورۍ او نږدې ملګرتوب ټینګې اړیکې لرلې او زیات وختونه به خان میرزمان خان د ناړۍ په قرارګاه کې د ملک رحمن الدین سره یوځای اوسېده. په همدې ترتیب پخواني مشران د سترګو لیدلی حالت داسې بیانوي چې ملک رحمن الدین ایماندار او لوړ قد درلود تور ویښتان او تورې سترګې او لوړه پوزه یې لرله او تل به یې په لاس کې ډانګې نیولی و، دده شخصي سپین اس و او دغه لنډی سپین اس به د تل لپاره زین کړی چمتو ولاړ و. د ملک رحمن الدین سره

چې هغه وخت د منطقې یو لوړ پېژندل شوی مشر په توګه ولسونو ته څرګند او ښکاره شخصیت و، ټولو ولسونو او قومونو زیات درناوی او احترام کاوه او ده د خبرو او فیصلې او پرېکړو څنې هېڅا سرغړونه نه شوه کولی. د نورو قومونو مشرانو هم ورته ډېر درناوی درلود. ملک رحمن الدین په خپلو خبرو ولاړ شخصیت و، خبره یې خبره وه، هو یې هو وه، او نا یې نا وه، د چترال، دیر، نورستان او د کونړ مرکزي مشرانو هم د نوموړي سره نږدې اړیکي لرلې، دا یو ایماندار او د لښکر او په ولسونو کې ښکاره پیاوړی شخصیت ګڼل کېده او ولسونو او قومونو ده د امر د عملي کولو لپاره هر ډول قربانۍ ته تیار او چمتو ولاړ وو.

جنرال وکیل نورستاني او سپه سالار غلام حیدرخان څرخي سره ملک رحمن الدین له نږدې پېژندل او تل به یې په ګډه د بري لپاره سلا مشورې کولې. ملک رحمن الدین د چترال او د کونړ د استقلال د جګړو د بري وروسته د کونړ د خان غازي میرزمان خان سره یوځای کابل شاهي ماڼۍ ته د غازي امان الله خان دیدار او ملاقات ته د خپلو نورو ملګرو سره تللی و، هلته یې د هغه سره له دنږدې څخه لیدلي و او په خپله د غازي امان الله خان په لاسونو ملک رحمن الدین خان او د هغه نورو ملګرو ته په ټټر د بهادرۍ مډالونه ځوړند شوي و او یوه یوه توره او نور سوغاتونه او د ویاړ فرمانونه ورکړ شوي و چې بیا وروسته به په تفصیل سره معلومات ورکړ شي.

# نقیب الله «دردېدلی»



نقیب الله دردېدلی د زین الله خان زوی د احمد خان لمسی دی، د کونړونو ولایت د ناړۍ ولسوالۍ د ساو په کلي کې پر (۱۳۳۱ل) کال سترګې نړۍ ته غړولي دي.

ابتدایه زده کړې یې په خپل کلي ساو کې کړي دي، پر (۱۳۴۱ل) کال د کابل په رحمن بابا لیسه کې په ځلورم ټولګي کې شامل شوی، پر (۱۳۴۹ل) کال له دولسم ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شوی او د ښوونکي په توګه یې په کار پیل کړی دی.

تر (۱۳۵۰ل) کال راهیسې په بېلابېلو ولایتونو لکه ارزګان، دایکندي، کابل، ننګرهار، کونړ او نورستان کې د ښوونکي او سرښوونکي په توګه دندې اجرا کړي دي.

دردېدلی پر (۱۳۵۹ل) کال د وطن له غبرې څخه پښتونخوا ته کډه شو او هلته د چترال او دروش په منطقه کې د مجاهدینو افغان ولسونو د بچیانو د ښوونې او روزنې په چارو کې د یو لایق او باتجربه استاد په توګه ښه او لوړ کارونه ترسره کړي دي. نوموړی پرته له دې چې د جهاد په مورچلونو کې ګډون کړی، د دروش د

تحصیل د جماعت الدعوت د تنظیم په دفتر کې د فرهنګي غړي په توګه کار ونه کړي.

دردپدلی پر (۱۳۷۴ل) کال بېرته د وطن غېږې ته راغی او د ښوونکي په توګه یې بیا خپل کار ونه پیل کړل. نوموړی پرته له دې چې یو ښه لایق او مسلکي ښوونکی دی، د ښوونې او روزنې په چارو کې یو ښه باتجربه کدر دی، چې په ټولو قوانینو باندې پوره خبرتیا لري او په چارو کې ډېر ښه پوهېږي.

دردپدلی اوسمهال د کونړ د ناړۍ ولسوالۍ د پوهنې په مدیریت کې د مفتیش په توګه دنده اجرا کوي، د ویاړ خبره ده چې د ښوونکو او نورو اداري کارکوونکو په منځ کې دردپدلي ته ډېر ښوونکي او سرښوونکي د اداري چارو د ښه تنظیم لپاره ورځنۍ مشورې او د سمون لپاره لارښوونې اخلي.

محترم دردپدلی څه کم څلوېښت کاله کېږي چې علمي تجربه لري او کار کوي او اوسمهال مافوق رتبه دی، د ژوند په ټولو چارو کې ورته بریالیتوبونه غواړم.

## حاجي لعل زمانخان:



مرحوم حاجي لعل زمانخان د مرحوم محمد حسين زوی او د عبدالغفار لمسی په ناړې ولسوالۍ کې تقریباً اویا کاله دمخه نړۍ ته سترګې غړولې وې. نوموړی یو دیندار، متقي، ارام، نیک عمل انسان په توګه خلکو په زړونو کې ځای درلود، که څه هم خپله اقتصادي ستونزو سره مخامخ و، خو د ژوند ستونزو ته یې ارزښت نه ورکاوه، ډېره پخه او ټینګه اراده یې درلوده د ژوند د ټولو ناخوالو سره یې مقابله کوله. حاجي لعل زمانخان یو خیرخوا او د ورین تندي لرونکی انسان ګڼل کېده. نوموړي په کلیوالو ولسونو کې لوی مقام درلود، د خلکو په کارونو کې یې ستړیا نه درلوده د بېوزلو ولسونو سره یې مینه لرله او د ظالمانو او ځان خوښو کسانو څخه یې کرکه لرله، حاجي صاحب غلام سخي د نوموړي په برخه کې وايي: حاجي صاحب لعل زمانخان د ناړې د مشرانو او سپین ږیرو په منځ کې واقعاً د لعل حیثیت درلود، ډېر یو قیمتي انسان ګڼل کېده. هغه یو ایماندار او

باحوصله او نرم او خوږ ژبی مشر و، په موسکا به یې له خلکو سره خبرې کولې. هغه د ټینګې ارادې لرونکی انسان و، هغه د ننګونو او د غیرت د مورچل سړی و، هغه به تل د همزولو او ځوانانو په منځ کې د کامیابۍ خبرې کولې. د هغه به د مایوسۍ او د خفګان مجلسونه نه خوښېدل هغه تل په خپل کلي کې په پنځه وخته لمونځ کې ګډون کاوه، د ټولو ځخه به مخکې راته او د ټولو ځخه به وروسته له جماعت ځخه د کور پر لوري روان شو، چې ټول ټولنیز خویونه یې د ستاینې وړ و. مرحوم حاجي صاحب لعل زمانخان د وریښمې ناروغۍ له امله پر (۱۳۸۲ل) کال له دې فاني نړۍ ځخه سترګې پټې کړې او په خپل کلي کې خاورو ته سپارل شوی.

## ملک عبدالخالق:



ملک عبدالخالق د ملک محمد یوسف خان زوی پر (۱۳۲۲ل) کال د ناړې په مرکزي کلي کې په یوه درنه کورنۍ کې سترګې نړۍ ته غړولي دي.
دده پلار په هغه وخت کې په قام او منطقه کې یو ښکاره څرګند قومي شخصیت ګڼل کېده او د منطقې د ولسونو د مشرۍ ویاړ یې په برخه و.
نوموړی د خپل پلار د سیوري او مهربانۍ لاندې د خپلو ولسونو په منځ کې د پوره اعتماد او باور وړ ځوان شو، په لیک لوست نه پوهېده خو د خپل کلیوالي جومات د ملا امام څخه یې د قران شریف سبقونه ویلي و، په قران شریف ښه پوهېده، دا لا په تنکۍ ځوانۍ کې و چې دده پلار وفات شو.
پلار یې ډېر خدمتونه او کارونه خپلو ولسونو ته په خپل ژوند کې ترسره کړي و، ولسونو ورته ډېر درنښت درلود.
ملک عبدالخالق د خپلو ولسونو په خوښه او غوښتنه د خپل کندي ملک شو او د خپل پلار لاره یې د ولسونو د خدمت لپاره غوره کړه نوموړی یو زړور، مخه ور او د نېکو اخلاقو په لرلو سره په خپل وخت کې ډېر کارونه کړي.

پر (۱۳۶۰ل) کال پاکستان ته هجرت وکړ او د ولسونو په یووالي او پیوستون کې یې د هر خدمتونه ترسره کړه د روسانو کمونیستو پوځیانو د ناکامۍ لپاره یې د خپلو ولسونو سره هلې ځلې کولې.

ملک عبدالخالق د منطقې د لوی قوماندان او جهادي شخصیت غازي خان د څونک سره ډېرې نږدې او پخوانۍ اړیکي لرل، د هجرت په کلونو کې زیات وختونه به یې له هغه سره ملاقاتونه او مجلسونه کول، په خپل ولس کې یې پوره محبوبیت درلود، د وطن د ابادۍ او د ولسونو د نېکمرغۍ ژوندون ارمان یې و.

د تړپک مارو او زورواکو څخه یې پوره عقیدتي کرکه لرله د بېوسو او مظلومانو د حق او حقوقو غوښتونکی و، نوموړی د (۷۵) کلونو په عمر په ناړۍ کې د ناروغۍ له کبله ددې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د ناړۍ په زورکڅ کې خاورو ته وسپارل شو، د لوی خدای پاک له درګاه څخه ورته جنتونه غواړو.

## د مرحوم حاجي محمد اکبر پېژندنه:



الحاج محمد اکبر د سید زوی د ناړې په مرکزي کلي کې پر (۱۳۱۱ل) کال سترګې نړۍ ته غړولې وې. نوموړی په لیک لوست نه پوهېده، خو په یوه درنه کورنۍ کې راپورته شوی و، د ځوانۍ په دوره کې یې د خیاطۍ چارې پرمخ وړلې، په ولسي او کلیوالي ټولنیزو کارونو کې یې برخه اخیستله، په شاهي رژیم کې خپله د مکلفیت عسکري دوره د دفاع وزارت په قطعاتو کې د کابل په ښار کې سرته رسولې وه.

د ډېرو ولسي قومي تجربو لرونکی شخصیت و، په پښتو، دري او کوهستاني ژبو پوهېده، په ولسونو او قومونو کې یې د نېکو اخلاقو په برکت ډېر محبوبیت درلود. د یو سپین نیتي او ساده مشر په توګه ولسونو دده درناوی کاوه.

کله چې د هېواد پاکې غېږې ته د وخت د شوروي اتحاد کمونیستي پوځونو یرغل وکړو، د خپلو بچیانو سره یوځای دیر او بیا چترال ته مهاجر شو د خپلو زامنو سره د مجاهدینو په لیکو کې تنظیم شو او د مهاجرت وختونه یې په چترال کې تېر کړل. پر

(۱۳۷۱ل) کال د اسلامي انقلاب تر بري وروسته د خپل هېواد غېږې ناړۍ ته ستون شو.

پر (۱۳۷۳ل) کال د ناړۍ د مرکزي کليوالو په غوښتنه د شورا د رئيس په توګه انتخاب شو، ډېر کلونه يې په ايمانداری سره د شورا رياست وکړ. نوموړی يو زړور او مهربان سپين ږيری و، د ولسونو او کليوالو سره يې ډېر ښه او نېک سلوک درلود. د ټولو قومونو سره يې ښې اړيکي لرل، د سولې او امنيت جدي غوښتونکی و او د ظالمانو او جګړو يې کرکه کوله.

د خلکو او قومونو د خپل منځي جنجالونو او دعوو د حل په جرګو کې يې په مينه ګډون کاوه او تل د خير غوښتونکی و د ولسونو په خدمت کې يې ستړيا نه احساسوله. تل به د ځوانانو په مجلسونو کې ګډون کاوه.

د نوموړي مشر ورور مرحوم محمد سيد نومېده چې هغه هم د وخت ښه سپين ږيری او جرګه مار مشر تېر شوی، د دوی په کورنۍ کې بل مشر صلاخان و چې د خپل وخت يو هوښيار قومي مشر په توګه تراوسه پورې د ښه نوم او شهرت خاوند ګڼل کېږي او د کونړ او چترال په جګړو کې برخه درلوده او په خپل وخت کې يې د ستاينې وړ کارونه کړي دي.

مرحوم حاجي محمداکبر څو کاله پرله پسې د قام او د ولسونو د خدمت په لاره کې د لوی خدای(ج) رضا لپاره ډېر د وياړ ډک کارونه سرته ورسول.

مشر زوی یې حاجي نوراکبر خان دی چې په سیمه او منطقه کې د نېکو اخلاقو له امله غوره موقف لري او د ښوونې او روزنې د چارو کارپوه دی. مرحوم حاجي محمداکبر د ناړې د مرکزي کلي د شورا رئیس د پېښې شوې ناروغۍ له کبله د جولای د میاشتې پر څلورمه نېټه ۲۰۰۸ کال د (۷۵) کلونو په عمر په ناړې کې وفات شو او د ناړې په بر کلي هدیره کې خاورو ته سپارل شوی، د لوی خدای(ج) له درګاه څخه ورته جنتونه غواړو. (امین)

# شهید وکیل الحاج شاطهماس خان ناړیوال



د ناړې په مرکزي کلي کې په یوه درنه بزګره کورنۍ کې یې سترګې نړۍ ته غړولې وې. د حضرت علي زوی او د ګل سید لمسی دی دا په منطقه او سیمه کې یو روښانه او ښکاره لویه کورنۍ وه او د ناړیوال صاحب د کورنۍ مشران د علم زده کړو ته ډېر زیات ارزښت ورکاوه او د نوموړي د علم او پوهې زده کړو ته پوره پاملرنه شوې وه، خپلې لومړنۍ زده کړې یې د خپل کلي په جومات کې د لایقو او پوهو استادانو څخه ترسره کړې وې او د لوړو زده کړو لپاره یې سفرونه کړي وو او د وخت د لوړو پوهانو او دیني عالمانو څخه یې زده کړې ترسره کړې وې. د دوی په کورنۍ کې ډېر لوړ علمي شخصیت دده سکه تره ملک میرزا سید علي خان په خپل وخت او زمانه کې ډېر شهرت درلود او د استقلال د ګټلو په څلورمه جبهه کې روښانه دندې ترسره کړې وې.

ناړیوال صاحب په کوهستاني، پښتو، دري، عربي ژبو پوهېده او ښه لیکل لوستل یې کولی شو او د دفتردارۍ او اداري چارو کې یې پخه تجربه درلوده. د یو مینه ناک او زړه سواند او وطندوست انسان په صفت ټولو ولسونو کې ښکاره مقام درلود. د لیک او میرزایي په اړه یې ځانته خاص میتود او قاعده درلوده ډېر خوش

نويس ليكونكي په توګه ښه نوم درلود. نوموړي د خپل لياقت او پوهې په اساس د کونړونو په ولايت کې د اسمار د ولسوالۍ وکيل پاتې شوی و او ولسونو او قومونو ته يې ډېر ښه ښه خدمتونه ترسره کړي وو، يو هوښيار، لايق، نېک خويه، علم پرور شخصيت و. د ولسونو او قومونو په منځ کې يې لوړ باور او پوره اعتماد او محبوبيت درلود. په شاهي او جمهوري نظامونو کې يې ډېرې حکومتي چارې ترسره کړې وې. په همدې توګه د برګمتال، کامدېش، نرنګ ولسواليو او د ولايت په مرکزي ادارو کې يې حکومتي چارو کې دندې اجرا کړې وې. نوموړي ډېره روښانه نظر او ژور خيالات او لوړ فکر درلود يو خوش خويه، نېک عمل، متقي با درده، مېلمه پاله، ويښ، چابک او تحليل ګر، جرګه مار مشر په توګه په ولسونو کې لوړ مقام درلود.
ناړيوال صاحب په ټولنيز ژوندون په چارو کې د خير او د يووالي د پيوستون په کارونو کې ښکاره شخصيت ګڼل کېده. د ځوان نسل د ښوونې او روزنې په برخه کې يې ډېر ارزښتناکه کارونه ترسره کړي و. د هلکانو او نجونو په علم او پوهې په زده کړو کې يې پوره ونډه درلوده او د هلکانو او د نجونو د نوي نسل ښوونه او روزنه يې د ټولنې او د وطن د پرمختګ لپاره اصلي اساس ګڼلو او تل به يې خپلو ولسونو او قومونو ته په ټينګار او علمي تحليل سره ويل چې تر هغه پرمختګ نه شو کولی تر څو ځوان نسل په علم او پوهه سمبال نه شي. ناړيوال صاحب يو مهربانه، ايماندار ولسواک مشر

په توګه د زياتو ولسونو او قومونو سره ډېرې نږدې اړيکې او پېژندګلوي درلوده او خلکو ورسره ډېره مينه او محبوبيت درلود او درناوی يې کاوه.

په کال ۱۳۶۴ل کې د خپل وطن په غېږه کې شهيد شو او د کابل د مرکزي ښار د ميرنجان په غونډۍ کې خاورو ته سپارل شوی، لوی رب العالمين دې ورته جنتوهه په نصيب کړي.

د ناړيوال صاحب زامن هر يو حاجي ميرزمان ناړيوال چې د وخت په شوروي اتحاد کې يې د اقتصاد په رشته کې لوړ تحصيلات ترسره کړي دي او په همدغه رشته کې يې په اعلی درجه ماسټري کړې ده ډېرې حکومتي دندې يې ترسره کړي. يو علمي مسلکي کدر دی او اوسمهال د نورستان ولايت د بانک رئيس دی. حاجي غلام نبي ناړيوال په هکله ددې کتاب په پاڼو کې پېژندګلوي لوستلی شئ.

درېيم زوی يې شهيد اعطامحمد ناړيوال و چې په تنکۍ ځوانۍ کې يې د وطن او د ولسونو په مينه په ۱۳۷۲ل کال سپېڅلی شوی چې په دعا سره جنتونه ورته غواړو. امين.

# د شېرمحمد قاطع پېژندنه

شېرمحمد قاطع د بريکوټ په بر کلي کې پر ۱۳۴۱ ل کال سترګې نړۍ ته غړولي دي. شېرمحمد د سلطان محمد زوی د عبدالغني لمسی او د محمدخان کړوسی دی. نوموړي خپلې لومړنۍ زده کړې د بريکوټ په جومات او لېسه کې د دولسم ټولګي پورې پای ته رسولي دي او وروسته د کانکور د ازموينې د برياليتوب په اساس د وخت د شوروي اتحاد د پوليسو اکاډمۍ لوستلې او په لوړه درجه ډيپلوم يې ترلاسه کړی او د هېواد غېږې ته ستون شوی او د کورنيو چارو په وزارت کې د پوليسو په ليکو کې دندې اجرا کړې دي.

نوموړی يو لايق مسلکي، هوښيار، چالاک او د افسر په توګه په بېلابېلو ولايتونو او لويو بستونو کې د خپل لياقت او اهليت په وجه په بري سره دندې ترسره کړې دي.

د خپل هېواد او خپلو ولسونو سره ډېره مينه لري او خپله خوښۍ او نېکمرغۍ د خپل هېواد او د خپلو ولسونو په خوښۍ او نېکمرغۍ کې لټوي.

قاطع صاحب د لوړو خيالاتو او ژور فکر سره د خپل هېواد يو مسلکي کدر دی د افسرۍ او مديريت په چارو کې ډېره پخه تجربه لري، د ظالمانو او زورواکو څخه پوره کرکه لري او د مظلومانو او د اهل هوښيارو افغانانو سره ډېره مينه لري او په سرلوړۍ سره يې ډېرې د وياړ دندې خپل هېواد او ولسونو ته سرته رسولي دي.

قاطع صاحب په ګواري، پښتو، دري، روسي ژبو ښه پوهېږي او ليکل لوستل کولی شي نوموړی د خپل لياقت او اهليت په اساس په ولسونو کې د پوره محبوبيت خاوند دی او په بريالیتوب سره يې ډېرې پېچلې دندې په مېړانه پای ته رسولي دي د خپل خدمت په موده کې يې ډېر شمېر مډالونه او نښانونه او تقدير نامې ترلاسه کړي دي، چې همدا اوس د پوليسو په ليکو کې پو پېژندلی شوی لايق کدر ګڼل کېږي.

# د ناړۍ کليوالي مرکزي شورا جوړېدل

د ناړۍ مرکزي ولسونه او کليوال پر (۱۳۷۱ل) او (۱۳۷۲ل) کې اکثريت يې چې د چترال په دروش کلکتاک کيمپ کې ژوند درلود د خپل هېواد غېږې ته ناړۍ ته راستانه شو، په دغه کلونو کې تش په نامه د مجاهدينو حکومتداري روانه وه، خو قانوني حکومتي سيستم برابر نه و، ګاونډي هېوادونو او نورو د غرض خاوندانو، سازمانونو خپل تور لاسونه زموږ د هېواد پاکې لمنې ته غځولي و. په ټول هېواد او د خصوصاً د کونړ په ولايت کې امنيتي حالات ډېر کړکېچن شوي وو، تنظيمي او خپل منځي درنې جګړې روانې وې او يوه ورځ د بلې ورځې څخه بدتر وه او په ښکلو او رنګينو سردرو کې د اور لمبو تورو لوګي د اسمان ته پورته کېدل، په ټولو ولسونو او قومونو ترخې او تورې نه هېرېدونکې دردوونکې او بوږنونکې شپې او وختونه و او د هېواد د ولسونو هيلې په اورونو سوزېدل چې تاريخ شاهد دی.

د ناړۍ ولسوالۍ چې يوه غرنۍ او سرحدي ولسوالۍ ده او پراخه ساحه سيمه ګڼل کېږي. ددې ولسوالۍ مرکزي ولسونو ته ډېر جنجالونه، دعوې او د يو بل په جايدادونو باندې د زورواکو بريدونه، نيوکې يرغلونه په ښکاره روان و، هر تنظيم او هر زورواک کوښښ کاوه چې ځانته ډېر محلات ونيسي او ولسونه د

ټوپک د ماشې په زور په خپل تسلط او قبضه کې وساتي چې زيات مظلوم ولسونه خپل د وطن غېږې ته په راتلو پښېمان ښکارېدل چې دا ډېرې ترخې لحظې او شپې وې. ډاکوان او لاروهونکي په خپلو ناوړو او غير انساني اعمالو په ترسره کولو لګيا وو، د وطن د دښمنانو او د پرديو د مزدورانو له خوا د وطن په ملي شتمنيو باندې چور چپاول په بې رحمانه توګه په ټول هېواد کې دوام درلود په دغه تنظيمي او ځانځانۍ جګړو کې اباد کلي ښارونه کورونه کنډر کنډر شو. په شنو باغونو او رنګينه سردرو کې تنکي ګلونه خاورې ايرې شول.

د ناړې د مرکزي ولسونو هم دغه حالات و او د ترخو تورو شپو سره مخامخ شوي وو، په دغه وختونو کې د ناړې په ساحه کې د وطن د دښمنانو له خوا په بې رحمانه توګه په ځو ساحو کې د ځنګلونو وهلو او پرېکولو کارونه په چټکۍ سره مخ په وړاندې روان و، په هر طرف زورواکو او کمېشن کارو د پرديو په لمسون او د پيسو په زور ځنګلونو ته سړکونه رسولي وو، چې دغه سړکونه په زراعتي ځمکو او حتی د کلو په منځ کې د چا جايداد کور منډو کوټه، تنور، نغرى، دېوال ته پاملرنه نه وه شوې، سړکونه جوړ شوي وو، چې د ځنګلونو لرګي (اډو) او هوارو ته انتقال شي، چې د ناړې مرکزي ولسونو ته ډېر زيات جنجالونه او خطرناکه لوبې جوړې شوې وې.

په دغه خطرناکو دسیسو او لوبو کې د داخلي او بهرنیو ټیکه دارانو او زورواکو، قاچاقبرانو او کمیشن کارانو تور لاسونه او تور هدفونه شریک وو، چې دا ټول ناروا عملونه د زورواکو غداري عملونه ګڼل کېږي او د لوی خدای(ج) د اسلامي احکاماتو څخه ښکاره سرغړونه او نافرمانۍ څخه بله مانا نه لري.

د ناړې ولسونو د مجبوریت له مخې د ناوړه او خطرناکو پېښو د مخنیوي لپاره د کورنیو د ابرو او پت د ساتلو په منظور د ولسونو د لارښوونې لپاره د زورواکو او قاچاقبرو د ناروا اعمالو د مخنیوي لپاره پرېکړه وکړه چې یوه کلیوالي شورا جوړه کړي.

پر (۱۳۷۲ل) کال د ټولو کلیوالو په غوښتنه کلیوالي شورا جوړه شوه چې ددې شورا رئیس حاجي محمداکبر د ټولو په خوښه انتخاب شو. ددې شورا د جوړېدو سره سم کلیوالي یووالی ټینګ شو او د لوی خدای(ج) په رحم سره د ډېرو خود سره حرکاتو مخنیوی وشو او ډېر مثبت نتایج یې ورکړل. که څه هم د سولې او امن مخالفینو ددې شورا د جوړېدو سره سم وارخطایي وکړه د شورا په ضد یې ناسم تبلیغات وکړل، خو د شورا په کار یې کوم منفي تاثیر ونه کړ، نوې جوړې شوې شورا د خپلو کلیوالو او کورونو، ناموسونو او جایدادونو د دفاع او ساتنې لپاره وسله وال ګروپونه جوړ کړل، تر څو په سیمه او کلي کې د ځان ډاډمن امنیت تامین شي او د ناوړو پېښو څخه مخنیوی وشي، شورا به د اړتیا په وخت کې غونډې او ګډې پرېکړې کولې، ټول ولسونه یو موټی شو په شورا

کې اکثریت غړي د یو فکر او یو هدف لرونکي وو، د ګوتو په شمار کسانو غوښتل چې قام او ولس ته د پردیو په لارښوونه ناوړه پېښې پیدا کړي او خلکو ته دښمني ولتوي چې د خپلو نوکرانو په ذریعه ځانته ګټه وکړي، چې یو شمېر کسان د ایتلاف په نوم د شورا په پرېکړو کې ګډ او شریک شي دارنګه ایتلاف وشو چې د ایتلاف په خوږو او غولېدونکو خبرو او فریبکارۍ مانا لرله، چې دوست مو یو دی دښمن مو یو دی هدف مو یو دی. د ایتلاف د کسانو سره د پردې تر شا بهرنیو ټیکه دارانو لاس درلود او شخصي ګټې یې په نظر کې وې، د ایتلاف کسانو هدف دا و چې اوبه خړې کړي او ماهیان ونیسي او د ناړۍ ولسونو ته خطرناکې پېښې منځته راوړي.

کله چې په یوه جوړه شوې دسیسه کې د ناړۍ یو ځوان زلمی رحمن الدین په ولسوالۍ کې په وینو سور او شهید شو او بل ځوان زلمی په کلي کې شهید شو، ټول ولسونه لوی او واړه پوهه شو چې دا ایتلاف نه دی دسیسې دي او د کاسې لاندې نیم کاسه ده، ایتلاف ډېر ژر منحل شو او د هر چا هدف خلکو ته رسوا شو، حاجي صاحب محمد اکبر رئیس د شورا په دې اړه داسې وایي: زه د لومړۍ ورځې پوهېدم دا ایتلاف مقصدي دی او د ایتلاف څخه کسان موږ ته نوي خطرناکه لوبې جوړوي په ظاهره زموږ سره خوږې خبرې کوي خو په پټه راته دسیسې جوړوي، همداسې وشو.

دغه ایتلافونو د ناړې مرکزي ولسونو ته څه ګټه ونه رسوله خلکو ته ډېر اقتصادي تاوانونه پېښ شو د ځنګل او د سړکونو او اډو عواید نادرک شو او حتی زموږ ولسونو ته نه هېرېدونکي مسایل منځ ته راغلل؟ او ځاني قرباني مو ورکړې؟؟

ځینې مسایل د لوی خدای(ج) په رحم سره ختم او ځینې مسایل تر اوسه پورې ناحل پاتې دي دا چې دېرش کاله کېږي د وطن په غېږه کې د جګړو اورونه بلېږي او د تورو باروتو تور او زهر لرونکي لوګي پورته کېږي تر اوسه پورې لا پوره امن امنیت نه شته که خدای(ج) رحم وکړي او رضا شي امنیت منځته راشي او د خلکو ټپي زړونه ټکور شي پوره باور لرو چې ناحل مسایل به هم په بري ختم شي.

# الحاج سیدامین خان کوهستانی



حاجي سیدامین خان د سید علم زوی پر (۱۳۳۲ل) کال د دوکلام په سرحدي کلي کې په یوه بزګره او بېوزله کورنۍ کې نړۍ ته سترګې وغړولې، خپلې لومړنۍ زده کړې یې تر شپږم ټولګي پورې د بریکوټ په ښوونځي کې وکړې، په ډېر کوچنیتوب کې د پلار او د مور له محبت او شفقت څخه محروم او تها پاتې شو.

مشران او کشران ورونه یې نه درلودل، خو د نومړي ماما چې جمعه الدین نومېده یو ډېر لایق پوهه ښوونکی و او د علم او تعلیم په برکت او کمال ښه پوهېده د نومړي د زده کړو او تعلیم ته یې ډېره پاملرنه وکړه. جمعه دین یو سرشار او مېلمه پال او باننګ ځوان و او د ولسونو د قومي مشرۍ ویاړ ورته په برخه و، په خپل وخت سره ډېره زیاته پېژندګلوي یې لرله او د خلکو د درناوي وړ شخصیت ګڼل کېده، د خپلې خور د زوی سره یې ډېره مینه او مهرباني لرله.

پر (۱۳۴۵ل) کال يې کوچنی او تنکی سيد امين خان د کابل د ابن سينا په اعلی ښوونځي په اوم ټولګي کې شامل کړ، پر (۱۳۵۱ل) کال د دغې ښوونځي د دولسم ټولګي څخه په اعلی درجه فارغ شو.
سيد امين خان په خپله هم د علم او پوهې سره ډېره مينه درلوده او په دغه کلونو کې دده ماما جمعه الدين په يوه خطرناکه وطني پېښه کې له دې فاني نړۍ څخه يو ناڅاپه په ځوانۍ کې سترګې پټې کړې چې نوموړی د کورنيو ستونزو سره لاپسې لاس او ګرېوان شو او د لوړو زده کړو څخه هم محروم پاتې شو. حاجي سيد امين د زمانو ترخو ازمونونو سره مخامخ شو، خو په خپله اراده کې په ټينګه سره ودرېده. د نوموړي سره دده ترور چې د ناړۍ د ملک حاجي رحمت نور مېرمن وه او د جمعه الدين ملک خورده په کلکه ودرېده، د ښوونځي په دروان کې يې ورسره ډېره مالي مرسته وکړه، خو حاجي سيد امين خان يې بل چاته محتاج نه کړ، نوموړی يې تعليم او تحصيل ته تشويق کړ، حتا ترور يې د خپل تن شخصي زېورات د نوموړي لپاره خرڅ کړي وو.
سيد امين خان لا تنکی ځوان و چې پر (۱۳۵۲ل) کال د کابل په ښار کې د ښاروالۍ په رياست کې مامور مقرر شو او ډېر کلونه د کابل ښاروالۍ د مامور، امر، او مدير په توګه رسمي کارونه ترسره کول چې پر (۱۳۵۸ل) کال چې يو ناڅاپه د شوروي اتحاد د کمونيستو پوځيانو له خوا زموږ په هېواد ناروا يرغل وشو او واکمني تش په نوم کارمل ته وسپارل شوه، نور نو د وطن غېږه ورته

تنګه شوه او په اسلامي او افغاني جذبه د جهاد لپاره پر (۱۳۵۹ل) کال د پاکستان چترال ته د خپلو کورنیو غړو سره مهاجر شو.

سید امین خان په چترال کې په ډېره لوړه او اسلامي روحیه د وطن د ازادۍ لپاره د شوروي اتحاد د کمونیستو پوځیانو په ضد او د کارمل رژیم په ضد په مبارزه کې فعاله ونډه واخیسته په ډېر لږ وخت کې یې د مجاهدینو او ولسونو په منځ کې د نېکو اخلاقو او کردار په سبب پوره محبوبیت ترلاسه کړ او ډېر ولسونه او قومونه یې د جهاد د لښکرو د تقویت او د مورچلونو د لا ټینګښت لپاره وسله والې مبارزې او جهاد لپاره پاڅول په ډېره مېړانه او ایمانداري سره د هېواد د بېلابېلو ولایتونو مجاهدینو مورچلونو ته د جهاد لپاره ګډون وکړ او په خپله د خپلو ملګرو سره د شوروي پوځیانو په ضد په مخامخ جګړو او بریدونو او یرغلونو کې ګډون وکړ او په سرلوړۍ سره یې ډېرې بریاوې درلودې چې د افغانستان مجاهدین به یوه ورځ کامیابېږي.

نوموړی یو زړور مجاهد و، تل به د خپلو ملګرو او دوستانو په محفلونو کې مورچلونو کې په ورین تندي ګډون کاوه یو یارباش، مهربان انسان و په مېلمله پالنه کې یې ډېره مهرباني درلوده د ښه دسترخوان خاوند و.

ډېره پېژندګلوي یې لرله یو ولسي او د لوړ او ژور فکر لرونکی شخصیت و. نوموړي به ډېرې خبرې نه کولې خو د ملګرو خبرو ته به

يې په مينه غوږ نيوه، يو اورېدونکی ارام او نېک خويه سړی و، چې تل به يې په شونډو موسکا ښکارېدله.

سيد امين خان يو ولسيي قومي مشر په توګه د ولسونو او قومونو سره ډېرې نږدې او ټينګې اړيکي لرل، تل به يې د ولسونو او قومونو په جرګو او مرکو او د خير په مجلسونو کې ګډون کاوه او د سيمې او منطقې يو ښه جرګه مار مشر په توګه شهرت درلود. په جرګو کې يې رغنده رول درلود، خبره يې خبره وه او بيان او پرېکړه او قضاوت يې ښکاره و، تل به يې د بېوزلو او حق دفاع کوله، د مشرانو او سپين ږيرو سره يې ډېر بې ريا او پاکې اړيکي لرل.

نوموړی د جهاد په دوران کې د خپلو مجاهدينو ملګرو سره د ګروپ د مشر په توګه د قوماندان او د آمر په توګه ډېر په مېړانه عملي کارونه د جهاد او د هجرت په کلونو کې ترسره کړي دي.

امين خان د مجاهدينو او افغان ولسونو د يووالي او پيوستون لپاره مبارزه کوله او په دې خبره ښه پوهېده چې د يووالي لاره د بري لاره او د ځانځانۍ لاره د ناکامۍ لاره ده، نوموړي په وطن کې په تنظيمي جګړو کې ونډه نه درولده او د تنظيمي او ځانځانۍ د جګړو يو جدي مخالف ګڼل کېده.

د هجرت په دوران کې د مجاهدينو د عبوري حکومت په چوکاټ کې پوځي رتبه د ډګروالۍ ورته ورکړ شوې وه، نوموړی د جهاد او د هجرت په کلونو کې د حج فريضه ادا کړې وه او د سولې او سراسري

امنیت او افغانانو د پیوستون په اړه یې تل د ولسونو سره خبرې کولې.

حاجي سید امین د هېواد او د ولسونو په حالاتو او سیاسي او پوځي حالاتو ښه پوهېده کله چې د ډاکتر نجیب الله رژیم پر (۱۳۷۰ل) کال سقوط او د مجاهدینو حکومت منځته راغی د خپل هېواد غېږې ته راستون شو د خپلو ولسونو سره یوځای د وطن د ابادۍ ملي پیوستون او امن لپاره مبارزه کوله او د ولسیي قومي جنجالونو، شخړو د حل په لاره کې ډېر کوښوونه کول.

پر (۱۳۸۰ل) کال چې د نړیوالو او امریکایي پوځونو په ملاتړ د حامد کرزي رژیم په کابل او هېواد کې واکمني ترلاسه کړه پر (۱۳۸۱ل) کال د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت د اساسي قانون د جوړولو په لویه جرګه کې د کونړ د ولسونو او قومونو له خوا د منتخب نماینده په توګه په لویه جرګه کې د ګډون ویاړ درلود، چې څه وخت وروسته د کونړ ولایت د ښاروال په توګه مقرر شو چې څو کاله په بریالیتوب سره خپله دنده په ښه توګه اجرا کړه.

حاجي سید امین کوهستانی د رسمي دندو په اجرا کې ډېر ستاینلیکونه او تقدیرنامې او یو مډال اخیستی نوموړی پر (۱۳۸۷ل) کال د مرغومي د میاشتې پر (۹) نېټه د ورپېښې ناروغۍ له امله د بریکوټ په روغتون کې له دې فاني نړۍ څخه خپلې سترګې پټې کړې. دده روح دې ښاد وي، د خدای(ج) له درګاه څخه ورته جنتونه غواړو.

د نوموړي زامن هر یو:

۱- حاجي رفيع الله امين، ۱۴ پاس
۲- قاري صديق الله امين
۳- عرفان الله امين
۴- اسد امين
۵- ساجد امين
چې ټول په زده کړو بوخت دي، روښانه اينده ورته غواړو.

# کیمپ ته د حکمتیار راتګ

د ناړۍ مرکزي او سیدونکي کلیوال په عمومي ډول سره تقریباً باسواد او تعلیم یافته کسان ګڼل کېږي. دغه خلکو د خپلو بچیانو د علم او پوهې د زده کړې په لاره کې ډېر کوښښونه کړي دي او په دغه لاره کې یې ډېره مالي قرباني کړې ده، د علم او د پوهې په برکت چې زیات ځوانان د علم او پوهې د حاصلولو لپاره کابل او جلال اباد په ښوونځیو کې او په بېلابېلو پوهنتونونو کې په زده کړو بوخت وو زیاتو خلکو ددې کار له امله ناړۍ کلي ته د مسکو لقب ورکړی و.
کله چې د ناړۍ مرکزي ولسونه چترال ته مهاجر شو ددې باعزته او با ابرو مسلمانو خلکو په ضد ډېرو د غرضونو خاوندانو بېځایه تبلیغات وکړل دومره وخت لا دغو خلکو د مهاجرت شوی نه و چې د حزب اسلامي مشر ګلبدین حکمتیار چترال ته ددې خلکو د لیدلو لپاره پر (۱۳۶۱ل) کال د دروش ګله ټاک کیمپ ته راغی. د ناړۍ خلکو د هر کار څخه مخکې د جامع جومات جوړولو پرېکړه کړې وه او د عبادت کولو لپاره د جومات تعمیراتي کارونه ترسره شوي وو، حکمتیار جامع جومات ته راغی چې ډېر ملګري ورسره په دې سفر کې ملګري وو، هر چا د ځان او خپلو بچیانو لپاره یوه یوه کوټه او سرپناه جوړه کړې وه، حکمتیار ددې کیمپ د خلکو په لیدلو سره او د جومات په لیدلو سره ډېر زیات خوښ شو، د ماسپښین لمونځ یې

په جمع سره وکړ او د کیمپ اوسېدونکو ته چې ټول کوهستاني دلته اوسېدل یوه لارښوونکې وینا وکړه او په خپلو خبرو کې یې وویل:
د کونړ په ولایت کې تاسې د قلم او د علم او پوهې په اساس زه پېژنم او تاسو ته درناوی لرم دا چې تاسو نوي دلته په مهاجرت راغلي یاست تاسو ته د هجرت مبارکي درکوم تاسو ته د سپېڅلي جهاد په لاره کې د لوی خدا(ج) له درباره بریالیتوبونه غواړم ډېر خوښ شوم چې په چترال کې ستاسو کیمپ ګورم او هرچا یوه یوه کوټه جوړه کړې ده، جامع جومات مو جوړ کړی، ستاسو مینه د اسلام او دین سره ستاسو مینه د خپلو بچیانو سره ماته ثابته شوه، څه غلطې خبرې چې ستاسو په هکله راته شوې وې ستاسو په لیدلو راته هر څه روښانه شول، پر تاسو افرین وایم کامیاب او په عزت اوسئ. ډېر ولسونه شته چې مهاجر شوي خو تراوسه پورې د جومات په جوړولو بریالي شوي نه دي، ددغه جومات په لیدو ماته څرګنده شوه چې تاسو ویښ او زړور خلک یاست زه او زموږ ګوند حزب اسلامي ستاسو په خدمت کې یو هر څه ستونزې چې لرئ موږ ستاسې خدمت ته چمتو یو، ستاسو د هر ډول ستونزو د حل لپاره به موږ هلې ځلې وکړو، ستاسو مجاهدینو ته به وسلې ورکړو اوس چې زموږ په هېواد باندې روسي کمونیستانو یرغل کړی تاسو پوهېږئ چې هېواد نن څه غواړي، اوس د جهاد او د قربانۍ وخت دی په ایماندارۍ سره په اسلامي جذبې سره د جهاد په مورچلونو کې ودرېدل په کار دي، وطن د خپلواکۍ لپاره قربانۍ غواړي

حکمتیـار وویـل، زمـا د راتـګ اساسـي مقـصد ستاسـې لیـدل او ستاسـې د سـتونزو د حـل لاره لټـول دي، تاسـو تـه بریـالی او خوښ ژونـد غـواړم، خپلو کوچنیـانو تـه دینـي درسـونه او ښـوونځي فعـال کړئ وطن په پوهه جوړېږي نه په ناپوهۍ.

وروسـې خـو تنـو کوهستانـي مـشرانو خبرې وکـړې او د حکمتیـار د راتګ څخه د پېښور په چترال د کوهستانو کیمپ ته ډېره مننه وکړه او هغه ته یې د جهاد په لاره کې د ډېرو بریالیتوبونو لپاره دعا وکړه.

دغه درنه غونډه په اجتماعي دعا سره پای ته ورسېده او حکمتیار د خلکو سره د خبرو اترو وروسته پېښور ته د خپلو ملګرو سره ستون شو، نوموړی د تنظیمونو مشرانو څخه یوائیني او لومړی مشر و چې چترال ته د کوهستانو د کیمپ لیدلو تـه راغلی و او د ناڕې د خلکو څخه یې قدرداني وکړه او خپل ملاتړ یې اعلان کړ، چې د حکمتیـار وروسـته حـضرت صـبغت الله مجـددي هـم ددې خلکـو د لیدلو او خبرو لپاره راغلی و.

# کوهستاني په دیر کې

دیر د پېښور شمال خواته او د چترال جنوب خواته یوه لویه رنګینه دره ده، ډېر ګڼ شمېر قومونه او ولسونه په دیر کې ژوند کوي دیر ډېره پراخه ساحه لري او هره خوا رنګیني سردرې لري، چې په دیر کې ډېر کوهستاني اوسېږي او ولسونه یې په زراعتي او مالدارۍ چارو بوخت دي. پرته د دیر د مرکز څخه په لاندې کلیو کې کوهستاني خلک ژوند کوي:

۱- بره جبه (جبه بالا)

۲- لره جبه (جبه پائین)

۳- کړاکړ

۴- چونچیر

۵- مابنامی

۶- کمو

۷- کڅ، دغه کلی په شینګاړه دره کې دی

۸- هیودو

د پورته ذکر شویو کلیو ولسونه خپله کوهستاني ژبه هېره کړې په پښتو خبره کوي، خو په ختمه کاټني کوهستاني دي. ډېر زړور ایماندار او مېلمه پال خلک دي، په غرو رغونو کې ژوند کوي په دیر کوهستان کې نجم الدین خان ډېر زیات مشهور شخصیت ګڼل کېږي او د پاکستان په مرکزي حکومت کې وزیر هم پاتې شوی. ډېر

زيات ملاتړ لري او د ولسونو له خوا ورسره پوره ملاتړ کېږي، نو ځکه يو قومي او ولسي شهرت ورته په نصيب شوی په همدې ترتيب امير شاهين د دير د ولسونو يو زړور او مهربان مشر پاتې شوی چې همدا اوس هم په دير کې د خيبر پښتونخوا حکومتي اداره کې د دير د ولسونو منتخب وکيل دی.

# کوهستاني په سوات کې

د سوات له نوم سره ټول افغانان پوره اشنايي لري، سوات يوه لويه او رنګينه دره ده چې نورې ډېرې رنګينې او سمسورې شنې منظرې لرونکې سردرې لري. د سوات د رنګينه سردرو په ليدو سره هر انسان خوښي احساسوي، پاکې رڼې اوبه او ښکلې هوا او فضا لري چې شاوخوا غرونه يې په شنو زينتي ونو پټ ښکاري، شنه شنه چمنونه او روانې اوبه يې د هر چا زړه ځانته راکشوي.

د سوات علاقه په خيبر پښتونخوا کې د سيلانيانو لپاره يوه مشهوره او غوره دره ده چې هر کال د دوبي په موسم کې په زرګونو ولسونه ددې سيمې د ليدلو لپاره مېلو او چکرو ته ورځي. دغه رنګينه دره ډېرې خوږې مېوې لري، د سوات مرکز د مينګورې ښار دی په سوات کې ډېر قومونه ژوند کوي ددې سيمې په مرکز او سردرو کې د نورو قومونو سره کوهستاني هم ژوند کوي چې مشهور محلات يې په لاندې ډول سره دي چې دا د کوهستانو مشهور د ژوند ځايونه ګڼل کېږي:

۱- کالام، Kalam

۲- بحرين، Bahrin

۳- مديين، Madyin

۴-بيشام، Bisham

بیشام یو غټ کلی دی چې مخې ته یې د اباسین غټ سین په څپو څپو د شمال نه لویدیځ خواته روان دی، چې بیشام ته یې لاپسې ښکلا ورکړې ده.

۵- چیکه سر، Chikasar

۶- شینګه، shingla

په سوات مرکز او سردرو کې ډېر نور اباد کلي کورونه شته چې کوهستانو د ژوند محلات ګڼل کېږي، ددې ځای کوهستاني ولسونه هم د نورو په شان په زراعتي او مالداري چارو بوخت دي. خلک یې زړه سوانده، مهربان. زړور او په مېلمه پالنه کې پوره شهرت لري.


دود مليک
گل خندان
گل رندان
گل سيد
ميرزا سيد علي
حضرت علي
حاجي شاطماس
حاجي غلام خان
حاجي عصمت الله
حاجي شيرمحمد
عبدالمنان
عبدالرزاق
عبدالحق
عبدالستار
عبدالصمد

# اتل شهید شېرمحمد



شهید شېرمحمد د عبدالغفار زوی د ناړې د کلي اوسېدونکی و. نوموړی اتل شهید یو مظلوم، خواریکښ، بزګر، ساده کلیوال و، خو په ایمان او افغاني غرور کې د ټینګې ارادې لرونکی و او همېشه به یې د خپلو بچیانو د حلال رزق د ترلاسه کولو لپاره په بزګرۍ کارونو لګیا و، ستوماني او ستړیا یې نه درلوده. پر (۱۳۶۰ل) کال کله چې د هجرت کولو لپاره نیت وکړ خپل اولادونه یې د چترال سیمې ته د نورو کلیوالو او خپلوانو سره یوځای روان کړل، لا بچیان یې په لاره روان وو چې نوموړی د خپل کور د سامان د ځای په ځای کولو او خوندي کولو لپاره په کلي کې پاتې و چې یو ناڅاپه د ناپېژاندو وسله والو غلو سره مخامخ شو. وسله والو غلو د شېرمحمد څخه وغوښتل چې خپله د لاس وسله ورته تسلیم کړي، خو شېرمحمد د غلو خبره ونه منله او ورته یې وویل: زه مسلمان یم مظلوم او بزګر یم د جهاد لپاره مې د هجرت لاره نیولې ده روان یم، تاسو زما سره مستي او زور مه کوئ، له خدایه وېره په کار ده ظلم مه کوئ، وسله والو شمېر څو تنو ته رسېده. شېرمحمد په دغه وخت کې یوازې و، وسله والو غلو یو ناڅاپه نوموړي باندې د ماشیندار ضربه وکړه ځای پر ځای

وغورځېده او د الله اکبر ناره يې وکړه، ډېر سخت ټپي شوی و. وسله وال کسان يې خواته راغلل د هغه د غاړې ټوپک او غاړکۍ يې له ځانه سره په تيښته يوړه. په کلي کې يو بوډا سپين ږيری سړی پاتی و هغه ددې کيسې څخه خبر شو او د اتل شېرمحمد خواته يې ځان ور ورساوه چې ګوري شېرمحمد په خپلو وينو رنګ پروت دی او څو ځايه ټپي شوی، بوډا سپين ږيري غوښتل چې د شېرمحمد سره مرسته وکړي، ډاکټر او ورغتون نه و.
شېرمحمد خپل کليوال بوډا ته وويل: کاکا څه کوې؟
بوډا ورته وويل:
ستا زخمونو تړلو ته څه ګورم
شېرمحمد چې خپلو وينو کې رنګ شوی ښکارېده!
بوډا ته يې ورو وويل:
کاکا جانه!
لږه خاوره زما د لاس ورغوي ته واچوه!
بوډا لږه پاکه خاوره د هغه ورغوي ته واچوله
شېرمحمد د خپل ورغوي لږه خاوره خپلې خولې ته واچوله او ځان ته يې د شهادت کليمه په خپله وويله!
بوډا حيران پاتې شو!
شېرمحمد شهيد شو او خپلې سترګې يې په ارمان د فاني نړۍ څخه پټې کړې.
خدای دې ورته جنتونه په برخه کړي.

يادونه: ددې اتل زامن هر يو شامحمد، بازمحمد او مسافرخان نومېږي.

# اختر کوهستانی

اخترجان کوهستانی د محمدشاه زوی د ناړې ولسوالۍ په مرکزي کلي کې پر (۱۳۳۲ل) کال په یوه بېوزله بزګره کورنۍ کې دې نړۍ ته سترګې وغړولې. لومړنۍ زده کړې یې په



خپل کلي کې پایته ورسولې او دیني زده کړې او قران شریف یې په ناظره توګه په خپل جوماتکې زده کړل. له هماغه کوچنیتوبه یو زیرک او هوښیار هلک ښکارېده، د شپږم ټولګي د فراغت سند یې ترلاسه کړ. د کانکور د ازموینې په نتیجه کې د کابل ابوحنیفه مسلکي دیني ښوونځي ته بریالی شو. پر (۱۳۵۴ل) کال د دولسم ټولګي څخه په اعلی درجه د فراغت سند ترلاسه کړ، د اقتصادي ستونزو له امله یې ونه شو کولی چې لوړ تحصیلات وکړي، دا چې د عالي تحصیلاتو سره یې ډېره مینه وه چې د مالي لګښتونو توان یې نه درلود. نوموړی ډېر ښه ذهن او فکر او لوړ استعداد درلود.

پر (۱۳۵۵ل) کال د مزدورۍ لپاره پاکستان ته ولاړ چې څو کاله یې هلته د مزدورۍ په کارونو کې تېر کړل او د انګرېزي او د ټیپستي کورسونه یې ووېل. یو اندازه انګرېزي او پښتو، دري، اردو او انګرېزي ټیپستي کارونه یې په ښه توګه زده کړل، بېرته د

وطن غېږې ته راغی په کابل کې د ترانسپورت په وزارت کې ټایپست مقرر شو، نوموړی په پښتو، دري، کوهستاني، اردو او انګرېزي ژبو کې ښه پوهېده، لیک لوست یې کولی شو. پر (۱۳۵۸ل) کال بېرته پاکستان ته لاړ او د کمونیست روسي یرغلګرو په ضد د جهاد په مورچلونو کې د بهرنیانو (غربیانو) سره د ترجمان په توګه کار کاوه یو څه وخت وروسته کله چې د لومړي ځل لپاره د کونړ ولایت په شرقي نورستان کې (صدای نورستان) په نوم د مجاهدینو جبهه فعاله شوه وسله وال ګروپونه په کې جوړ شو او د روسي پوځیانو په لښکرو یې بریدونه او یرغلونه شروع کړل.

اختر کوهستانی ددې جبهې د نشراتو په څانګه کې عملي کارونه کول، د جهاد د مورچلونو او د مجاهدینو د مېړنتوب او اتلولي او یرغلونو په باب یې راپورونه راټولول او نشراتو ته یې ورکول، نوموړي د شرقي نورستان د لوړو جهادي شخصیتونو سره لکه وکیل محمد کبیر نورستاني او جهادي قوماندان محمد انور امین نورستاني سره چې د ټول نورستان سر لښکر په نوم شهرت درلود دنده اجرا کوله.

کوهستانی په پېښور ښار کې د صدای نورستان د جبهې په مطبوعاتي او نشراتي کارونو کې فعاله ونډه واخیسته. پر (۱۳۵۹ل) کال د پاکستان څخه د لوړو زده کړو لپاره لندن ته لاړ چې هلته یې د ژبو په څانګه کې خپلې زده کړې پایته ورسولې او د لندن د ژبو د اکاډمۍ څخه یې د ژبو د زده کړو کې د ماسټرۍ ډیپلوم

ترلاسه کړ. په دغه کلونو کې يې د يوې اروپايي پېغلې سره چې د ناروې د هېواد څخه وه او د ژبو په څانګه کې يې ماسټري اخيستې وه د اسلام د مبين دين په منلو سره د اختر کوهستاني سره واده وکړ، چې د هغه مېرمن نه يې يوه لور هم شته چې (بي بي هوا) نومېږي او مېرمن يې د لندن د انګرېزي ادبياتو په فاکولته کې د استادې په توګه دنده درلوده او لور يې بي بي هوا د لندن د حقوقو د پوهنځي څخه ډيپلوم ترلاسه کړی او اوس په خپله رشته کې د ماسټرۍ پروګرام کې په زده کړو بوخته ده.

اختر کوهستانی د خپل شوق او علاقې له مخې د ماسټرۍ په اخيستلو سره قناعت ونه کړ، بېرته د لندن د ژبو په اکاډمۍ کې شامل او څلور کاله يې نور د ژبو په علومو کې زده کړې وکړې او ددغې اکاډمۍ څخه يې د (P.H.D) ډيپلوم ترلاسه کړ او په هماغه د ژبو په اکاډمۍ کې د ښو نومرو له امله د استاد په توګه قبول شو، څه لږ وخت يې په اکاډمۍ کې د استاد په توګه پاتې شو خو ډېر ژر د لندن د (BBC) راډيو په غوښتنه په پښتو څانګه کې د يو مبصر او نطاق په توګه کار کاوه، چې ډېر کلونه يې دلته دنده ترسره کړه.
اختر کوهستانی د شلو کالو څخه زيات وختونه په اروپا کې تېر کړل او امريکا، فرانسه، جرمني، کاناډا، مسکو، ترکيه، هندوستان، هسپانيه، ناروی، هالنډ، پولنډ ته يې سفرونه کړي دي.

اختر کوهستانی کله چې د حامد کرزي رژيم د نړيوالو او امريکايانو په مرسته پر (۱۳۸۰ل) کال بريالی شو د وطن غېږې ته د

راستنېدو پرېکړه وکړه او د خپلې اروپايي مېرمنې سره يې يو څه اختلاف منځته راغی چې هغه په لندن کې په يو پوهنتون کې د استادۍ دنده لرله، افغانستان ته د راتلو څخه انکار وکړ چې هغه ته يې طلاق ورکړل، په خپله اختر کوهستانی د کابل ښار ته راغی چې په لومړي سر کې د انکشاف دهات وزارت کې د مشاور په توګه کار کاوه، يو څه وخت وروسته د (يوناما) په مرکزي دفتر کې د يوې څانګې د مشر په توګه کار کاوه. د پښتو، دري، کوهستاني ژبو سربېره په اردو، عربي او انګرېزي او فرانسوي ژبو ښه پوهېده، کتابونه يې لوستل او ژوره مطالعه يې درلوده. پر (۱۳۸۵ل) کال د يوې پېغلې سره چې د پاکستان د چترال د ميتر شهزاده لور وه واده وکړ، اختر کوهستانی په (۱۳۸۷ل) کال د چترال په دروش کې چې د ميتر شهزاده په کور کې مېلمه و، د شپې له خوا د ډاکوانو له خوا په نوموړي باندې يرغل وکړ او نوموړی چې بې وسلې و، يو ناڅاپه يې ونيو او زور او ظلم په توره شپه کې د ځانه سره نامعلوم ځای ته انتقال کړ، چې يو څو ورځې خبره پټه وه، څو څو ورځې وروسته مسئله ښکاره شوه چې نوموړی د ډاکوانو له خوا تښتول شوی او د افغانستان او پاکستان په سرحدي سيمه کې په يو پټ محل کې شپې کوي، په داسې حال کې چې نوموړي ته لاسونه پښې تړل شوي وو، ډېر ظالمانه او غير انساني سلوک ورسره کېده، ډاکوانو چترال ته د موبايل په ذريعه خبر ورکړ چې نوموړی زموږ سره دی او دده د خلاصون په بدل کې سل زره ډالر او څو تنو بنديانو چې د

حامد کرزي د رژیم د واکدارانو له خوا په کابل کې بندیان دي، خلاصون غواړو.

دغه احوال د اختر کوهستاني د کورنیو غړو ته راورسېد خو ددې غوښتنو او د ډاکوانو د فرمایش توان د نوموړي د کورنیو غړو په توان پوره نه و.

اختر کوهستانی ډېر وخت د ډاکوانو په بند او تهدید کې پاتې شو، چې د ډاکوانو له خوا پیاده په غرو رغو د چترال څخه د دیر کوهستان ته انتقال شوی و، هلته ډېر وخت له حیواناتو سره یو ځای په توره کوټه کې په زنځیرونو تړل شوی بندي و. اختر کوهستاني ماته په خپله یوه ورځ وویل: ((زه به ډاکوانو شپه ورځ په زنځیرونو تړلم، د لمانځه لپاره حتی د ډوډۍ د خوراک لپاره راته لاسونه نه ایله کول زیات وختونه به مې د حیواناتو په شان ډوډۍ خوړله)) ډاکوانو پرېکړه وکړه چې اختر کوهستانی د دیر کوهستان څخه بلې سیمې یا منطقې ته انتقال کړئ، اختر کوهستاني راته وویل: زما کوټې ته دوه تنه وسله وال کسان د دیر کوهستان په سیمه کې داخل شو لاسونه او پښې یې راته په کلکه وتړل او راته یې وویل چې د موټر پواسطه تا بل محل ته انتقالوو، خو که چېرته په لاره کې دې اواز او یا بېځایه حرکت وکړ، نو سر به درته د تنې څخه جلا کړو، دا چې زه ډېر پخوا د پاکستان دیر ته تللی وم لږ لږ بلدیت مې درلود کله چې موټر ته یې پورته کړم یو ځای ته چې راورسېدو، د خلکو ګڼه ګوڼه وه پښې اولاسونه مې د لوی خدای(ج) په رحم سره خلاص

کړل غال مغال، مې وکړ چې ولسونه راټول شو او ما ورته ځان معرفي کړ او ورته مې وويل: ای د کوهستان خلکو د ډاکوانو څخه ما خلاص کړئ د خدای په لحاظ د ډاکوانو مې خلاص کړئ؟

ددغه ځای مشران او ځوانان راټول شو دغه خلک په خټه او قام کوهستاني وو ما ورته وويل زه اختر کوهستانی یم د ظالمانو مې خلاص کړئ؟ خو ډاکوانو د منګولو خدای خلاص کړم او د هغه وطن کوهستاني ورونو راسره مرسته وکړه او د يو قومي مشر کور ته يې انتقال کړم. ډاکوانو ته اخطار ورکړ چې نور بې ځايه خبرې او حرکت ونه کړئ ستاسو څه جرم نوموړي کړی وي ستاسو قتل کړی وي يا قرضدار وي راځئ چې په خبرو مسله خلاصه کړو؟ نور نو تاسو ته دغه انسان په لاس نه درکوو، تاسو ظالمان یاست ډاکوانو ورته ځانونه مجاهدين او طالبان معرفي کړل، خو قومي ولسونو د هغو خبرو ته اهميت او ارزښت ور نه کړ او ورته يې وويل چې ستاسو حرکات او سلوک د اسلام سره برابر نه دي، تاسو غله او ډاکوان یاست زموږ د سيمې او منطقې څخه عاجل ووځئ، خلک يې وشړل او زه يې په ډېره ايمانداری او غيرت د ډاکوانو د بنديتوب څخه خلاص کړم او بېرته په خوښی سره د خپل هېواد غېږې ته ستون شوم، زه د دير د کوهستان د ولسونو څخه ډېره ښه خاطره لرم دا د هغو مېړانه او ايمانداري وه چې خلاص شوم، د ډاکوانو سره مې تقريباً درې مياشتې په پرېشانی تورتم کې تهديد کې تېرې کړې.

اختر کوهستانی بېرته کابل ته ستون شو او په یوه بهرنۍ اداره کې یې دنده واخیسته، د کابل په ښار کې د خپلې چترالۍ مېرمنې او بچیانو سره ژوند کاوه، د بهرنۍ ادارې له خوا د یوې دندې د ترسره کولو لپاره اختر کوهستانی د کندوز ښار ته د یو څو ورځو لپاره خدمتي شو، کندوز ته ورسېد خپله دنده یې په ډېره ښه توګه سرته ورسوله د کندوز څخه کابل ته د ستنېدو په وخت نوموړي د الوتکې د تخنیکي عوارضو له کبله پر (۱۳۸۸ل) کال ددې ارماني او فاني نړۍ څخه د تل لپاره سترګې پټې کړې، چې د ناړۍ د مرکزي کلي د فقیراباد کې خاورو ته وسپارل شو. له نوموړي څخه دوه کوچني زامن هر یو ( ) پاتې دي چې اوسمهال یې مېرمن په چترال کې ژوند کوي. د لوی خدای(ج) د پاک دربار څخه ورته جنتونه غواړو.

# جيګلي په ناړۍ کې

د ناړۍ ولسونو د هجرت په کلونو کې په چترال کې د ژوند وختونه تېرول چې ختیځ نورستان سره ډېر اوږد سرحد لري. پر (۱۳۵۷ل) کال د میزان په میاشت کې د لومړي ځل لپاره مجاهدینو د برګمټال علاقداري ونیوله او ورپسې د کامدیش ولسوالۍ د مجاهدینو د مسلسلو بریدونو او یرغلونو او سربښندنو په بدل کې د خلقي رژیم د پوځیانو څخه په ډېره مېړانه ازاده کړه او په ټول ختیځ نورستان کې د بریکوټ نه تر دیوانه بابا پورې د مجاهدینو واکمني منځته راغله چې دا د نورستان د ولسونو مېړانه او شجاعت او ایمانداري د هېواد په تاریخ کې په زرینو کرښو لیکل شوې او دا د نورستان د مجاهدینو برۍ د هېواد د ټولو مجاهدینو لپاره د برې زېرى ګڼل کېږي. هغه قرباني او هغه مېړانه چې د نورستان ولسونو د جهاد په ټوله دوره کې کړې ده د هېواد په کچه سارى نه لري، د نورستان ولسونو د جهاد په کلونو کې په تاریخي ازمون کې هېوادوالو ته ثابته کړه چې د پردیو لښکرې او یرغلګر په زور حکومت نه شي کولی.

د ختیځ نورستان د بیا نیولو لپاره ډېر پوځي پروګرامونه جوړ شو، یرغلونه او بریدونه وشو په عصري وسلو سمبال پوځونه د هلیکوپترو او جیټانو په ګډون د بریکوټ د استقامت څخه په ختیځ نورستان څو څو ځل حملې ترسره شوې، خو د نورستان

مجاهدینو د دویم ځل دخول او راتګ لپاره خلقي او روسي کمونیستي پوځ ته اجازه ور نه کړه چې د نورستان په خاوره په ارام ګام اوچت کړي او ساه واخلي کومو قوتونو او لښکرو چې د نورستان د نیولو لپاره دغې رنګینې سردرو ته سر دننه کړی و، بېرته د بریکوټ په لور نه دي راوتلي او ککری یې هلته خاورې شوې دي. د وخت حکومت د نورستان د دوباره نیولو لپاره ډېرې هلې ځلې وکړې، خو بری یې لاس ته رانه وړ دولت په هغه وخت کې ډېر زیات تلفات او خسارات ولیدل، خو نتیجه منفي وه، رښتیا خبره داده چې دولت او روسي کمونیستي پوځیانو د نورستان د نیولو توان نه درلود. د نورستان جغرافیایي موقعیت د نورستان د مجاهدینو په ګټه وو او له بلې خوا د نورستان مجاهدینو په ډېره ایمانداری او زړورتیا بریدونه او یرغلونه کول، چې په نتیجه کې نورستان د مجاهدینو ساحه وګڼل شوه، ددې لپاره چې د نورستان مجاهدین نشه ګام، اسمسار او د کونړ مرکز ته لاره پیدا نه کړي، حکومت او روسي پوځیانو پرېکړه وکړه چې د نورستان د مجاهدینو د پرمختګ د مخنیوي لپاره بریکوټ چې (۵۵) پیاده غنډ په کې موقعیت درلود نور هم تقویه کړئ او د مرکزي دولت یوه پوځي قرارګاه حیثیت ولري، بریکوټ د یو پوځي ګارنیزون شکل غوره کړ. د دولت له خوا په بریکوټ، دوکلام، پاشنګر او ناړی کې ډېر وسله وال د درنو وسلو او تجهیزاتو سره ځای په ځای شو، چې د بریکوټ د سرحداری ځای د مرکزي قول اردو (۵۵) نمبر غنډ ونیو

او نور مرکزي جزوتامونو د بریکوټ په ساتنه کې ګډون درلود، خو د بریکوټ په شاوخوا کې ډېر سخت تاوده جنګونه پیل شو، چې د هرې ورځې په تېرېدو سره د جګړو اورونه زیاتېدل او په دولتي پوځونو باندې ساحه تنګېده. د بریکوټ شاوخوا پوځي پوستې به تل د مجاهدینو د پرله پسې یرغلونو او بریدونو لاندې راتلل، دولتي پوځونو ډېر زیات ځاني تلفات ولیدل په میاشتو به محاصره پاتې شول.

د کابل، ننګرهار او کونړ مرکز څخه څو څو ځل ډېر مجهز په عصري وسلو سمبال پوځونه ختیځ نورستان لنډي سین درې ته ورننوتل خو بېرته به ستانه نه شول؟ او مجاهدینو ته به د ټینګې او مقاومت جذبه نه لرله او تسلیمۍ ته به اړ شول او د ډېرو پوځیانو ککرۍ او هډونه به هلته خاورې ایرې شول. د نورستان د مجاهدینو د ماتې او ناکامۍ لپاره د ننګرهار او پیچ درې او شیګل، شینوارو او مرورې، شلتن ولسي قومي کاروانونه د دولت په مرسته راغلل خو د نورستان د مجاهدینو سره د مخامخې جګړو توان یې نه درلود او د سر ټیټۍ سره به مخامخ شو او ځینو به په تېښته ځانونه بریکوټ ته راورسول چې بیا به د نورستان خواته ګام نه شو پورته کولی. په هر ترتیب د نورستان د مجاهدینو سربښندنه او ایمانداري به ځانته په مستقل ډول په بل کتاب کې وګورئ. په ارنوي خوړ کې د کوهستان قام او د جیګلو په منځ کې د ځمکو په سر جنجال او فتنه جوړه شوه چې په نتیجه کې جیګلي د ارنوي خوړ څخه په کډه

باندې د ناړۍ مرکزي ساحې ته راووتل او په مرکزي ناړۍ کې چې ولسونه يې چترال ته په هجرت تللي وو، جيګلو خپلې کډې ځای په ځای کړې او د وخت افغاني پوځيانو سره يې تماس حاصل کړ، د بريکوټ پوځيانو د جيګلو مشر چې ميرزا نومېده څو ځل د نږدې يو بل سره ليدلي و، د بريکوټ پوځيانو موافقه کړې وه چې په ناړۍ کې دېره شي، مګر زموږ په ضد به اند کترين عمل نه ؤده کوئ.

جيګلو د ناړۍ مرکزي ځمکې کرل رېبل او په ناړۍ کې دېره شو. پر (۱۳۶۷ل) کال د مجاهدينو د پرله پسې بريدونو او يرغلونو په اساس د بريکوټ پوځونه ډېر وخت محاصره پاتې شو او د کونړ مرکز څخه بريکوټ ته د کتارونو د تګ راتګ امکانات ډېر ګران او مشکل شو او د بريکوټ شاوخوا ته د هليکوپترونو کېناستل او پاڅېدل هم د ستونزو سره مخامخ شو. د بريکوټ پوځيان يې د پوځي تهديد او محاصره کې راوړل د مرکزي دولت په هدايت د بريکوټ پوځيان، پوځي ملېشه او د بريکوټ ټول پوځي تاسيسات وسايط او پوځي ډيپوګان يو څه يې د دولت او پوځيانو له خوا تخريب شو او زياته برخه يې مجاهدينو ته پاتې شوه.

د بريکوټ ساحه هم د مجاهدينو په واک کې راغله چې د بريکوټ نه تر مرکز کونړ پورې د مجاهدينو ساحه او واکمني شوه او کوم پوځي قوت پاتې نه شو.

ميرزا جيګلي په ناړۍ کې پاتې شو، نوموړی چې د جيګلي ميرزا په نوم يې په سيمه او منطقه کې شهرت درلود، يو شمېر کسانو د

ناړې مرکزي ولسونو ته راپورونه ورکړل او ويې ويل چې جيګلي ميرزا د ناړې للمي او زراعتي ځمکې نيولي دي او قبضه يې ورباندې لګولې ده، نور نو تصميم نه لري چې د ناړې نه بلې خواته لاړ شي، نوموړی فتنه کوي خو ځمکې نه پرېږدي. د ناړې مرکزي ولسونه چې په چترال کې د هجرت شپې تېرولې د داسې رنګه خبرو او تبليغاتو څخه خبر شو او په چترال ګله ټاک کيمپ کې د ناړې خلکو عمومي غونډه جوړه کړه او پرېکړه يې وکړه چې موږ ټول کوهستاني چې ناړې زموږ خاوره ده زموږ للمي او زراعتي ځمکې او کورونه دي ټول په يو اواز په يو لښکر د خپلې ځمکې او کلي لپاره ورځو او د ميرزا جيګلي سره خبرې کوو چې جريان د هغه د خبرو څخه معلوم شي. په منظم ډول سره د يووالي او پوره پيوستون يو لوی کاروان جوړ شو، د ناړې مرکزي ولسونه څلور کندي لري چې هر کندی د يو مستقل کنډک شکل غوره کړ او د دروش د ګله ټاک کيمپ څخه د دوکلام په لور د وسايطو لوی کاروان چې ځوانان او مشرانو ګډون درلود د وسلو سره ناړې ته حرکت وکړ. دغه ولسي کاروان خونانو کڅ کې تم شو، مشرانو مشوره وکړه چې څو تنه مشران ناړې ته ځو او د جيګلي ميرزا سره مخامخ له نږدې څخه خبرې کوو، تر څو د هغه دريځ او پلان ثابت شي چې څه وايي؟

زما د معلوماتو له مخې خبره داسې وه زه په کابل کې وم يو تن ډېر مشهور سپين ږيري چې د ټولو قومونو او ولسونو په زړه کې هغه ځای درلود او هغه يو منل شوی صادق مشر ګڼل کېده، خلکو او

مشرانو ځوانان قومونو د هغه ډېر درناوی کاوه، هغه مشر محترم مرحوم وکیل صاحب مشوانی یادوم چې د ډاکتر نجیب الله په حکومت کې منتخب وکیل پاتې شوی و، چې د یو پېژندل شوې غښتې کورنۍ د ملک سید زوی د دانګام د ولسوالۍ و چې په ختهٔ مشوانی و، هغه راته داسې کیسه وکړه:

جیګلی میرزا زمونږ نسبي پښتون دی او یو بل سره ښه پېژنو هغه د کونړ نه کابل ته (۱۳۶۲ل) د خپل یو زلمي زوی سره راغلی و، ما هغه له نږدې ولیده او د نارۍ د مشرانو په هکله مې ورسره ډېرې اوږدې خبرې وکړې څه چې راته میرزا نورمحمد خان ویلي وو او یا مې اورېدلي و هغه خبرې ټولې سمې وې. جیګلي میرزا راته وویل زه په نارۍ کې موقت دېره یم نه د چا په ځمکه دعوه لرم او نه د چا په کلي دعوه ګیریم دا زما بدخواهان دي چې پروپاګند کوي. زه د نارۍ خلکو ته درناوی لرم او د هغوی جایداد او د هغو زراعتي او للمي ځمکو دعوګیر نه یم. کله چې د نارۍ ولسونه خپل وطن او کلي ته راشي زه به سمدستي او بې قید او بې شرطه د هغو د ساحې څخه ووځم.

د نارۍ سیمه د کوهستان قام پورې اړه لري زه اوس نورو پردیو خلکو ته په نارۍ کې ارزښت نه ورکوم نو ځکه زما په ضد غلط تبلیغات کوي.

د کلي مشران د خونانو کڅ نه کلي ته د میرزا جیګلي د لیدلو او خبرو لپاره لاړل. میرزا یې له نږدې ولید د مشرانو سره یې ډېر ښه

روغبړ او سلوک وکړ، ډوډۍ یې ورته وکړه او په موسکا یې کوهستاني مشرانو ته وویل: څه خبره ده ستاسو د راتلو څه مقصد دی زه څه مرسته کولی شم؟ میرزا جیګلي ته ټول مسایل وکیل صاحب مشوانی کړي وو، کوهستاني مشرانو ورته وویل: موږ د خپلې وران او سوځول شوي کلي ته د خپلو پلرونو، نیکونو اولادونو هدیرو ته د خپلو ځمکو لیدو ته راغلي یو دا چې ته مو هم ولیدې خوښ شو چې دلته د ېره یې؟

میرزا جیګلي په موسکا مشرانو ته وویل: زه د هر څه نه خبر یم څه خبره چې ستاسو غوږونو ته رسېدلې ده ما د وکیل صاحب مشوانی سره دا ټولې خبرې کړې دي، دا زما د مخالفانو خبرې دي، زه مسلمان یم او پښتون یم، ستاسو هر تن ته درناوی لرم، نه دعوه لرم نه دعوګیر یم هر وخت چې تاسو خپلې سیمې او کلي ته راځئ زه به ډېر ژر ستاسې سیمې او کلي نه ځم، کوهستاني مشران ډېر خوښ شو د میرزا جیګلي د احساس او د خبرو او د سلوک نه یې مننه وکړه.

دا چې میرزا جیګلي یو کلک پښتون و، یو شمېر کسانو د هغه په مخ کې بې ځایه د خود سرۍ حرکتونه نه شو کولی، ځکه چې میرزا په خپله ښه قوي او د ډېرو وسله والو ځوانانو سر لښکر ګڼل کېده، نو د هغه مخالفینو غوښتل چې میرزا جیګلي او د ناړۍ د ولسونو په منځ کې جنجال او فتنه جوړه شي خو لوی خدای پاک رحم وکړ او

میرزا جیګلي د ناړې د ولسونو سره د دوستۍ او ملګرتوب اعلان وکړ هغه یو هوښیار انسان و.

قومي مشر میرزا عبدالحق له خپل مشر زوی حاجي عبدالجلال سره



# درګان کوټ

(Dargan kut)

د دوکلام د کلي جنوب خواته د ناړۍ او دوکلام په لاره یو خاص محل دی، چې په دغه ځای کې به د ګواریانو (کوهستانو) له خوا هر وخت د شلو تنو یا د پرشو تنو په شاوخوا کې ځوانان د خپلو وسلو سره اوسېدل. دغه کسانو دنده درلوده چې د لارې د راتلو او تلو کسانو د خپل نظر او کنټرول لاندې ونیسي او پرته د خاصو کسانو چا نه شو کولی چې وسله یا غشي لیندۍ بنکته پورته د یو محل څخه بل محل ته انتقال کړي.

دغه د درګان کوټ وسله والو کسانو به د کوټیا خوړ او د ناړۍ لویه لاره چې د سین دواړو غاړو ته موقعیت درلوده د خپل کنټرول او څارنې لاندې ساتل او کله به چې د کافرستان او چترال وسله والو کسانو د بریکوټ دوکلام ناړۍ په ولسونو باندې د وسله وال برید یا یرغل لپاره راتلل د درګان کوټ کسانو به د کلو نورو ولسونو ته خبرداری ورکاوه او د هغو د راتګ مخنیوی به یې کاوه. درګان کوټ یو سوچه ګواري (کوهستاني) کلیمه ده چې د دروازې د ساتونکو مانا ورکوي او درګان کوټ محل د ناړۍ او دوکلام د دواړو کلو د لارې په سر کې یو خاص محل و، چې اوس هم د درګان کوټ په نامه یادېږي. د دوکلام د کلي یو پخوانی مشر او سپین ږیری (بزوری) نیکه داسې کیسه کوي: درګان کوټ وسله والو

کسانو یوه دنده دا وه په نورستان کې د اسلام د منلو مخکې چې د کافرستان د کسانو د حملو مخنیوی وکړي او په ناخبرتیا کې کلو ته داخل نه شي او حتی کله چې چترال کې انګرېزان راغلل د خلکو سره دا تشویش و چې انګرېزان د دوکلام په لاره د چترالیانو سره په دغه لاره ښکته تېر نه شي. کله چې څوک په دغه لارو تله راتله د دغه وسله والو کسانو له خوا کنټرولېدل او د ستونزو او خبرتیا په خاطر د درګان کوټ د محل نه یو پړی (رسۍ) دوکلام او بل نارۍ ته هوایي په لاره غزېدلی و دغه پړی د غوایانو د پوستکي څخه جوړ شوی و او د حیواناتو په وازده (مو) باندې غوړېده او د غوښېدو او شلېدو څخه به ژغورل کېده. کله به چې د دوکلام یا د نارۍ نورو کسانو ته ضرورت پیدا شو یا نورو کسانو ته اړ شو، نو دغه د درګان کوټ کسانو به د لارې دغه فرش غزېدلی پړی کش کولو او په اخره برخه کې د پړي به یو غټ ګین ګړی و هغه به کړنګېده او خلک او کلیوال به پوهېدل چې څه خبره شته، نو د هر ډول خطرناکو پېښو د مخنیوي لپاره به یې ځانونه چمتو کول او د چترال له خوا د انګرېزانو او چترال د میتر پوځونو او د باشګل درې او کوټیا له خوا به د اسلام د مبین دین مخالفینو د حملو د مخنیوي لپاره دغه د درګان کوټ پېره داران شپه او ورځ بیدار اوسېدل، دغه محل د پاشنګر کلي ته مخامخ دی د نارۍ او دوکلام د لارې په سر پروت دی.

# سلام کوټ

د ناړې ولسوالۍ او خصوصاً د ناړې مرکزي کلی د افغانستان د استقلال د ګټېلو د څلورمې جبهې مرکزي ساحه وه، مشرانو څخه کیسې پاتې دي، چې د افغانستان د استقلال د څلورمې جبهې مشر غازي خان میرزمان خان به د خپلې قرارګاه سره په ناړې کې اوسېده او له دغه ځایه به قومانده ورکوله او خپل استازي به یې مختلفو محلاتو ته لېږل. په ناړې کې د خان میرزمان خان قرارګاه دوه محله وه یوه د ناړې دوندنو د پل مخامخ چې یو لوی د توتانو باغ و د توتانو د ونو شمېر دوه سوو ونو ته رسېده او درې ویالې به په دغه باغ کې چار چاپېره په روانو اوبو ډکې رواني وې، دغه ساحه د ناړې د ګواریانو له خوا د خان میرزمان خان د اوسېدلو لپاره غوره شوې و دویم ځای په ناړې کې د شالیکوټ د کلي شمال لوېدیځ خواته بل د توتانو باغ و، خو د خان میرزمان خان لښکریان په لارو او کلو او زیاته برخه به یې په بریکوټ او دوکلام غرونو رغونو کې ځای په ځای شوي وو او د خپلو لښکریانو سره به خان میرزمان خان د آس پذریعه ګرځېده چېرته به چې خطرناک محل و خان به هلته ځان ور رساوه، پرته د ناړې د مرکزي کلي نه چې خان میرزمان خان اصلي قرارګاه او استوګنځای ګڼل کېده په بریکوټ او پاشنګر کې به هر وخت ډېر لښکریان د توپونو سره اوسېدل او په خاص ډول سره

سلام کوټ د خان میرزمان خان په وخت کې هم د مشرانو پوځیانو او د توپ خانې لپاره غوره محل تثبیت شوی و. کله چې به د خان میرزمان خان په لارښوونه مجاهدینو او لښکریانو د ارندو چترال دروش، ګله، آین، میرکنډی، لابریټ، کواتی او نورو محلاتو ته د انګرېزانو په ضد جهاد لپاره قوتونه ورغلل او لښکریانو او مجاهدینو به انګرېزان یا د چترال د شهزادګانو غلامان ونیول، نو بریکوټ ته به یې راوستل او په بریکوټ کې به دغه نیول شوي کسان سلام کوټ ته راوړل، هلته به یې پوره تحقیق او غور کولو وروسته پوره پرېکړه کوله د دیني عالمانو له خوا به چې کومه پرېکړه وشوه هغه به یې په نیول شویو کسانو باندې عملي کوله.
سلام کوټ پرته له پوځي کارونو پوځي میرزایان هم دلته اوسېدل او د خوراکي موادو ګودامونه هم دلته ځای په ځای شوي وو او یو شمېر دیندار او وطنپرستو کسانو ددې منطقې چې د لښکریانو او مجاهدینو د مرستې لپاره مالونه ((حیوانات)) د لوی خدای په رضا ورکول سلام کوټ ته راوړل چې دلته ددغه مالونو د ساتلو لپاره موظف کسان نیول شوي وو. سلام کوټ د بریکوټ د ګواریانو د ملکیت څخه یو ښکلی په لوړه پروت محل دی، چې دا د پخوا زمانو راهیسې یو تاریخي ځای دی.

# سلام کوټ قرارګاه

## (آریشه دم)

د بریکوټ د کلي جنوب غرب خواته د پاشنګر شمال خواته سلام کوټ په لوړه تپه کې پروت یو ښکلی محل دی، ددې ځای پخوانی نوم ((اریشه دم)) دی چې د ګواري ژبې سوچه دوه کلیمو څخه جوړ شوی دی. اریشه په مانا د (ائین) او (دم) د کڅ په مانا دي، یانې د (ائین کڅ) کله چې د امیرعبدالرحمن خان د حکومت په وخت کې د کافرستان اوسنی ختیځ نورستان خلکو چې د اسلام په مبین دین باندې چې په بریکوټ کې ځای په ځای شو مشرف شوي نه وو، چې ختیځ نورستان ته د جهاد لپاره لښکرې راورسېدلې چې مرکزي قرارګاه ددې لښکرو لپاره بریکوټ غوره شو.

لویان قوماندانانو او مجاهدینو په بریکوټ کې د خپلو لښکرو د ځای په ځای کولو لپاره ځایونه غوره کړل او د نورستان خلک یې د جرګو په واسطه باندې د اسلام مبین دین ته دعوت کړل، چې په شروع کې یو څه اندازه نښتې د باشګل په سیمه کې وشوې، خو د امیرعبدالرحمن پلان کامیاب شو او نورستانیانو داسلام د مبین دین منلو ته غاړه کېښوده. سلام کوټ چې یو ښکلی محل و د پوځي قرارګاه لپاره خاص محل غوره شو، دیني عالمان او پوځي قوماندانان په سلام کوټ کې ځای په ځای شول او اریشه دم نوم د

سلام کوټ په نوم باندې تبدیل شو، هغه نورستانیانو چې د اسلام د دین منلو ته غاړه نه ایښوده او نه یې منلو او هغه شمېر کسانو چې د امیرعبدالرحمن د لېږل شویو پوځونو احکام او اوامر د چترال د مهتر په دستور نه منل د پوځیانو له خوا به نیول کېدل او سلام کوټ ته به د پوځیانو له خوا راوړل کېدل. په سلام کوټ کې به دیني عالمانو او پوځي مشرانو ورسره خبرې کولې او د اسلام دین ته به یې دعوتول او حتی د ځینو کسانو څخه به پوره تحقیق کېده د یو منظم هئیت له خوا به نیول شوي کسان د کنټرول لاندې نیول او دیني تبلیغات به ورته جاري ساتل کېده. کومو کسانو به چې د اسلام د مبین دین احکامات او قوانین ومنل د هغو له خوا به دیني عالمانو او پوځي قوماندانانو ته د اسلامي احکاماتو منلو وعده ورکول کېده او هغو ته به یې کلیمه طیبه ویله او د اسلام د مبین دین د منلو په ویاړ به یې دیني عالمانو ته سلامي کوله، نو ځکه اریشه دم د سلام کوټ په نامه یاد شو او تراوسه پورې د سلام کوټ په نامه یادېږي. دا د پاشنگر د خوړ شمال ته په لوړه پروت کږ دی چې د بریکوټ بر کلي پورې هوار غزېدلی دی او د بریکوټ د ولسونو جایداد دی.

# گوبديش (Gubdish)

د ناړې د مرکزي کلي جنوب خواته د خوړ په اخري برخه کې چې د لوی سيند سره يوځای شوی د نورالدين د کلا ختيځ خواته يوه لويه هديره ده، په دې محل کې پخوازمانو کې يو تن کافر د خپلو اولادونو سره ژوند کاوه چې نوموړی شخص د «گوبديش» په نوم يادېده او ډېر مالداره و او په سوونو څاروي، گډې، غواګانې يې



لرلې، د حيواناتو ډېر ټلونه يې لرل او مختلفو محلونو کې خپل حيواناتو لپاره ځايونه درلودل، خو په خپله به د خپلو غواګانو او غويانو سره په دغه محل کې اوسېده، وايي چې څلور ښځې او د لسو څخه زيات زامن يې لرل او ځينو زامنو يې هم ښځې او اولادونه

لرل، له نن څخه (۲۰۰ یا ۳۰۰) کاله پخوا نومړی ګوبدیش نومي د خلکو خصوصاً د ناړې د مرکزي ولسونو د پرله پسې دعوتونو په اساس چې د ناړې د ګوارو سره یې نېکې اړیکي لرل د اسلام د مبین دین احکاماتو ته یې غاړه کېښوده او د اسلام په دین مشرف شو، د خپلې ټولې کورنۍ سره مسلمان شو د یو نسل نه بل نسل ته دا کیسې پاتې دي، پخواني مشران وایي کله چې نومړی مسلمان شو، خلکو وربانديې (دوست محمد) نوم کېښود په خپله په دې کار باندې چې نوی مسلمان شوی و، ډېر زیات ویاړ کاوه او د یوې میاشتې پورې به خلک مبارکۍ ته ورتلل او درناوی به ورته کېده، نومړي به ورته حیوانات حلالول او په ډوډۍ کې به خلکو ته غوښې، پنېر، قروت، جوش په مهربانۍ سره ورکول. نومړی ګوبدیش نومي چې په اسلام باندې مشرف شو، څو میاشتې وروسته سلو تنو کافرو چې د ختیځ نورستان له خوا راغلي وو، د شپې له خوا په نومړي باندې یرغل وکړ او په کور یې ورننوتل او ورته یې وویل چې ته د منطقې یو لوی مالدار شخصیت یې ته چې مسلمان شوې، نو موږ هم حاضر یو چې مسلمانان شو د ګوبدیش د کورنۍ له خوا د شپې شپې ورته ډوډۍ برابره شوه او د ډوډۍ د خوراک نه وروسته په ګوبدیش او د ګوبدیش په کورنۍ په غرو حمله وشوه په تورو غشو تبرګو یې لوی او واړه وویشتل او شهیدان یې کړل، د کور سامان او حیوانات یې ورته چور کړل.

په هماغه سهار د ناړې مرکزي خلک ددې وحشيانه يرغل او بريد څخه خبر شول او محل ته ورغلل، ګوبديش او د هغه د کورنۍ غړي يې په درناوي سره خاورو ته وسپارل د هغه زمانو راهيسې تراوسه پورې دغه د شهيدانو د محل درناوی کېږي په هديره باندې د زرغونو خونانو ونې ولاړې دي او هېڅوک ددغه ونو د څانګو او لرګو څخه کار نه اخلي او دده ترې کوي او دغه محل اوس هم د ګوبديش په نوم يادېږي.

د ګوپديش ټوله کورنۍ (۴۴) تنه وو چې يو هم ژوندی پاتې شوی نه دی ټول په يوه شپه شهيدان شوي وو، چې په دغه هديره کې خاورو ته سپارل شوي دي.

# سلام سانکي

د ناړې د مرکزي کلي خصوصاً د ناړې د لر کلي جنوب خواته د لارې په سر چې د خونه يوه غټه ونه هم شنه ښکاري د يو مجاهد قبر دی پخواني مشران کيسه کوي چې دغه قبر د يو لوی مجاهد قبر دی چې د ناړې د کلي مشرانو دلته ښخ کړی دی. دغه قبر د يو پښتون ملا دی د نن څخه دوه سوه کاله دمخه دغه پښتون د کافرستان سيمې ته تللی و چې هلته يې ځينو کسانو ته د اسلام د مبين دين د منلو لپاره دعوت ورکړی و، چې په مقابل کې دکافرستان د تورپوشانو کسانو له خوا چې څه يې لړل چور شوي وو او نوموړی روحاني او پاک شخصيت د اندازې څخه زيات وهل شوی و او دده په وجود کې د (۲۰) څخه زيات ټپونه د غشو ليدل کېدل چې څو غشي ترې د ناړې په کلي کې مشرانو دده له بدن څخه ايستلي وو.

ټپي شوی مسافر هم په اسلامي جذبه د کافرستان د تور پوشانو څخه د لاس او ګرېوان په جګړه کې ليندۍ او غشي لاس ته راوړي وو او د هغو په لينده او غشو باندې بېرته هغو ته ځاني تلفات اړولي و، خو دا پخپله د ډېرو غشو د لږېدلو له امله زيات ټپي شوی و دغه ټپي شوی شخص ځان د باجوړ پښتون معرفي کړی و، د ناړې د مشرانو له خوا ځوانانو ته امر شوی و چې ټپي سړی د کټ پذريعه باجوړ ته انتقال کړي، ټپي سړي ډېر افسوس کاوه چې ارمان لرم خپله کورنۍ او اولادونه وګورم او که چېرته په لاره کې مړ شم په

هماغه ځای کې باید ښخ شم. ځوانانو دغه ټپي سړی کټ ته پورته کړ او حرکت یې ورکړ، چې د ناړېه د لر کلي شخه درې میله لا ښکته تللي نه وو، چې ټپي د کټ شخه د الله اکبر غږ وکړ او ځوانانو ته یې وویل چې ما د قبلې طرف ته مخامخ کړئ زه ددې فاني دنیا شخه رخصتیږم، د ناړېه د مشرانو شخه مننه کوم خدای(ج) دې ورسره مرسته وکړي ما همدلته ښخ کړئ او دعا راته وکړئ، نوموړی ټپي چې په خپله د شهادت ګوته یې پورته کړې وه او د کلیمو په ویلو ددې فاني نړۍ شخه سترګې پټې کړې. دوباره ددغه مسافر سړي جنازه د ناړېه کلي ته انتقال شوه او هلته د ناړېه ټول مشران راټول شول، په ډېر احترام سره یې د مسافر جنازه وکړه او په کوم ځای کې چې یې ساه ورکړې وه دده د وصیت سره سم هلته خاورو ته وسپارل شو.

# ملیکانه

# Malikana

دا محل د ناړې په مرکزي کلي کې موقعیت لري دا یو تاریخي او درباري لرغونی محل و او په پخوا زمانو کې د ګوارو د مرکزي اداري پورې اړه یې لرله. دا ساحه د ناړې د لر کلي نه د حبیب رسول مرحوم د کور څخه شمال ته د ډاکتر سانین د کور پورې اوږده ساحه وه چې د ملیکانه په نوم یې شهرت درلود. په دې ساحه کې له دوو سوو څخه زیاتې د توتانو ونې وې او بیا دلته درې باغچې وې چې د تخت په نومونو یادېدل او په دې ساحه کې درې ویالې جارې وې، یوه ډېره په زړه پورې منظره یې لرله. دلته به په هغه وخت کې ننداري او ورزشونه هم کېدل او د لویو مشرانو د کېناستو لپاره جوړ شوی او غوره شوی و، ددې غتې باغچې مخې ته د سین د پورې وتلو لپاره پُل و، دغه لرغونی شین باغ اوس له منځه تللی او په ځمکو کې یې کورونه جوړ شوي.

نورمحمد کاکا وایي چې په ملیکانه کې د خان غازي میرزمان خان عمومي قرارګاه وه او دلته یې شپې او ورځې له خپلو لښکریانو سره تېرولې او شاوخوا به دده وسله وال دلته اوسېدل او په دغه باغ کې به غازیانو او لښکریانو پنځه وخته په جمعه لمونځونه کول.

# علي دم
# Ali Dam

د زرو کڅ شمال لويديځ خواته د غرونو په لمنه کې هواره للمي ځمکه ده، د مرحوم نوراحمددين ملنګ په وينا دلته پخوا زمانو کې چې کله د اوسنۍ چغسراى پورې د ګوارو اداري واکمني لرله دلته په علي دم کې يوه جنګي قرارګاه موقعيت درلود. د علي دم شمال ته يو وچ خوړ دى او اوس اوبه نه لري، خو پخوا زمانو کې په دې وچ خوړ په پورته برخه کې د چينو اوبه او د انځرانو ونې وې او اوبه يې د لرګو په ناو کې علي دم هوارو ځمکو ته رسېدلې وې.

په علي دم کې به تل سل تنه سواره پوځيان اوسېدل چې په خاصو لباسونو کې د غشو سره او جنګي تجهيزاتو سره سمبال وو.

نوراحمد دين ملنګ وايي د مشرانو څخه مو اورېدلي چې د علي دم اصلي نوم شارک (Shark) و چې لوړ قد يې درلود او يو مشهور پهلوان و، نوموړى چې د اسلام په دين مشرف شو، نو خلکو ورته د علي نوم کېښود، علي دم په ګواري ژبه د علي د کڅ مانا ورکوي چې د هغه پخوازمانو راهيسې اوس هم دغه محل د علي دم په نامه يادېږي. نوراحمد دين ملنګ به ويل چې پخوا زمانو کې يو سخته زلزله شوې وه، چې د هغه زلزلې له امله د چينو اوبه وچې شوې، خو د علي دم نوم تراوسه پورې په خپل حال پاتې دى، ددغه چينو اوبه

په دوو برخو وېشل شوې وې چې يوه برخه يې علي دم ته او بله برخه يې ټينګه باټ ته رواني وې.

## ټينګه باټ:

دغه بانډه يا محل د نارۍ د مرکزي کلي لويديځ خواته د غره په لمنه کې موقعيت لري. په ګواري ژبه ټينګه باټ د ټينګه بانډې مانا ورکوي ټينګه د يو شپونکي نوم و، چې دغه بانډه د هغه په نوم يادېده.

## پلاز ګوار: Palaz

نشه ګام کلي کوهستاني ولسونه پلازګوار وايي، نوراحمددين



ملنګ يو تاريخ پوه شخصيت و، چې د تېرو وختونو او زمانو ډېر معلومات يې درلودل، هغه د پلاز ګوار په هکله داسې ويل: نشه ګام ته ګوار ولسونه ځکه پلازګوار وايي چې دلته پخوا زمانو کې يو تن مشهور کوهستاني پهلوان او د قام مشر تېر شوی چې هغه په پهلوانۍ او مېلمه پالنه کې ډېر زيات شهرت درلود. هغه ډېر زيات مالدار انسان و، د هغه نوم (پلاز) و او ګوار د کوهستاني مليت نوم دی، نو ځکه د نشه ګام کلي ته کوهستاني ولسونه پلاز ګوار وايي او دغه نوم تر اوسه پورې پاتې دی.

# سنګالي غر

د سنګالي اوچت غر چې په ښو ښایسته ونو پټ ښکاري، د دوکلام او بریکوټ ته مخامخ شمال ته موقعیت لري، دغه غر یو خاص جغرافیایي موقعیت لري ددې تاریخي او هسک غر ختیځ




خواته د چترال سین او لویدیځ خواته لنډی سین(باشیګل) سین په سیالۍ او ګډا روان دي او د سنګالي د غره په ښکته برخه کې چې هواري لري او د سنګالي د غره لمنه ده د دواړو سیندونو اوبه سره یوځای کېږي. د چترال د سین اوبه خړې او د لنډي سین اوبه ډېرې پاکې او رڼې ښکاري دغه محل ته دوابه هم ویل کېږي چې د کونړ

لوی سین له دغه ځایه په غورځنګونو او موجونو سره د شمال نه د جنوب په لور د سپین غر په لور په غرو رغو کې تاو راتاو روان دی.
د چترال د سین اوبه د تراجمیر د غره د لمنو څخه راځي او د لنډي سین اوبه د نورستان د برسر سمنک او دیوانه بابا پېړوک، برګمټال او کامدیش د ساحو څخه په رنګینه سردرو کې د معدنیاتو د خزانو په سر د هیبتناکو ګړنګونو او هسکو غرونو څخه په مستۍ راروانې دي، چې د دواړو سیندونو په یوځای کېدو سره د کونړ د راسا سین قوت اخلي، د سنګالي غر یو هسک او لوړ غر دی چې ددې ببر او په شنو ونو پټ غر څخه ارنوي، لابریټ، کواتی، دمیل، میرکندی، دروش او د چترال زیات ځایونه په ډاګه ښکاري. د افغانستان د استقلال د څلورمې جبهې د مبارزې او غزاګانو په وخت کې چې ډېر انګرېزان په ارنوي، لامبریټ، کواتی، دروش، میرکنډی کې پراته وو او زموږ د لرغوني او تاریخي وطن د نیولو او قبضه کولو نیت او ارمان یې درلود او د چترال د میترپاچا شاهي نظام د انګرېزانو په قومانده او واکمنۍ او قبضه کې و، چې د انګرېزانو پرته یو ګام یې نه شو پورته کولی. کله چې د خان میرزمان خان په لارښوونه او قومانده په ارنوي، لامبریت او دمیل باندې د افغان غازیانو بریدونه پیل شول، افغاني مجاهدینو د انګرېزانو د کنټرول او ښه ترصد لپاره د سینګالي د غره سرته پورته شول، چې شمېر یې شلو تنو ته رسېده او هلته یې د غره په سر کې ځای په ځای شو، ددغه کسانو ګروپ د منطقې ولسونه وو، چې مشر یې اتک و.

د غره په سر يې اورونه بل کړه او لمبې به يې اسمان ته پورته کېدل، دغه د افغان مجاهدينو او غازيانو کوچنۍ قرارګاه د چترال د هر ځاى ځخه ښکارېده او د انګرېزانو او چترال پاچا پوځونه به له دغه ځاى ځخه ښکاره معلومېدل او د بريکوټ دوکلام افغان لښکريانو او غازيانو ته خبر ورکاوه. انګرېزانو ځو ورځې پرله پسې کوښښ وکړ چې د سنګالي غره ته پورته شي، خو د بيدارو غازيانو د مېړانې په برکت ناکام شو او ځو ځل تلفات يې وليدل. افغان غازيانو د ارنوي لام برېټ او کواتى د نيولو وروسته د ميل او ميرکنډي ته ورسېدل چې د هغه ځاى ځخه دروش او چترال ته ننوتل چې دا هرڅه د سنګالي د غره په سر پراته غازيانو په سترګو ليدل او ځارل. په سګالي کې دغو مجاهدينو او غازيانو د پوره برياليتوب لاس ته راوړلو پورې اوسېدل، د زرو کڅ نورمحمد کاکا په دې برخه کې ويل: مجاهدينو ته به خوراکي شيان او اوبه د ځوانانو له خوا د باغچې په لاره په اسانۍ انتقالېدې، د سنګالي د غره په سر د غازيانو د ګروپ د پوځي مېړانې له امله خان غازي ميرزمان خان ډېر خوښ او هغه کسان يې ټول په بريکوټ کې په يوه لويه غونډۍ کې ستايلي وو او سوغاتونه يې ورته ډالۍ کړي وو.

# د استقلال کیسې

د کونړ د چترال د خپلواکۍ جبهه ډېره یوه ارزښتناکه، بریالۍ او تاریخي جبهه وه په دې جبهه کې په زرګونو مجاهدینو برخه لرله او د اسمار او د غازي اباد او د ناړې د ولسوالیو قومونو، ولسونو، پښتنو، ګواریانو، ګجرانو په داوطلبانه ډول باندې ګډون درلود او د نورو سیمو او منطقو راغلو مجاهدینو ورونو سره څنګ په څنګ د جهاد په مورچلونو کې د ناړې نه تر چترال، ممریت، دروش، میرکنډی، کواتی، ګډ، ایون، پورې برخه اخیستې وه او ددې سرحدي منطقې ولسونو د چترال په جګړه کې ډېر ارزښتناک رول سرته رسولی دی، چې په دې برخه کې به په جداګانه اثر کې د هغه وخت موضوعاتو او ترسره شوي فعالیتونو او سربښندنو سره اشنا شئ، خان میرزمانخان د چترال په جبهه کې د یو ځلانده ستوري په څېر ځلېدلی دی او د شهامت او مېړانې کیسې یې یو نسل نه بل نسل ته خوله په خوله ور رسېږي.

د کوهستان ولسونه د وطن سره ډېره مینه لري او د وطن په مینه سربښندنه ورته ابدي ویاړ او د جنت لاره یې بولي.

# شاهي ماڼۍ ته تګ

ملک محمد يوسف د کونړونو د ناړۍ د ولسوالۍ د سرحدي منطقې يو زړور او په وطن مين باتدبير شخصيت و، چې د استقلال په څلورمه جبهه کې د خان ميرزمانخان سره څنګ په څنګ د جهاد په مورچلونو د يوغښتلي قوماندان او قومي مشر په توګه د ميړنتوب ستر کارونه سرته رسولي.



ملک محمد يوسف خان د ناړۍ د مرکزي کلي اوسېدونکی و او د دوکلام، بريکوټ، ساو، نشه ګام د اسمار پورې ددې مېشتو قومونو او ولسونو مشري يې پر غاړه لرله. نوموړی مشر د دير نوابي سره او د شرقي نورستان مشرانو سره او د کونړ د نامدارو مشرانو سره نږدې اړيکي لرل او دچترال د پاچا سره هم د ګاونډيتوب ښه روابط درلودل. څه مسايل چې د اسمار نه د بريکوټ پورې ولسونو ته پيښېدل هغه به ملک محمديوسف او ملک رحمن الدين

دواړو په خبرو او جرګو حل کول، دواړه نېک او د ولسونو د اعتماد وړ شخصیتونه وو. کله چې خان میرزمانخان ناړې ته د استقلال څلورمې جبهې د خپلو لښکریانو سره د انګرېزانو او د چترال د پاچا د عسکرو ماتې لپاره راغی ملک محمد یوسف خان له خوا په زړوکښ کې دخان میرزمانخان او د هغه د لښکریانو استقبال لپاره ډېر ولسونه او د قومونو مشران په درناوي باندې راوتلي وو، د خان میرزمانخان د راتګ له امله ډېر تود هرکلی وشو او د ټولو قومونو او ولسونو له خوا ملک محمد یوسف خان، خان میرزمانخان ته د انګرېزانو او د چترال د باچاد وسله والو کسانو پر ضد د جهاد او غزا لپاره د هر ډول مرستو ډاډ ورکړ او خان میرزمانخان ته یې وویل دا چې تاسو د چغسرای څنې دلته ناړې سیمې ته راغلي یاست موږ ټول ولسونه ستاسو په راتګ خوښ یو او یقین لرو هغه پلانونه چې د چترال پاچا او انګرېزان لري هغه به ټول ستاسې په لارښوونه د مجاهدینو په مېړانه شنډ شي او د انګرېزانو په مقابل کې به په غزا کې موږ ته خدای پاک بری په نصیب کړي. خان میرزمان خان ددې خبرو په اورېدو باندې ډېر زیات خوښ شو او د ملک محمدیوسف سره غاړه په غاړه شو او نورو راټول شوي ولسونه او لښکریانو د خوښۍ څنې الله اکبر نارې وکړې.

د خان میرزمانخان په لارښوونه او مشوره باندې ملک محمد یوسف د انګرېزانو د لښکرو پر ضد په ارنوي، ارنوی کښ، لام بربټ، کواتی، کوری میرکنډي، ایون، ممریت او نورو هغه ځایونو

کې چې انګرېزانو ځانونو ته کانکريټي محلونه او مورچلونه جوړ کړي ملک محمد يوسف د ټولو قومونو او ولسونو په مرسته په ډېره مېړانه او هوښياري ډېر برياليي کارونه سرته ورسول، چې خان ميرزمانخان د ملک محمد يوسف د برياليو کارونو له امله ډېر خوښ و. کله کله به چې خان ميرزمانخان اسمار يا چغسراى يا جلال اباد ته تللو ملک محمد يوسف د خان ميرزمانخان د ټولو کارونو د اجرا کولو مسووليت په غاړه درلود. کله چې انګرېزان په ارندو، کواتي، دروش او چترال کې په خپلو پلانونو کې ناکام شول او افغان مجاهدينو ته بري په نصيب شو. په ۱۹۱۹ کې خان ميرزمانخان د غازي امان الله خان له خوا کابل ته دده د برياليو غزاګانو او برياليتوب له امله غوښتلى و چې خان ميرزمانخان د بريکوټ او د نارې ښخه د تګ پر وخت کې ملک محمد يوسف او نور ددې محل ۴۰ تنه مجاهدين له ځان سره کابل ته بولي وو او د کابل په شاهي مانۍ کې د غازي امان الله خان سره مخامخ شوي وو او څو ورځې په دربار کې پاتې شوي وو. ملک محمد يوسف د غازي امان الله خان له خوا يوه توره او يو د مېړنتوب فرمان او يو د سرو زرو مډال چې هغه وخت کې به ورته «بهادري» ويل کېده د غازي امان الله خان له خوا د ملک محمد يوسف په واسکټ کې ټومبل شوې وه، چې نوموړى مشر د خان ميرزمانخان له خوا غازي امان الله خان ته په ښه توګه ورپېژندل شوى و، چې دا ډېر مېلمه پال

او په وطن مین دی او خان میرزمانخان د کونړ د مجاهدینو او ولسونو په نمایندګۍ د غازي امان الله خان څنې ډېره مننه کړې وه.
څلور پنځه شپې وروسته دغه دواړه تللي مجاهدین د خان میرزمانخان په ګډون جلال اباد ته د لته بند پر لار راغلل، چې بیا د جلال اباد څنې کونړ چغسرای ته راورسېدل. ملک محمد یوسف خان د خپلو ملګرو سره د خان میرزمانخان سره یوځای شپه وکړه او په سهار ملک محمد یوسف د خپلو ملګرو سره د اسمار پر لور روان شو، چې د خان میرزمانخان له خوا ملک محمد یوسف ته یو لنډۍ، ویښ، سپین، چابک او زین کړی اس د سوغات په ډول ورکړ او نورو ټولو مجاهدینو ته چې د غازي امان الله خان له خوا د کابل په شاهي ماڼۍ کې یوه یوه لونګۍ ورکړ شوې وه د ملک محمد یوسف کسانو ته وسپارل شوې او د چغسرای څنې د ناړې پر لور د خان میرزمانخان څنې رخصت شو، خو خان میرزمانخان ملک محمد یوسف ته وویل چې زه په نږدې ورځو کې ناړې او بریکوټ ته درځم او د ټولو ولسونو سره له نږدې ګورم.
ملک محمد یوسف سره په دې ویاړلې دوره کې ۴۱ تنو څنې زیات مجاهدین ملګري وو، مازیګر نږدې نشه ګام ته ورسېدل چې په دې ځای کې د ملک محمد یوسف استقبال ته ډېر ولسونه راوتلي وو، د نشه ګام مشرانو نوموړي ته د شپې تېرولو بلنه ورکړه او شپې لپاره نشه ګام کې پاتې شو او سبا ته د غرمې ډوډۍ لپاره د

ساو مشرانو بلنه ورکړې وه، چې ساو کې د غرمې ډوډۍ او د لمانځه وروسته د ناړۍ پر لور روان شو، د ناړۍ د شاوخوا ولسونه د ملک محمد یوسف هر کلي او استقبال ته چې د نانګل کڅ ته مخې ته راوتلي وو دا د خوښۍ او خوشالۍ وختونه وو او د غازي امان الله خان له خوا په ټول افغانستان کې د خپلواکۍ اعلان شوی و، د ملک محمد یوسف خان سره په دې تاریخي سفر کې لاندې کسانو ګډون درلود:

۱- ملک رحمن الدین - ناړۍ
۲- جمروزخان مشهور په ګلي -دوکلام
۳- شاه حسین - دوکلام
۴- میرزا ضیاالدین د ارسلا زوی - ناړۍ
۵- احمدشاه د زښت شاه زوی - ناړۍ
۶- ملک سیدعلي میرزا - ناړۍ
۷- حضرت بیګ - ناړۍ
۸- ملک شاه - ناړۍ
۹- ارسلا خان - ناړۍ
۱۰- ملک رحمت الله د لنګرخان زوی - ناړۍ
۱۱- عبدالله مشهور په پهلوان - ناړۍ
۱۲- اټک - ناړۍ
۱۳- عرب دین - ناړۍ
۱۴- ظفرخان د ملک شاه زوی - ناړۍ

۱۵- عبدالمنان – ناړې
۱۶- غلام سید مشهور په ناړې ملا
۱۷- رضا خان - ناړې
۱۸- سید جلال – ناړې
۱۹- شهاب الدین – ناړې
۲۰- عبدالجلیل – ناړې
۲۱- ملک ګلوخان – ساو
۲۲- ملک رحمت الله – ساو
۲۳- احمدخان – ساو
۲۴- ملک سیدخان – بریکوټ
۲۵- جلات خان – بریکوټ
۲۶- عبدالله جان – بریکوټ
۲۷- نورعالم خان – بریکوټ
۲۸- ملک محی الدین – درام خوړ
۲۹- سراج الدین د میرزا نورمحمدخان پلار – ناړې
۳۰- همایون ملک – ناړې
۳۱- محمدجی – ناړې
۳۲- سیدنور – ګجر ناړې
۳۳- شال – ګجر ناړې
۳۴- ملک شهزاده د کن زوی - ګجر ناړې
۳۵- کچی – ناړې
۳۶- سید امان – ناړې شیرګل
۳۷- سیدجان ملک – شنګر
۳۸- ملک حسن – کرچیګل

۳۹- ملک بهرام - گجر نا ڑی
۴۰- اشرف خان - نا ڑی
۴۱- سلطان جان - نا ڑی

# د چترال د پاچا خوب لیدل

د چترال پاچا د ګواریانو مشرانو ته ملک محمد یوسف خان او ملک رحمن الدین ته لیکونه او ځوابونه راولېږل، چې د یوې ضروري خبرې او مشورې لپاره د ارنوي کواتي یا میرکنډي ته راشي دغه وخت د کونړ او د نورستان او د چترال حالات ښه نه وو او انګرېزان په چترال کې هرې خواته پراته وو او په افغانستان کې حالات ښه نه و او په افغانستان کې د انګرېزانو پر ضد د جهاد لپاره په سرحدونو کې ولسونه راپاڅېدلي وو.

د چترال د پاچا نماینده د ارنوي خواته (کوري) ته راغلی و او د چترال د پاچا یو ورور او دوه ورېرونه او دوه تنه انګرېزان ددې خبرو لپاره موظف شوي وو د نارې دغه دوه مشران د خپلو ۲۰ کسانو سره د خبرو لپاره ((کوري)) ته ورغلل او په خبرو کې یې ګډون وکړ.

په خبرو کې د چترال د پاچا ورور او ودوه تنو انګرېزانو د نارې مشرانو ته وویل: د بریکوټ څنې د اسمار پورې ددې منطقې واک او اختیارات به دایمي ستاسو شي تاسو ته بلنه درکوو، چې د چترال د پاچاهۍ سره یوځای شئ او موږ د نورستان مشرانو سره هم په دې هکله خبرې کړې دي، تاسو ته به دوه سوه میله ټوپکې دوه توپونه او نقدي پیسې هم درکړو او تاکید یې وکړ چې زموږ مقصد دادی چې د انګرېزانو پر ضد په غزا کې ګډون مه کوئ او د نورو سره هم د غزا په برخه کې ګډون مه کوئ، دغه دواړه مشرانو یو او

بل ته وکتل او د چترال پاچا وروړ او انګرېزانو ته يې وويل: د ناړې نه تر اسماره دا منطقه زموږ ده او زموږ به وي دلته هېچاته د واکدارۍ اجازه نه شته، موږ د خپلو نورو مشرانو سره خبرې او مشوره کوو، يوه جمعه وروسته به تاسو ته احوال درکړو، ددې لپاره چې انګرېزان او د چترال پاچا ذکر شوي مشرانو ته تاوان ونه رسوي بنديان يې نه کړي او د وژلو څنې خلاص شي په دې چل بېرته بريکوټ ته راغلل او د بريکوټ څنې عاجل ليک په ذريعه د چترال پاچا او انګرېزانو ته احوال ورکړو، موږ افغانان يو او هېڅکله به د وطن او افغانانو پر ضد ونه درېږو تاسو ته خبرداری درکوو چې کوم خوب چې تاسو ليدلی چې د بريکوټ نه تر اسماره پورې به دغه منطقه د چترال مربوط شي تش خيال دی او انشاء الله په ارندو او چترال کې به هم ستاسو پر ضد زموږ جهاد ډېر ژر شروع شي، د چترال پاچا او انګرېزان پوهه شو چې افغانان له خپلې پرېکړې څنې نه په شاه کېږي.

# په لام بربټ او ارنوي حمله

په لام بربټ کې د انګرېزانو توپچي قوه ځای پر ځای وه او د چترال د پاچا کسان هم ورسره یوځای اوسېدل، لام بربټ د ارنوي شمال ختیځ خواته نږدې په هسک ځای کې موقعیت درلود او هر وخت به د لام بربټ نه توپونو بریکوټ، دوکلام او پاشنګر باندې ډزې کولې او د دوکلام او د بریکوټ او یا د نورستان د باغچې له خوا افغاني مجاهدینو د یرغل مخه همدغه توپچي قوې نیوله او مجاهدینو نه شول کولای چې دروش او میرکنډي ته په یرغل د غزا لپاره لاړ شي.

ددې لپاره چې دروش او چترال او ایوان او ممریت ته د مجاهدینو لاره او مخه خلاصه شي خان میرزمانخان د منطقې خلکو سره مشوره وکړه چې د انګرېزانو دغه توپچي قوه څنګه له منځه یوسو ملک محمد یوسف او د منطقې نورو مشرانو خان میرزمانخان ته مشوره ورکړه چې یو پنځوس تنو تکړه مجاهدینو یو ګروپ باید چمتو شي او په شنګر باندې د ارنوي خوړ ته ښکته شي او هلته د ارنوي په غره باندې پورته شي البته دا حرکت باید په توره شپه کې وشي چې په لام بربت کې د انګرېزانو دغه توپچي قوت محاصره شي او د قربانۍ په بدل کې به د انګرېزانو دغه محل مجاهدینو ته په لاس ورشي او انګرېزان به په دغه یرغل کې مردار شي. خان میرزمانخان دغه د منطقې د مشرانو فیصله ومنله او یو ۴۰ تنو

مجاهدینو غبنتلی ګروپ جوړ شو. په دې ګروپ کې ددې منطقې کسان تنظیم شول چې قوماندان یې اتک او مرستیال یې ملک شهزاده د کن زوی او څلور تنه نور واړه قوماندانان چې هر یو:

۱- قابل د شان زوی ګجر له (۸) تنو سره
۲- شمس الرحمن د ناړې له (۸) تنو سره
۳- جلات خان د بریکوټ له (۸) تنو سره
۴- رحمت الله د ساو له (۸) تنو سره
۵- احسان د نشه ګام له (۸) تنو سره
۶- صنوبر د چیره ګل له (۸) تنو سره

چې ټول ۴۸ تنه کېدل د لام بریټ د توپچي قوې پر ضد یرغل لپاره د ناړې څنې د شنګر په لور لام بریټ ته روان شول، چې ټولو مجاهدینو ورته دعا وکړه. کله چې دغه جانبازانه ګروپ شنګر ته مازیګر ورسېد هلته ورته د سید جان ملک له خوا څاروي حلال شول مجاهدین یې ښه تشویق کړل د ارنوي او لام بریټ پر لور روان شول او د ماښام په توره تیاره کې د لام بریټ پر لور په غرونو د انګرېزانو د توپچي قوت له منځه وړلو لپاره په چریکي ډول ورپورته شول او خپل د هدف محل ته په کامیابۍ سره ورسېدل نیمه شپه وه محل یې محاصره کړ او پر انګرېزانو او چترالي پاچا عسکرو یې یرغل وکړ، چې په نتیجه کې (۸) تنه انګرېزان ځای پر ځای مړه شوي وو او د چترال پاچا عسکر په تېښته کواتي ته تښتېدلي وو دوه توپونه یې ونیول د انګرېزانو مورچل ته یې اور واچاوه او د ارنوي په چونۍ

باندې راغله یو توپ یې د ارنوي په چوڼۍ کې ونیو او دوه انګرېزان په کې مړه شوي وو او نور یې په تېښته کواتي او میرکنډي ته تللي وو، چې د لام بربټ او د ارنوي چوڼۍ د اور د لګېدو له امله شین اسمان په باروتو په لوګیو تور ښکارېده او افغاني مجاهدین روغ رمټ بریکوټ ته راورسېدل. ددې بریالیتوب ځنې خان میرزمانخان په ناړۍ کې خبر شو او د خپلو مجاهدینو استقبال او مبارکۍ لپاره د بریکوټ سلام کوټ ته د آس په واسطه ځان راورسولو او د دروش او چترال په لور د مجاهدینو لاره خلاصه شوه چې دغه کار لویه کامیابي ګڼل کېده چې د خان میرزمانخان له خوا دغه مجاهدین تقدیر او وستایل شول.

# د قران شریف ختم او دعا

کله چې خان میرزمانخان د ناړې مرکزي کلي ته ورسېد دده په ویاړ د ناړې د مېشتو ولسونو او په خاص ډول د ناړې د خلکو له خوا د غرمې ډوډۍ برابره شوې وه، چې د ولسونو لښکریانو او مجاهدینو لپاره د ډوډۍ خوړلو او کېناستو لپاره د ناړې د لر کلي ولسي باغ کې ځای برابر شوی و په ځمکه ټغر هوار شوی و او کټونه او بالښتونه ایښودل شوي وو په دغه مېلمستیا کې د زرو کسانو څنې زیاتو ولسونو برخه لرله چې زیات څاروي ورته حلال شوي وو، ټولو راغلو مېلمنو مجاهدینو د خان میرزمانخان په ګډون د غرمې ډوډۍ وخوړه او د ماسپښین لمونځ یې وکړ او د ناړې د ملا امام له خوا چې د شیران ملا په نوم شهرت درلود د خپلو طالبانو په واسطه د قرآن شریف ختم وکړو او ملا محمد شیران مجاهدینو ته د انګرېزانو او د چترال د پاچا د ناکامۍ او د ځان د بری لپاره دعا وشوه چې ټول مجاهدین په احساساتو راغلل او خان میرزمانخان څنې راغلو مجاهدینو هیله وکړه چې د بریدونو او غزا امر وکړه په همدغه مازیګر د مجاهدینو ګروپونه جوړ شو او د بریدونو او غزا او چریکي جنګونو لپاره چې د خان میرزمانخان جنګي قرارګاه په ناړې کې وه د بریکوټ ارندو او کواتي او چترال او دروش په لور د الله اکبر په نارو روان شول. چې د مجاهدینو دغه احساساتي او افغاني او اسلامي حرکات د خان میرزمانخان د خوښۍ سبب شول او باوري شو چې برې د افغانانو په برخه دی.

# خوراکي مواد

د استقلال څلورمې جبهې مرکز د کونړ ولایت څخه ډېر زیات په اوږده لرې سرحدي ساحه کې موقعیت درلود.

د انګرېزانو او چترالیانو سره سخته غزا شروع وه چې افغاني مجاهدینو ته خوراکي مواد په ختمېدو شو په هغه وخت کې سړکونه او د موټرو لاره نه وه او ډېر زیات مشکلات وو، خان میرزمانخان د منطقې مشران وغوښتل او دغه د خوراکي موادو ستونزه يې ورته وویله. د منطقې مشرانو هر یو خان میرزمان خان ته وویل، چې رزق ورکوونکی خدای پاک دی هر څه چې موږ لرو هغه د مجاهدینو او غازیانو ځنې قربان، د خوراکي موادو د ټولولو لپاره یو هئیت وټاکل شو چې د مجاهدینو لپاره خوراکي مواد برابر شي او ستونزه حل شي عمومي مشران لاندې کسان وټاکل شول:

١- ملک محمد یوسف – ناړی
٢- ملک رحمن الدین – ناړی
٣- ملک شاه حسین – دوکلام
۴- میرزا حیاوالدین – ناړی
۵- احمدشاه – ناړی
٦- ملا محمدشیران - ناړی
٧- میرمحمدشاه – ناړی
٨- ملک ګلوخان – ساو

۹- ملک شهزاده د کن زوی
۱۰- ملک محمد – بریکوټ
۱۱- حبیب نور – ګجر
۱۲- شال – ګجر
۱۳- اشرف خان – مچنی
۱۴- سید جان – شنګر
۱۵- محی الدین – شالیکوټ
۱۶- ملک سیدعلي میرزا – ناړه

دغه شپاړس کسیز هئیت په منطقه کې وګرځېدل او د اندازې او د تصور نه زیات خوراکي مواد لکه غنم، جوار، لوبیا، غوړي او سونو او زرونو حیوانات یې جمع کړل. خان میرزمانخان ته راپور ورکړ شو چې خوراکي مواد د ولسونو او قومونو له خوا جمع شوي او د ناړه په قرارګاه کې ځای پر ځای شول چې د حیواناتو ساتلو لپاره شل تنه شپانه موظف شو. خان میرزمانخان د هئیت د فعالیت نه ډېره خوښي څرګنده او ټولو مجاهدینو ددغه نېک کار له امله ددې منطقې ولسونو ته دعا وکړه.

# دولس تنو ته توري، سل کسانو ته جامې او لونګۍ ورکول

د چترال او کونړ د جبهې اتلانو ته چې په جهاد او غزاګانو کې په مېړانه او افغاني غرور د انګرېزانو او د چترال په ضد جنګېدلي وو کله چې د خپلواکۍ د ثلورمې جبهې لښکريانو په ارندو په چترال کې انګرېزانو ته په پوره ايمانداری ماته ورکړې وه په ارندو او لام بريټ، کواتي، کورۍ، ميرکنډي کې د انګرېزانو پوځونه او مورچلونه د هغو په وينو سره شول او په بريکوټ او دوکلام کې زموږ د ملي اتلانو له خوا د خپلواکۍ بيرغونه پورته شول. انګرېزانو سخته ماتې وخوړه او د ناکامۍ ټغر يې د چترال او دروش مرکزونو ته ټول شو، تاريخي برياليتوب افغانانو ته په نصيب شو.

په بريکوټ کې يوه لويه او درنه غونډه د ثلورمې جبهې د اتلانو د سربښندنو او مېړانې په وياړ جوړه شوې وه په دې لويه او تاريخي غونډه کې د کونړونو غازي ميرزمان خان مجاهدينو ته د برياليتوب او د خپلواکۍ مبارکي ورکړه او ويې ويل

ستاسې د مېړانې او سربښندنو څخه غازي امان الله خان پوره خبرتيا لري او هغه انعامات او سوغاتونه چې د کابل څخه تاسو ته د غازي امان الله خان له خوا رالېږل شوي په دې لويه غونډه کې يې تاسو ته سپارم.

نور نو د انګرېزانو ارمانونه خاورې ايرې شول، انګرېزانو غوښتل چې د کونړ په لاره ځانونه د تورو اهدافو د عملي کولو لپاره جلال اباد او کابل ته ورسوي او زموږ خپلواکۍ د خطر سره مخ کړي. د لوی خدای(ج) په فضل او ستاسو په همت او جرئت سره انګرېزان ناکام شو او په خپلو وينو کې ولمبېدل دا تاريخي وياړ اوس تاسو ته په برخه شو.

يو شمېر نورو مشرانو هم په دې لويه غونډه کې خبرې وکړې او د خان ميرزمان خان مېړانه، شجاعت او ايمانداري يې وستايله او هغه ته يې د څلورمې جبهې د لښکريانو د برياليتوب له امله مبارکي ورکړه. په دې غونډه کې د قومونو مشرانو خان ميرزمان خان ته ډاډ ورکړ چې ددې سيمې او منطقې ولسونه هر وخت ستاسې په لارښوونه د وطن د خدمت په لاره کې سربښندنې لپاره چمتو دي.

دغه لويه او درنه غونډه د بريکوټ په سلام کوټ کې ترتيب شوې وه چې د ناړۍ د ولسوالۍ او د اسمار ولسوالۍ او د کونړ د مرکزي سيمو او د ختيځ نورستان د کليو څخه زياتو ولسونو ګډون درلود.

د خان ميرزمان خان له خوا (۱۲) تنو ته په خپل لاس پوښ داره توري (شمشير) د ميړانې او ښه خدمتونو له امله ورکړ شوې چې نومونه يې دادي:

۱- ملک رحمن الدين

۲- ملک محمد يوسف

۳- ملک جلات خان

۴- جمروز خان

۵- ميرزا حياوالدين

۶- عبدالله پهلوان

۷- ملک عبدالمنان

۸- مولوي غلام سيد، مشهور په ناړۍ ملا

۹- ملک ګل ولي خان، د نشه ګام

۱۰- احمدشاه

۱۱- ملک سيدعلي ميرزا

۱۲- عرب الدين

او سلو تنو مجاهدينو ته يوه يوه جوړه جامې او هر يو ته يوه يوه لونګۍ په خپله د خان ميرزمان خان په لاسونو انعام ورکړ شوې. دا درنه غونډه د دعا په کولو سره پای ته ورسېده او د غونډې برخه وال ددې کار له امله د خان ميرزمان خان ډېره قدرداني وکړه او د الله اکبر په نارو سره يې د انګرېزانو ناکامي په دې جبهه کې ټولو مجاهدينو خپل برياليتوب وباله. ددې غونډې په اخر کې د ملک رحمن الدين په لاسونو د خان ميرزمان خان په اوږو باندې يوه سپينه شوقه واچول شوه چې په کور ودانۍ سره يې ومنله. د خان ميرزمان خان په وياړ باندې په نارې کې يوه درنه مېلمستيا شوې وه چې لوی خان د خپلو مشرانو ملګرو سره د زين شوي اسونو په بدرګه نارې ته خپلې برياليۍ جبهې عمومي قرارګاه ته تشريف يووړ.

# تر اسماره پورې له ۲۴ زین شویو اسونو سره د میرزمان خان بدرګه

د استقلال د څلورمې جبهې مجاهدینو ته چې د انګریزانو او د چترال د میتر (پاچا) د پوځونو پر ضد په جګړو یرغلونو کې خدای پاک کامیابي په نصیب کړه په ټول افغانستان کې د ټولو افغانانو لپاره د جشن شپې او ورځې وې.

پر (۱۲۹۸) د اسد د میاشتې پر (۲۸) نېټه غازي امان الله خان له خوا د استقلال اعلان وشو، د کونړ او د چترال د جبهې عمومي قرارګاه چې په ناړۍ کې یې موقعیت درلود، څو ورځې او شپې ډولونه، سورني غږېدل او د مجاهدینو لنګر د مجاهدینو لپاره جاري و، په دې شپو ورځو کې غازي میرزمان خان د ناړۍ څخه د کونړ مرکز او بیا کابل ته د سفر په نیت حرکت کاوه، سهار پوره (۸) بجې وې چې غازي میرزمان خان د ناړۍ د قرارګاه څخه د کونړ د مرکز پر لوري حرکت وکړ. د ناړۍ د پله خواته لر کلي کې چې لوی باغ د توتانو و او دوه ویالې د باغ په منځ کې روانې او به لرلې، ددې باغ سیوري ته کټونه

ایښودل شوي وو او په زرګونو مجاهدین او د محل قومي ولسونه د غازي میرزمان خان د تګ استقبال لپاره چې سرلوړی د بري سره د غازي امان الله خان خواته د تګ نیت درلود او د استقلال د جبهې ټولې چارې او د قوماندانۍ اختیارات یې ملک رحمن الدین ته د مشرانو په محضر کې وسپارل، د څلورمې جبهې د محل د ولسونو او قومونو له خوا (۲۴) اسونه په ښه توګه زین شوي وو او د وریښمو رنګه شالونه وربانديې اچول شوي وو د ډول او سورني موزیک غږېده د خوښۍ جشن د ولسونو له خوا ترتیب شوی و، غازي میرزمان خان چې کله د محل د ولسونو دا کار په خپلو سترګو ولیده ډېر زیات خوشاله شو او په خندا یې مشرانو ته وویل چې دا مو څه کړي؟ یو تن مشر حضرت سید (ناړۍ ملا) ورته وویل: دا زموږ کار دی ته زموږ د ولسونو قومونو غیرتي مشر یې موږ هم ډېر خوښ یو چې د استقلال د څلورمې جبهې د سرلښکر په توګه سرلوړی د غازي امان الله خان خواته روان یې موږ باندې حق لرې او د یو توریالي پښتون په توګه د جهاد د جبهې نه اوچت سر کابل ته روان یې موږ او دا (۲۴) اسونه ستا په احترام د اسمار پورې له تاسره ملګري یو، بیا وروسته یو بل مشر ملک رحمن الدین

خبرې وکړې او د دعا په کولو سره غازي میرزمان خان اس ته
پورته شو او د الله اکبر په نارو سره مجاهدینو د نوموړي غازي
سره خدای پاماني وکړه او د نارې نه دده سره د لارې د ملتیا
لپاره (۴۰) تنه د محل مجاهدین یوځای روان شو په ساو او
نشه ګام کې دده مخې ته ډېر زیات مشران مجاهدین ځوانان
راوتلي وو او د خوښۍ نه پرته د مجاهدینو دنارې ساو نشه
ګام سپین سرو مېرمنې ورته لارو کې غوزان شیندل. د
ماسپښین د لمانځه وخت ته نشه ګام ته ورسېدل، ولسونو
زیات استقبال وکړ د غرمې ډوډۍ یې په نشه ګام کې د ملک
ګل ولي سره یوځای وخوړه او شپې ته د نورو ملګرو سره پاتې
کړ. په نشه ګام کې د غازي میرزمان خان او د هغه د ملګرو
لپاره د ډوډۍ ترتیب نیول شوی و او اسونو ته یې وابښه او
وربشې مخې ته اچولې وې. غازي میرزمان خان سره ولسونو
ډېره مینه کوله چې دا پخپله د غازي میرزمان خان د مېړانې او
ایمانداری ثبوت ګڼل کېده. په نشه ګام کې یې شپه وکړه او
سهار یې په داسې حال کې د اسمار پر لوري حرکت وکړ چې د
سهار چای ورته په بارګام کې انتظام نیول شوی و، په نشه ګام
کې لس اسونه نور زین شوي وو او د وسلو سره نور کسان هم

ورسره ملګري شو او پوره د غرمې لمانځه او ډوډۍ ته اسمار ته ورسېدل چې په اسمار کې ورته پوځي منصبداران مخې ته راوتلي وو ډېر استقبال ورته وشو او د ناړۍ مجاهدین چې غوښتل يې چغسراى پورې ورسره مل يوځاى لاړ شي خو غازي ميرزمان خان ډېره مننه وکړه او د ناړۍ او نشه ګام مجاهدينو سره يې بېل بېل خداى پاماني وکړه او د ناړۍ په خوا مجاهدين بېرته روان شو او غازي ميرزمان خان د شپې تېرولو لپاره اسمار کې د خپلو نورو ملګرو سره پاتې شو، چې دا ډول خوږې او تاريخي کيسې اوس هم زموږ ولسونه يادوي او دا کيسې به د يو نسل څخه بل نسل ته پاتې وي.

# برګمټال او کامدېش ته (۳۰) تنه مشران لیږل

دا خبره خو ټولو افغانانو ته خصوصاً دردمنو او پوهه باخبرو او لوستونکو ته پوره پته ده چې زموږ د هېواد سرحدونه د وخت او د زمانو د یرغلګرو او دسیسو له امله په هره خوا قیچي شوي دا چې شرقي نورستان د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې د اسلام په مبین دین مشرف شو، خو بیا هم ددې خاورې دښمنان په قرار پاتې نه و د انګرېزانو له خوا او د چترال د مهتر له خوا ځینې جدیدیانو ته «نورستان» ته پټې پیسې ورکول کېدې چې تاسو د استقلال د څلورمې جبهې د مجاهدینو په ضد راپورته شئ او په ضد یې پوځي عمل په کار دی خو د چترال پاچا مهتر ډېر کوښښ کاوه چې شرقي نورستان او د کونړ سرحدي ساحه د بریکوټ نه تر اسماره په خپله قبضه کې راولي، د شرقي نورستان په ځینو ځایونو او کلیو کې دا فعالیتونه د انګرېزانو او د چترال د مهتر له خوا په ډېر جدیت سره روان وو چې نورستاني د استقلال د څلورمې

جبهې په ضد راپاڅوي تر څو د انګرېزانو د واکمنۍ ساحه د چترال د مهتر په نوم زیاته شي یو شمېر نورستانو د انګرېزانو او د چترال د مهتر په طرفدارۍ فعالیتونه کول او د څلورمې جبهې د مجاهدینو په ضد یې انګرېزانو ته راپورونه ورکول او ناوړه اعمال یې هم ترسره کړي وو، ددې موضوعاتو او خبرو اترو څخه غازي میرزمان خان او د هغه ملګري خبر شو او دا خبره ورته ثبوت شوه چې په نورستان کې یو شمېر کسان د انګرېزانو او د مهتر پاچا سره شته چې د مجاهدینو په ضد کار او فعالیت کوي، نو ددې لپاره چې نور خطرناک او ناوړه مسایل د څلورمې جبهې مجاهدینو او لښکریانو ته پیدا نه شي ددې ناوړه اعمالو د مخنیوي لپاره غازي میرزمان خان د خپلو مشرانو ملګرو سره پرېکړه وکړه چې شرقي نورستان کامدېش او برګمټال ولسونو او مشرانو ته یوه جرګه یا هئیت واستوي او د نورستان مشرانو ته تبلیغ وکړي چې د څلورمې جبهې پوځي فعالیت، بریدونه، یرغلونه یوازې او یوازې د انګرېزانو په ضد یو افغاني عمل او کار دی.

د نورستان د ولسونو سره هیڅ کار نه لرو د نورستان ټول قومونه او ولسونه زموږ ورونه دي یو هدف لرو یو بیرغ لرو

موږ يوازې او يوازې د انګرېزانو په ضد د جهاد لپاره چمتو يو، انګرېزان چې د لندن نه چترال ته راغلي غواړي چې زموږ وطن او خاوره ونيسي او موږ په خپله خاوره او وطن کې غلامان کړي، مشرانو او سپين ږيرو ته په تاکيد سره غازي ميرزمان تکرار څو ځله وويل چې د نورستان ولسونو قوت زموږ دی د چترال پاچا او انګرېزان غواړي چې يو شمېر کسان په نورستان کې زموږ په ضد راپورته کړي، موږه خبر شوي يو چې د اوڅون، ګرم چشمه او پيشاورک په لارې نورستان ته يو شمېر تورمخي ګروپونه د انګرېزانو او چترال پاچا له خوا نورستان ته لېږل شوي چې د نورستان د شريفو او وطندوستو ولسونو ذهنيت د افغان مجاهدينو په ضد پاڅوي تاسو مهرباني وکړئ د کامدېش ټولو محلاتو ته او د برګمټال ټولو محلاتو ته په جرګه ورشئ په جوماتونو په غونډو کې په اخلاص او افغاني روحيه د انګرېزانو او دچترال د پاچا تور اهداف افشا کړئ او هغو ته ووايا ست چې د بريکوټ، دوکلام او نارۍ پوځي قرارګاه او د مجاهدينو لښکرې ستاسو قوت دی.

مورږ ستاسو همکارۍ ته اړ یو مورږ افغانان یو وطن او ننګ مو سره شریک دی د خپلواکۍ بیرغ او تاریخ مو شریک دی او د لوی خدای(ج) اسماني کتاب قران شریف او د اسلام مبین دین مو یو دی.

د غازي میرزمان خان په لارښوونه (۳۰) کسیزه جرګه چې د بېلابېلو قومونو مشران او سپین ږیري په یوه دعا شرقي نورستان ته ننوتل چې (۱۵) تنه مشران د کامدېش لپاره او (۱۵) تنه مشران د برګمتال په لور روان شول چې په دې جرګه کې د وخت لایق او باتجربه او هوښیار دیني عالمان هم شامل وو.

دغو د جرګو مشرانو د کامدېش او د برګمتال د مشرانو او سپین ږیرو سره له نږدې وکتل، د غازي میرزمان خان له طرفه لیکونه یې ورته ورکړل چې خپل پیغام یې په کې لیکلی و مشران ډېر خوښ شو او هر کلی او هر محل ته په جرګه لاړل او د استقلال د څلورمې جبهې د اهدافو په اړه یې د خلکو سره په اخلاص او صمیمیت خبرې اترې وکړې او د کامدېش مشرانو د دغې جرګې د مشرانو پوره استقبال وکړ. د کامدېش د مشرانو له خوا ملک محمد امین او چندلو استان، هزارملک، وادین

ملک او راملیک او ملک شهسوار خان له خوا د جرګې مشرانو ته ډاډ ورکړ چې هیڅوک د انګریزانو او د چترال د مهتر پاچا په طرفدارۍ دلته کار او فعالیت نه شي کولی موږ تاسو او د استقلال د څلورمې جبهې مشرانو ته غازي میرزمان خان ته ډاډ ورکوو چې هر ډول خدمت ته موږ تیار یو او د انګریزانو او د چترال مهتر سره هیڅوک رابطه نه شي کولی موږ مسلمانان یو بیا افغانان یو او فخر د اسلام زموږ لپاره شریک دی د کامدېش مشرانو سره یوځای د جرګې مشران (منډه ګل) ، ساریت، پیتي ګل، میردیش، ګواردیش، اګرو، ورمور او ځینو نورو کلیو ته لاړل ددې جرګې مشري ملک رحمن الدین، ملک همایون او ملک ګل ولي په غاړه لرله. دغه بله جرګه چې برګمتال ته ورسیده ددې محل د مشرانو هر یو جانا استان، وړملک، ملا عبدالجبار او نورو مشرانو له خوا د اسونو سره د پېړوک خوړ ته د جرګې مخې ته راوتلي وو یوځای د برګمتال کلي ته ورسېدل، لومړی جرګه یې په برګمتال کې د مشرانو او ولسونو سره وکړه او بیا د برګمتال مشرانو سره یوځای شیدګل، افخي، پشاورک، دیوانه بابا، چپو، بدموک، اوله ګل، بدین شاه او نورو کلیو ته ورغلل په هر کلي کې د

جرګه مارو ډېر استقبال وشو او مشرانو د جرګې غړو ته ډاډ ورکړ چې هيڅ صورت به د انګرېزانو د چترال د مهتر کسان دلته ناوړه فعاليت نه شي ترسره کولی، د جرګې مشري ملک محمد يوسف، سيد جلال او ملک رحمت الله او احمدشاه په غاړه وه کله چې د برګمټال د جرګې کسان منده ګل ته ورسېدل د کامدېش د جرګې غړي او مشران ورمور ته ښکته شوي وو، د جرګې دواړه ډلې يوځای شوې ډېر خوشاله د کامدېش او د برګمټال د مشرانو په ګډون چې شمېر يې له (۲۰) تنو زيات وو، د بريکوټ په لور روان شو. په بريکوټ کې غازي ميرزمان خان د جرګې له غړو سره روغبړ او ستړي مشي وکړل او د هر تن سره يې غېږ ونيوه ډېر خوښ شو، د کامدېش او د برګمټال مشران درې ورځې په بريکوټ او ناړی کې تېرې کړې او په څلورمه ورځ بېرته نورستان ته روان شو، د نورستانو ټولو مشرانو په يوه ژبه غازي ميرزمان خان ته ډاډ ورکړ چې موږ د انګرېزانو او د چترال مهتر سره هيڅ رابطه نه لرو، ټول په اتفاق او يو وحدت ستاسو سره ملګري يو.

په پای کې د غازي ميرزمان خان له خوا د نورستان راغلو مشرانو او سپين ږيرو ته يو يو لاټين ډالۍ ورکړ شو چې په ډېر

ویاړ سره دغه ډالۍ مشرانو قبوله کړه او دغازي میرزمان خان د مهربانۍ او ښه سلوک څخه مننه وکړه او د نورستان د مشرانو له خوا غازي میرزمان خان ته د غوزانو د لرګو څخه ډېره ښکلې چې په مهارت دغه چوکۍ د یو ډېر ماهر (باري) له خوا جوړه شوې وه او د زمرو تصویر په کې په خاص مهارت جوړ شوی و او د غرڅه پوټکی په څوکۍ باندې په مخصوص ډول اوبدل شوی و چې د غازي میرزمان خان دغه ډالۍ ډېره خوښه شوه او په کور ودانۍ سره یې قبول کړه.

# د غازي میرزمان خان له خوا میرزا حیاوالدین ته د خپل اس بخشش کول

میرزا حیاوالدین با اراده، لایق، چالاک او هوښیار شخصیت و، په پښتو، فارسي، عربي ژبو پوهېده او لیکل لوستل یې کولی شو، د استقلال د څلورمې جبهې په قرارګاه کې د مشرانو په کتار کې یو ایماندار مجاهد ګڼل کېده او ټولو مجاهدینو به د نوموړي سره ډېر ښه سلوک کاوه په هر چا ګران و او په ده باندې غازي میرزمان خان ډېر زیات باور او اعتماد کاوه او زیات وختونه دواړه په بریدونو، مورچلونو او یرغلونو کې د انګرېزانو په ضد یوځای و.

کله چې غازي میرزمان خان د استقلال د څلورمې جبهې د قرارګاه څخه د کونړ چغسرای په لور حرکت کاوه ډېر مشران او مجاهد ولسونه راټول شوي و چې خان صاحب د میرزا حیاوالدین په باره کې ډېرې خبرې وکړې او ده د اخلاص او پاکۍ او ایمانداری او جرئت له امله یادونه وکړه او خپل یو سپین آس یې میرزا حیاوالدین ته بخشش په توګه ورکړ او

ویې ویل: میرزا حیاوالدین او نور ډېر مشران مجاهدین زما سره شته چې د ډېرو سوغاتونو حق لري، خو زه د لوی پروردګار د درګاه څخه ټولو مجاهدینو ته په اخرت کې د دې هلو ځلو او سربښندنو په بدل کې ورته جنتونه غواړم.

# د غازي امان الله خان فرمان

ملک محمد یوسف او ملک رحمن الدین د کونړونو ولایت د ناړۍ د سرحدي ولسوالۍ زړور او په وطن مین شخصیتونه وو چې د استقلال په څلورمه جبهه کې د خان میرزمان خان سره څنګ په څنګ د جهاد په مورچلونو کې او ددې منطقې په غزاګانو کې د خپلو وسله والو کسانو سره د یو غښتلي او مټور قوماندانانو او قومي مشرانو په توګه ستر کارونه د وطن په سرحداتو کې سرته رسولي وو.

د بریکوټ ځنې د اسمار پورې ددې کلیو او بانډو د مشرانو په توګه ډېر ستر کارونه او د وطن د سرحدونو په ساتنه کې یې ډېرې هلې ځلې ترسره کړي دي.

کله چې خان میرزمان خان ناړۍ ته د څلورمې جبهې د غزاګانو لپاره د زرګونو کسانو سره د ناړۍ ساحې ته راورسېد ملک محمد یوسف او ملک رحمن الدین د خپلو کسانو او ملګرو سره د نوموړي مخې ته ورغلي وو او د خان میرزمان خان د راتګ هر کلی یې وکړو او خان ته یې د هر ډول مرستو او همکاریو ډاډ ورکړ او ورته یې وویل: دا چې په مېړانه د خپلو ملګرو او لښکرو سره روان شوي یئ او دلته راغلئ انشاالله برې ستاسو په برخه دی ددې منطقې ټول ولسونه او قومونه ستاسې سره په جهاد او غزاګانو کې مل دي.

د ملک محمد یوسف خان او ملک رحمن الدین ځنې خان میرزمان خان ډیر خوښ شو د ناړې په لر کلي کې ددوی په درناوي ډیره لویه مېلمستیا برابره شوې وه او د کېناستو لپاره شین باغ چې د ناړې په لر کلي کې موقعیت لري او درې غټې ویالې اوبه په کې روانې وې د قرارګاه یا د قوماندې محل شو.

کله چې خان میرزمان خان په انګرېزانو باندې د غزاګانو او دجهاد خپل پلان ددې سیمې ولسونو ته وړاندې کړ ټولو ولسونو او قومونو تائید او خپل ملاتړ یې اعلان کړ او په ارنوي، لام، بریټ، کواتي، کوري، ایون، میرکنډي، سواردم، ممریت باندې د حملو او غزاکولو پروګرامونه اغاز شول د چترال پاچا د انګرېزانو په قومانده او ګډون غوښتل چې د بریکوټ ځنې د اسمار پورې حملې او بریدونه وکړي د انګرېزانو او د چترال د پاچا پروګرام خان میرزمان خان ته رسوا او افشا شوی و د دوکلام او د بریکوټ مورچلونه یې مظبوط کړل د افرادو او مجاهدینو ګروپونه یې نورو ته ولېږل او د ارنوي، لابریټ او کواتي انګرېزانو او د چترال پاچا په پوستو او عسکرو باندې یې حملې پیل کړې چې په انګرېزانو او د چترال په عسکرو ورځ په توره شپه بدله کړه او په ارنوي کې د انګرېزانو حالات دومره خراب شول چې سر یې نه شو پورته کولی د شپې کواتي او میرکنډي ته وتښتېدل د خان میرزمان خان سره دواړه مشران ملک محمد یوسف او ملک رحمن الدین د چترال په جګړو کې ګډون درلود چې په بري سره چترال، ایون او ممریت

پورې د مجاهدینو سره تللي و او سرلوړي بېرته بریکوټ او ناړۍ ته راستانه شول چې د خان میرزمان خان غازي په وړاندیز غازي امان الله خان په خپلو لاسونو سره دواړه ګوار مشرانو ته د مېړانې او د مالیاتو د بخښنې فرمان او نور سوغاتونه او نقدې روپۍ ورکړې وې.

څو شپې او ورځې په کابل کې د غازي امان الله خان سره یوځای پاتې شوي وو چې د راتګ په وخت کې په لویه غونډه کې خان غازي میرزمان خان او ذکر شویو دواړو ګوارو مشرانو ته د (بهادرۍ) د سپینو زرو مډالونه په تټر ورته ټومبل شوي وو.

# په کوهستاني ژبه د ځینو زراعتي ونو او بوټو نومونه

| پښتو | اواز | کوهستاني | ګڼه |
|---|---|---|---|
| چینار | Chenar | چینار | ۱ |
| نښتر | Law | لو | ۲ |
| غوړاخکی | Palata | پلمته | ۳ |
| څېړی | Anzi | اینزي | ۴ |
| خونه، خون | Kaw | کو | ۵ |
| مومانړې | Kansur | کانسور | ۶ |
| بېره ړه | Shongonok | شونګونوک | ۷ |
| ټیټاقه | torok | تروک | ۸ |
| توت | hangalik | لهنګالیک | ۹ |
| بادام | Badam | بادام | ۱۰ |
| نانګان | Bekin | بیکین | ۱۱ |
| املوکاڼ | Keki mandawal | کیکي مندول | ۱۲ |
| شفتالو | Harw | هارو | ۱۳ |
| الوچه | alocha | الوچه | ۱۴ |
| خوبانی | khobani | خوبانۍ | ۱۵ |
| خوبانۍ | ashani | اشاني | ۱۶ |
| نارنج | Narang | نارنج | ۱۷ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۸ | مالته | Malta | مالته |
| ۱۹ | ګورو | Gorw | ګورګوري |
| ۲۰ | کیین | Kein | انځر |
| ۲۱ | انبور | Anbur | مانوګان |
| ۲۲ | بیو | Bio | وله |
| ۲۳ | مینګیي | Mingei | مۍ |
| ۲۴ | خرما | Khurma | خرما |
| ۲۵ | انژه | Anca | بګنه |
| ۲۶ | انبور | Anbur | مانوګان |
| ۲۷ | بوبای | Bubay | منه |
| ۲۸ | تانګوړه | Tangura | ناک |
| ۲۹ | کېله | Kila | کیله |
| ۳۰ | دایم | Daim | انار |
| ۳۱ | لیموړی | Lemori | چارمغز |
| ۳۲ | نارنج | Narange | نارنج |
| ۳۳ | لوکاټ | Lokat | لوکاټ |
| ۳۴ | مالته | Malta | مالته |
| ۳۵ | بویی | bui | بویي |
| ۳۶ | ګورو | Gurw | ګورګوري |
| ۳۷ | ګوم | Gum | غنم |
| ۳۸ | جوار | Jawar | جوار |
| ۳۹ | شالی | Shali | شولې |
| ۴۰ | بیکین | Bekin | ګیلاس، الوبالو |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۴۱ | بادرنگ | Badrang | بادرنگ |
| ۴۲ | خربوزه | Kharboza | خربوزه |
| ۴۳ | کنکار | Kankar | هندوانه |
| ۴۴ | کچالو | Kachalo | کچالو، الو |
| ۴۵ | ماش | mash | ماهي |
| ۴۶ | میلتي | Militi | مولی |
| ۴۷ | ټیپر | tiper | ټیپر |
| ۴۸ | ګلپي | gulpi | ګلپي |
| ۴۹ | پالک | palak | پالک |
| ۵۰ | ولوته | Walota | داوبو کدو |
| ۵۱ | لاړو | Larw | کدو |
| ۵۲ | توری | Tori | توری |
| ۵۳ | ژو | jw | وربشي |

# په کوهستاني ژبه کې د ځینو طبیعي شیانو نومونه

| ګڼه | کوهستاني | اواز | پښتو |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱ | بوم | Bom | ځمکه |
| ۲ | لیري | Leri | اسمان، فضا |
| ۳ | دنیا | Dunya | نړۍ |
| ۴ | اګانس | Agans | اسمان |
| ۵ | تاره | Tara | ستوري |
| ۶ | سوري | Suri | لمر |
| ۷ | ماسوی | Maswi | سپوږمۍ |
| ۸ | کنډه | Kanda | غر |
| ۹ | سوم | Sum | خاوره |
| ۱۰ | واټ | Wat | |
| ۱۱ | واټوکی | Watoki | کاڼی |
| ۱۲ | دینکی | Denki | لویه ډبره |
| ۱۳ | انګار | Angar | اور |
| ۱۴ | ځیل | Zil | لمبه |
| ۱۵ | البینه | Albina | وریځ |
| ۱۶ | هړ | Har | سیلاب |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۷ | هیم | Hem | واوره |
| ۱۸ | واش | Wash | باران |
| ۱۹ | بیزوتی | Bezuti | تندر |
| ۲۰ | آو | Aw | اوبه |
| ۲۱ | هوا | Hawa | هوا |
| ۲۲ | تندر | Tandar | تندر |
| ۲۳ | اونخ | Awnch | چینه |
| ۲۴ | لیندی | Lendi | دریاب، سین |
| ۲۵ | کنته | Kanta | ویاله |
| ۲۶ | گل، ړل | Gal | خوړ |
| ۲۷ | کنتولی | Kantoli | لښتی |
| ۲۸ | رام ثولهیک | rmsolik | برېښنا |
| ۲۹ | پلل | Palal | رڼا |
| ۳۰ | توپه | Topa | تیاره |
| ۳۱ | دیس | Dis | ورځ |
| ۳۲ | هیل | Hil | شپه |
| ۳۳ | پیلي | Pili | کال |
| ۳۴ | ماسوی | Maswi | ماست |
| ۳۵ | پلپل | Palpal | پېړی |
| ۳۶ | آمو | Amw | کور |
| ۳۷ | آمو | Amw | کوټه، اطاق |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۸ | پنت | Pant | لار |
| ۳۹ | هین | Hin | بام، بلیـ |
| ۴۰ | دره | Dara | اوچت، پورته |
| ۴۱ | ماله | Mala | ښکته |
| ۴۲ | ایمبک | Ambak | دیخوا |
| ۴۳ | تیمبک | Tembak | اخوا |
| ۴۴ | جرگه | Jarga | جرگه |
| ۴۵ | ژوت | Jot | جنګ، جګړه |
| | | | |

# په کوهستاني ژبه د حیواناتو نومونه

| ګڼه | کوهستاني | اواز | پښتو |
|---|---|---|---|
| ۱ | زانګل | Zangal | زمری |
| ۲ | شونا | Shone | سپی |
| ۳ | کوړاکه | Koraka | کوچنی سپی |
| ۴ | کوړاکی | Koraki | سپۍ |
| ۵ | ایڅی | Achi | |
| ۶ | باکینډی | bakindi | سوخندر |
| ۷ | ګا | Ga | غوایي |
| ۸ | هوروړ | Horor | خوسۍ |
| ۹ | باکینډه | Bakinda | سوخندر |
| ۱۰ | هینی | Heni | اوزه |
| ۱۱ | شاړ | Shar | سېرلی |
| ۱۲ | څاله | Chala | ورغومی |
| ۱۳ | څالوکۍ | Chloki | ورغومی |
| ۱۴ | زمنیا | Zamnia | پړامه |
| ۱۵ | ایخونډه | asonda | خوسکۍ |
| ۱۶ | مکړ | Makar | شادو |
| ۱۷ | مکړی | makari | شادوګی |
| ۱۸ | هیړه | Hera | ګډ |
| ۱۹ | هیړی | Heri | ګډه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٢٠ | لوشه | Lawsha | څاروی |
| ٢١ | اوبښ | Awkh | اوبښ |
| ٢٢ | میش | Mish | میښه |
| ٢٣ | ګوړه | Gora | اس |
| ٢٤ | کوړاکه | Koraka | لوکری |
| ٢٥ | کوکوړ | Kokor | چرګ |
| ٢٦ | کوکوړی | Kokori | چرګه |
| ٢٧ | پیچین | Pechin | مرغۍ |
| ٢٨ | مخوټه | Machota | ماهي،کب |
| ٢٩ | زین | Zin | مار |
| ٣٠ | اوپه | Awpa | لړم |
| ٣١ | شال | Shal | ګیدړ |
| ٣٢ | اینچ | Anch | یږه |
| ٣٣ | هرمه | Harama | مچۍ |
| ٣٤ | پیسانسي | Pesansi | پیشو |
| ٣٥ | پیسانسه | Pesansa | نر پیشو |
| ٣٦ | ګولهی کیله | gulikila | کربوړی |
| ٣٧ | مه ځوټه | Machota | کب، ماهي |

# په کوهستاني ژبه کې د انسان د بدن د غړو نومونه

| گڼه | کوهستاني | اواز | پښتو |
|---|---|---|---|
| ۱ | انسان | Ansan | انسان |
| ۲ | مانوش | manosh | سړی |
| ۳ | ایڅین | Achin | سترگه |
| ۴ | اس | As | لاس |
| ۵ | کور | Kor | پښې |
| ۶ | منده | Manda | څټ |
| ۷ | کندیک | Kndik | اوږه |
| ۸ | کینس | Kins | ویښتان |
| ۹ | موخ | Much | مخ |
| ۱۰ | ناسي | Nasi | پوزه |
| ۱۱ | نوکه | Noka | شونډې |
| ۱۲ | تارین | Tarin | تندی |
| ۱۳ | کلین ټه | Kilanta | رخسار |
| ۱۴ | داموټوک | damotok | زنه |
| ۱۵ | شیگالی | shigali | ښځه |
| ۱۶ | ټیکوری | Tekora | پېغله |
| ۱۷ | لوړی | Lori | نارینه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۸ | ډګی | Dagi | زړه ښځه |
| ۱۹ | ډګه | Daga | زوړ سړی |
| ۲۰ | ادانګ | Adang | مټ |
| ۲۱ | انګوړیک | Angurik | ګوتې |
| ۲۲ | نوک | Nok | نوک |
| ۲۳ | هرګل | hargal | جامه |
| ۲۴ | زیب | Zib | ژبه |
| ۲۵ | انسی | Ansi | خوله |
| ۲۶ | دوم | Dom | ورون |
| ۲۷ | ډاکه | Daka | ملا |
| ۲۸ | آنده | Anda | غوښه |
| ۲۹ | هډوکی | Hadoki | هډوکی |
| ۳۰ | توره | Tora | ورغوی |
| ۳۱ | پینګه | Penga | د پوزې سوري |
| ۳۲ | کمټه | kamta | غوږ |
| ۳۳ | سور مرین | Surmarin | وریځې |
| ۳۴ | هړه | Hera | زړه |
| ۳۵ | پیټه | Peta | تریخی |
| ۳۶ | لو | Low | وینه |
| ۳۷ | اندایخ | Andich | ینه |
| ۳۸ | ادالونګه | Adalonga | پختورګي |
| ۳۹ | اترانګین | Atrangin | کولمې |
| ۴۰ | کنتې | Kanti | مړی |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۴۱ | پتهول | Patol | بانه |
| ۴۲ | ور | War | خپته |
| ۴۳ | شونډ | Shond | نوم |
| ۴۴ | شاڼ | Shan | لرى |
| ۴۵ | ګهـ | Gah | خرمن، پوستکى |
| ۴۶ | تل | Tal | د پښو تلى |
| ۴۷ | کونیک | Konik | پونده |
| ۴۸ | څوڅو | Cho-cho | سینه |
| ۴۹ | موشتهاک | Mushtak | د لاس موټى |

# د ولسونو دندې، مسوولیتونه او د ټولنیزو کارونو څارنه

هر قام او هر نژاد هره ټولنه ځانته ټولنیزې دندې او مسوولیتونه لري، ویښ قام او ویښ ولسونه د ولسونو د ټولنیزو ستونزو له منځه وړلو لپاره ګڼ دریځ غوره کوي. قام او د ټولنې غړي په هوښیارۍ، زیرکتیا او یو اواز چاته اجازه ور نه کړي چې د ولسونو د خیر او ښېګڼو په کارونو کې شخصي ګټې لاسته راوړي. ولسونه حق او د لوی خدای(ج) په درګاه اسلامي او افغاني دنده لري چې د ولسي او قومي خدمتونو په برخه کې د کامیابو کارونو لپاره څارنه وکړي او د خام او نیمګړي کارونو په وخت او زمان ممانعت ترسره شي. کوم ولسونه چې په ټولنیزو کارونو د ښه او منظم پروګرام لپاره تدابیر نه لري هغه ویده قام ګڼلی شو او هغه قام یا د ټولنې ولسونه چې د ټولنیزو ګټورو کارونو د ترسره کولو لپاره یو قدم وړاندې نه شي تللی ځکه د ټولنې او ټولنیزو کارونو چې چېرته څارنه نه کېږي ښکاره خبره ده چې فساد لپاره وخت او موقع برابرولو پرته بله مانا نه ورکوي، دلته څو مثالونه راوړو:

د ناړې مرکز د دړو ویالو ډېرې پیسې ایستل شوې وې، خو خپله
کلیوال د پروګرام څخه ناخبره پاتې و د ویالو کار لکه څنګه چې لازم
و سرته ونه رسېده.
د کلیوالو د اوبو د ستونزې د حل لپاره د اوبو پروژه یا پایپ لاین
تراوسه پورې ناکام دی چې ځینې خلک وربانديې باغونه ډکوي ختې
کوي او ځینې کورونه تراوسه اوبه نه لري او له ستونزو سره مخامخ
دي؟
کلیوالي سړک د ناړې له پله څخه تر خیات اباد یا برکلي پورې څو
څو ځل د اساسي جوړولو لپاره په ټیکه ورکړ شوی خو د افسوس
خبره داده چې دا د ټولو قومونو ولسونو سړک دی مشرانو د سړک د
کار څارنه ونه کړه او ټیکه دارانو د ځینو چارواکو په مصلحت او
ګډون پیسې خپلو جیبونو ته واچولې او په سړک یې ایرې
وشیندلې؟
همدا راز کوم سړک چې د ناړې څخه چهریګل او شنګر پورې
رسېدلی دی څو ځل د اساسي کار لپاره په ټیکه ورکړ شو خو په کار
یې چا څارنه او کنټرول ونه کړ او په خپل حال پاتې دی دا یو څو
مثالونه وو دا راز ډېر کارونه په مختلفو کلیو او ولسونو کې تر سره
کېږي. لازمه ده چې ویښ ولسونه دولتي کارونو د ښه ترسره کېدو
لپاره د لوی خدای(ج) د رضا لپاره د مسوولیت احساس وکړي؟
د ولسیي او ټولنیزو کارونو کې ځان ناخبره او بې تفاوته پاتې کېدل
افغاني او اسلامي روحیه نه ده، زموږ ولسونه چې ډېری ټولنیزې

ستونزې لري دا ډول کارونو ته په مينه پاملرنه وکړي، لازمه ده چې يادونه وکړم، ولسونه په اسلامي او افغاني روحيه مسووليت لري او حق لري چې د ټولنيزو چارو لپاره د ولسونو د مشرتوب لپاره هغه کسان راوړاندې کړي چې هغه ولسي ارمانونه ولري او په نفس پاک وي متقي او پرهېزګاران وي.

څوک چې ځان په خپله مسوول او مشر معرفي کوي ښکاره ده چې هغه د مشرتوب وړ نه وي او شخصي تور هدفونه لري، رحمن بابا وايي:

يو ځلې مې وتله چې من شمه
هر ځلې مې مه تله چې کم شمه

هغه کسانو چې ولسونو ته يې ښه امتحان نه وي ورکړی دويم ځل د هغه څخه امتحان اخيستل لازم کار نه دی، د ټولو ګواريانو لپاره په کار ده چې په کليوالي مسايلو کې په ورين تندي په زړورتوب ټولنيز کارونه ترسره کړي تور ته تور ووايي او سپين ته سپين نو زموږ ټول د ژوند ټولنيز کارونه به په ښه توګه ترسره شي او ستونزې به د لوی خدای(ج) په مرسته حل شي. د ولسونو مشران حق لري چې په ازادانه توګه په کليوالي، قومي مسايلو کې د حق خبره وکړي او ملامت ته ملامت او سلامت ته سلامت ووايي د هغه ولس ټول کارونه په کاميابۍ سره پای ته رسېږي.

## د قام دنده له نورو قومونو سره:

زه د ټولو قدرمنو ګواریانو (کوهستاني) مشرانو ځوانانو څخه په ډېره مینه هیله لرم چې د خپل قام او ژبې د خپل تاریخي رسالت، اعتماد، اعتبار او نېک نوم د ساتلو لپاره تل پاملرنه وکړي. ځوک چې ددې هېواد په غېږه کې ژوند کوي ټول سره ورونه دي ګډ تاریخ او ګډ ویاړونه لري هېڅ کوم قام په بل قام باندې برتري او بهتري نه لري ټول د یو الله(ج) بندګان یو، د ویاړ خبره ده چې شکر ټول مسلمانان یو د ویاړ خبره ده چې ټول افغانان یو هر قام ولسونه ددې تاریخي ټاټوبي د چمن ګلونه دي او د هر رنګ ګلونو غونچه ښه ښکارېږي. یو بل ته په ښه افغاني روحیه احترام درناوی اعتماد او باور کول اسلامي کار دی.

د خپلو خلکو د خپلې ژبې لپاره کار کول زیار ایستل ناروا عمل نه دی په ډېره هوښیارۍ سره باید ځانونه سمبال کړو. د سیالانو سره سیالي کول د سیالانو کار دی، موږ باید په اسلامي روحیه د ټولو قومونو او ولسونو سره خصوصاً د ګاونډي قومونو او ولسونو سره په ډېره ښه فضا کې د ورورۍ نېکې او نه شلېدونکې اړیکې ټینګ کړو یو د بل په غمونو او ښادیو کې په ورین تندي د لوی خدای(ج) د رضا لپاره ګډون او برخه واخلو د ټولو ګوارو مشرانو او ځوانانو افغاني او ملي دنده ده چې داسې عملونه عملي ترسره کړي. د اسلامي احکاماتو په رڼا کې د خپل ژوند یون برابر کړي په ځانځانۍ او خودخواهۍ کې نه په دنیا کې ګټه شته نه هم په اخرت کې، دا نړۍ فاني ده د قیامت د کامیابۍ لپاره ډېرې هلې ځلې په

کار دي دا څو لنډې لیکل شوې جملې عمل غواړي. اوس چې د ملي پیوستون شوراګانې جوړې شوي باید د مسوولیتونو له خوا په ډېره مهربانۍ او زړه سوی سره ولسونو ته خدمتونه وشي او د ولسونو په مشوره او ملاتړ کارونه ترسره شي او خپله ایماني او افغاني دنده په ښه توګه سرته ورسوي.

# د پیوستون چغه

زه حیـــران یــم حیـــران شــوی یــم دنیـــا تـــه
تـــورې وریځـــې پورتـــه شـــوي دي فـــضا تـــه
د هېـواد غیـرت سـوزېږي ځانځانی بلـو لمبو کې
تـــور دودونـــه پورتـــه شـــوي دي هـــوا تـــه

رحمـــن الـــدین[1] هډونـــه خـــاورې ایـــرې شـــوي
هـــر ســـړی وایـــي چـــې زه یـــم هـــرې خواتـــه
پـــه رنګینـــه ســـردرو کـــې لمبـــې ښـــکاري
ځانځـــاني جنګونـــه ګـــرم دي هـــر خواتـــه
یوســـف[2] پـــروت دی هـــدیره کـــې پرېـــشانه
لمبـــې بلـــې د جنګونـــو دي هـــر خواتـــه
ماشـــیندارو ســـره ګرځـــي د پـــردو مـــزدوران دلتـــه
اچـــوي اور زمـــوږ چـــم زمـــوږ صـــحرا تـــه
ســـره ګلونـــه ســـردرو کـــې مـــړاوي ښـــکاري
د بـــاروتو لـــوګي پورتـــه دي هواتـــه
چـــې پـــرون یـــې خـــرول رمـــې زمـــوږه
نـــن د حـــق خاونـــدان نـــه پرېـــږدي بېـــدیا تـــه
چمنونـــو او بـــاغونو کـــې خـــزان دی

ګلان نه پرېږدي باغونو کې موسکا ته
تورې شپې دي او ترخه ترخه وختونه
رسولي يې دردونه دي هر چاته
هر ظالم په ژبه وايي مسلمان يم مسلمان يم
ملامت ويلی نه شو کوم يو چاته
زوروا کي ده او وحشت دی چې راروان دي
زمانې په زړه پرهر جوړ کړ هر چاته
څومره ګرانه ده ياراتو ښه خبر شئ
چې مجنون ظالمان نه پرېږدي ليلا ته؟
جنجالونه دي مرګونه دي فتنې دي
هېڅوک نه ګوري د چا ابرو حيا ته؟
تالان ګډ دی فسادونو زمانه ده
هوښيارې کې يون پکار دی کله مخکې کله شاته
احمدشاه[3] نه شته چې بريد درته ښکاره کړي
نه نواب[4] شته چې اعلان وکړي هر چاته
نه ظفر[5] شته نه مياخان[6] نه همايون[7] شته
چې له وېرې چا کتلی نه شو شاته
هر سړی په خپله لاره به سيده تلو
اخوا دېخوا چا کتلی نه شو شاته
عبدالله پهلوان[8] نه شته خاورې شوی
چې زورګير ته په لاسو کوپړه کې ماته

غلام سید[۹] او سید علي[۱۰] ارمان پکار دی
اوس به څوک مخکې کړو موږ تاسو قضا ته
سلاخان[۱۱]، رحمت الله[۱۲] لوړ مشران وو
چې جرګو ته به روان وو هرې خواته
د میرزا[۱۳] شاګردان شته دی لاتراوسه
رسېدلی له دې ځایه اروپا ته
عرب الدین[۱۴] شهاب الدین[۱۵] وو د ستاینې
چې قلنګ یې نه و پاتې کله چاته
د اتک[۱۶] او سلطان جان[۱۷] او د ګل سید[۱۸] نوم
اورېدلی ولسونو هرې خواته
چې یې پزه غوڅوله هر ظالم ته
هغه شمس[۱۹] ډېر مشهور و هر یو چاته
چې ملک محی الدین[۲۰] درنه هېر نه شي
امتحان کې کامیاب شوی و دنیا ته
شاطماس[۲۱] او عبدالحق[۲۲] او محمد سید[۲۳] هم
د هجرت کلونو پرې نه ښودل خواته
صمدخان[۲۴] نورمحمد خان[۲۵] تاسو لېږلي
چېرته لاړل چېرته تللي کومې خواته
څه وختونه وو څه راغلل څه به راشي
څوک قایل نه دي د چا ابرو حیا ته
د شهید رحمت الله[۲۶] قبر معلوم نه دی تراوسه

جنازه یې چا کړه پورته کومې خواته؟
په شهید اعطامحمد[۲۷] درودونه وایو
چې د قام په نوم لمبه شولو دنیا ته؟
رحمن الدین[۲۸] څنګه سپرغۍ شو په ازمون کې
هېڅوک نه و دې صحنه کې دده خواته
خپله خاوره کربلا راته ښکارېږي
جنجالونه دي جوړ شوي هرې خواته
دوکلام کې جمروزخان[۲۹] و چې ګلی به یادېدلو
ارنوي کې محمدخان[۳۰] و چې ښکاره و هر یو چاته
خوږ بلبل د کوهستان نه و نو څه و
د رحمن[۳۱] په نوم لاس پورته کړئ دعا ته
جمعه دین[۳۲] هم بس لایق دی د ستایلو
رقابت کې پاتې نه و له چا شاته
محمد نور[۳۳] د دوکلام څه عجب ځوان و
حیران پاتې و د خپل علاج شفا ته
ساوکې هم حیات الله[۳۴] و ښه نامداره
د سیالانو سره سیال و هرې خواته
نشه ګام کې د ملک محمد نواب[۳۵] نوم و ځلانده
چې غیرت یې و ښکاره واړه دنیا ته
شېرولي[۳۶] او ګل ولي[۳۷] د وخت باتور وو
چې پردي به ګرځېدلی نه شو خواته
د وکیل عبدالمتین[۳۸] یادښت په کار دی

چې تقوا یې وه ښکاره دلته هر چاته
اتلانو چې نومونه درته اخلم
په تاریخ لرېي ثابته ده دا ماته
که ویده یې وروره پاڅه پاڅه
د زړه وینې څڅوم په افسوس تاته
د زمرو ځنې دا څه یو پیدا شوي
چې حیرانه ګورو نن بل چاته
نه لښکر شته نه یووالی شته په موږ کې
ځانځانی باندې اخته یو هرې خواته
پیوستون او یووالی چې غوره نه کړو
د تیارو نه به ونه وځو رڼا ته
هوښیاري او په همت چې پورته نه شو
بېسواد پردي به واک لري هر خواته
لوی واره سره راټول شي فکر وکړئ
غرولي به بیا ستړګې نه شو چاته
زمانه امتحان اخلي لوی ازمون دی

د سانین زړه پرهرونو باندې ډک شو
په ورغوي کې ښودلی نه شم چاته
تپل شوي جګړې ګورم په وطن کې
نه جوړېږي ځکه شونډې مې خندا ته

نېکمرغــــي غــــوارم د خپلــــو ولــــسونو
دغــــه ســــوال کــــوم هــــر کلــــه لــــوی الله تــــه

ناړې- ۱۳۷۲-۱۰-۱۵

۱- ملک رحمن دين د کوهستان يو زړور مشر تېر شوی، چې په منطقه کې ډېره واکمني کړې ده.

۲- ملک محمد يوسف يو مشهور مشر تېر شوی.

۳- احمدشاه يو مشهور مشر تېر شوی او په منطقه کې د ځمکو تقسيمات يې کړي دي.

۴- نواب، ملک محمد نواب د نشه ګام د کلي دی چې د دوکلام نه تر چلاله پورې د ځمکو د وېش او د بريدونو تقسميات يې کړي دي.

۵- ظفرخان د ناړې يو مشهور مشر تېر شوی.

۶- مياخان، د ناړې يو مشهور مشر تېر شوی.

۷- همايون هم د ناړې يو مشهور مشر تېر شوی.

۸- عبدالله پهلوان پلار يې سلطان جان نومېده د منطقې يو مشهور پهلوان تېر شوی.

۹- غلام سيد، د ناړې يو ډېر مشهور ديني عالم و چې د ناړې ملا په نوم يې په منطقه کې ډېر شهرت درلود.

۱۰- سيد علي ميرزا، د ناړې د حضرت علي ورور او د بي بي ګلزار ابې زوی و، چې ډېر لوړ ديني عالم تېر شوی.

۱۱- صلاخان د صلاحي صاحب پلار و.

۱۲- رحمت الله ملک د ډاکتر سانین د مور له طرفه نیکه و چې زامن یې نه درلودل.
۱۳- میرزا عبدالواحید د غلام حیدر زوی و په ختمه پښتون او مشوانی و خو د کوهستانو سره یې ژوند و، د ده مېرمن هم کوهستانۍ وه، نوموړی په څو ژبو پوهېده د وخت نامتو عالم تېر شوی.
۱۴-عرب الدین، یو مشهور مشر و چې د محمد جان، عبدالمتین، میرزمان پلار و.
۱۵- شهاب الدین د افضل دین پلار او د حاجي سلطان محمد او فاروق حاجي صاحب نیکه و، یو مشهور مشر و.
۱۶- اټک یو مشهور مشر تېر شوی.
۱۷- سلطان جان د عبدالله او محمد حسین پلار او د عبدالقاهر فولاد او محمد طاهر اخطار نیکه و.
۱۸- ګل سید د ګل خندان زوی یو مشهور مشر تېر شوی چې د حاجي صاحب مرحوم شاطماس خان، عصمت الله خان، غلام خان، مدیر صاحب شېرمحمد خان نیکه و.
۱۹- شمس الرحمن د عبدالعزیزخان او د ازادخان پلار و چې د ملک رحمن الدین انتقام یې اخیستی و.
۲۰- ملک محی الدین د ملک رحمن الدین مشر زوی و.
۲۱- حاجي شاطماس خان د حاجي میرزمان ناړیوال او غلام نبي ناړیوال پلار و، یو لایق ولسي مشر و.

۲۲- میرزا عبدالحق د عبدالمنان زوی او د ګل رندان لمسی و، لایق مشر و.
۲۳- محمد سید د غلام اکبر زوی او د اکبرسید او غریب سید پلار و.
۲۴- صمدخان د عبدالحنان زوی د مدیر عبدالغفار پلار و.
۲۵- میرزا نورمحمدخان د سراج الدین زوی او د حیاوالدین ښوونکي پلار و.
۲۲- شهید اعطامحمد د حاجي شاطماس خان زوی چې د قام او وطن لپاره قربان شو.
۲۷- رحمن الدین د حاجي برهان الدین زوی.
۲۸- ملک جمروز خان د دوکلام مشهور مشر تېر شوی د ملک جمعه الدین پلار و.
۲۹- ملک محمدخان د ارنوي یو مشهور مشر تېر شوی.
۳۰- رحمن ممبر، د ارنوي یو اتل ځوان و د میرزا مسلی زوی و.
۳۱- جمعه الدین د دوکلام د ګل رحمن پلار و.
۳۲- محمد نور د دوکلام یو مشهور ځوان تېر شوی چې ډېر چالاک او حاضر ځواب مشر و.
۳۳- ملک حیات الله د ساو یو نامدار مشر تېر شوی.
۳۴- ملک محمدنواب د نشه ګام یو مشهور قومي مشر تېر شوی.
۳۵- ملک شېرولي، د نشه ګام یو مشهور قومي مشر و.

۳۶- ملک ګل ولي، دا هم د نشه ګام یو مشهور قومي مشر تېر شوی.

۳۷- وکیل عبدالمتین خان، دا هم د نشه ګام یو مشهور قومي مشر و.


قلم الدين
ملک رحمن الدين
ملک محمد حضرت
ملک محی الدين
حاجي برهان الدين
سيد حضرت
گل حضرت
نورحضرت
پاچاحضرت
داود
نعيم
رحمن الدين
خياالدين
رحمت الدين
اظهارالدين
احسان الدين
برهان الله
شمس الدين
حسام الدين
سفرجان
شیرین جان
نظام الدين
الهام
کیهان
ادریس
ماهر
اسلام
گلبدين
نجم الدين
امام الدين
فريد
وحيد

دا هم په ناړۍ کې یوه درنه کورنۍ وه چې د دې کورنۍ مشرانو د ولسونو مشري کړې ده او تراوسه ټول مشران په ښه نوم یادېږي، چې د ملک رحمن الدین په هکله په دې کتاب کې معلومات شته.

ملا بوستان

غلام سید مشهور په ناړی ملا

حضرت سید

گلاب سید خاموش

حیات الله

اسدالله

فریدالله

احسان الله

محب الله

همت الله

مرید

عبدالباقي فضلي

عبدالرحیم
عبدالروف
قیام
شفیق
اکرام
اسدالله

حبیب الرحیم فضلي

غلام الرحیم فضلي

جمعه الرحیم فضلي

قیوم
کریم
سهیم

فضل

همایون

فضل الله

رفیق
شعیب

عاشق الله
الف خان
بابر

یادونه:

ملابوستان او د هغه زوی غلام سید چې د ناړې په ملا ډېر زیات مشهور دیني عالم تېر شوی او په خپله زمانه کې د قومونو ولسونو منل شوی شخصیت و ، دا یوه درنه کورنۍ وه.



محمد بیگ
حضرت بیگ
حضرت شاه
سيد رسول
سيد حسن
عبدالحسن
حضرت الله
عبدالقيوم
عبدالباقي
اظهار الله
اظهارالدين
ادریس
مقدس
نصير
ناصر
فهيم
فتيح
عاطف
حنيف
كفايت
فضل حسن
رفيق
نورالله
رحمت الله
سميع الله
اعطاالله
حاجي زمين
صبغت الله
حبيب الله
عبدالقادر
عبدالقاهر
عبدالروف
عبدالودود

بشير

شمس الرحمن

سيف الله

ازاد خان

عبدالعزيز

داودشاه

محمدعالم

محمد نواز

محمد نعيم

محمد نبي

رفيع الله

سيف الله

مصطفى

فريد
لايق
احمدشاه

سباوون
سايل
رشاد
ساحل

باچا

محمدعزيز

فضل

فرهاد
سميع

وهاب
الياس
زبير


سعدالدین
فقیرمحمد
دلاور
منجور
اکرم جان
فضل احمد
عبدالاحد
فیصل
جاوید
جمیل
یوسف
باچا
فضل ربي
سیدکریم
محمدعارف
محمد یونس
محمداصف
ادریس
روح الله
مطیع الله
ذبیح الله
الماس
الهام
تسل
فضل کریم
کریم الله
اقبال

- زينت شاه
  - احمدشاه
    - احمدخان
      - زيارتګل
        - جاويد
        - اجمل
        - عبدالغفور
        - عبدالشکور
    - نورمحمد
      - حاجي فضل محمود
        - فضل منان
        - فضل سبحان
        - فضل حنان
      - عبدالحميد
        - رفيع الله
        - حميدالله
        - امين الله
        - عبدالمجيد
        - عزت الله
      - محمدابراهيم
        - محمد يوسف
        - قيس
        - حسام
      - غلام خليل
        - صدام
        - غلام احد
        - غلام ربي
        - فضل احد
    - فيروزخان
      - حاجي غلام سخي
        - محمدسخي
        - محمداصف
        - محمدحنيف
        - اسرار
      - محمد نواز
        - محمدعارف
          - ارمان
          - کتاب الله
        - شکيب الله
          - برکت الله
          - فرحت
        - شفيع الله
          - هيواد
        - رفيع الله
          - خيبر
        - سباوون
        - همت الله
        - شريف الله

دغه هم لويه کورنۍ ده چې شجره يې د څمرکان پورې رسيږي چې په کوهستان کې يوه لويه کورنۍ ده.




ددې کورنۍ شجره هم د څیمرکان پورې رسېږي.




دغه کورنۍ د خيمرکان کورنۍ پورې اړه لري.




دغه کورنۍ د خیمرکان پورې اړه لري.



سید
صلاخان
غلام اکبر
محمد اکبر
محمد سید
حضرت اللہ
حبیب اللہ
غلام نور
اسلام نور
شاکراللہ
صفت اللہ
ذاکراللہ
خلیل اللہ
تسلیم اللہ
کلیم اللہ
جمع اللہ
عبداللہ
حیات اللہ
اعطااللہ
سید اکبر
محمداللہ
سین اللہ
نوراکبر
گل اکبر
فضل اکبر
غلام اکبر
فضل مالک
واحد
اکبر سید
غریب سید


شهاب الدين
افضل الدين
سيلاني
جيلاني
غلام نبي
غلام فاروق
غلام
سلطان محمد
ميرويس
جاويد
الفت
زمرک
ذاکر
شاکرالله
برکت
ادریس
حقاني
فضل ربي
حضرت نبي
سيدنبي
غلام ربی
حاجي عثمان
حاجي عزيز الله
حبيب الله
ذبيح الله
شهاب الدين
عزيزالرحمن
اجمل
اصل دين
ميرعلم
شهرعلم
شهرعلي
ميرنبي
سكندر



دوران
میرمحمدشاه
نوروزخان
محمدعمر
گل زمان
محمدعالم
محمدانور
سیدعمر
حضرت عمر
ملوک
شهزاده
پوله خان
جلات خان
کشر خان
عیسی خان
نواب
بهرام
احسان الله
مصباح الله
فتح الله
وحدت
ساعت ملوک
عبدالطیف
ولایت
عبدالمتین
فضل نبي
اکرام الله
انعام الله
عزیزالله
حفیظ الله
عمران
سمیع
سجاد
رفیق الله
مطیع الله
عنایت الله
کفایت الله
ذبیح الله
ذبیح
حکمت
مسیح الله
جلیل
جمیل
ناصر
افسر


فتح خان
عبدالمتين
محمد قيوم
بريالى
عبدالقيوم
رحمت قيوم
عبدالصمد
رياض
علي احمد
حيات
تسل
خسرو
تميم
فهيم
صميم
بصير


احمد
دوست محمد
خانزادگل
محمدخالق
عبدالخالق
غازي
عبدالصمد
حيات الله
اعطا الله
عزيز
حيات الله
امان الله
نصرت الله


ادم خان
زینت شاہ
محب اللہ
عبداللہ
سیف اللہ
نعمت اللہ
عبدالکریم
غلام
حضرت ولي
عزیز
محمد عیسی
عزت اللہ
محمد رحیم
اقبال حسین
گلزمان
حیات اللہ
اقبال
شفق
زاهد
ساجد
نوید
انعام اللہ
جاوید
فرید



ملک محمد نواب
سید ولي
ملک ګلولي
ملک حضرت ولي
حضرت الله
ميرولي
ملک رحمت ولي
حاجي محمدالله
روح امين
باچامير
ښايسته رحمن
ضياالرحمن
عزيزالرحمن
غازي
حضرت نبي
شامحمود
قيام الدين
انجنير عبدالله خان
حبيب الله
مجيد خان
يوسف
شېرعلي
غلام سخي
احسان الله
رحيم الله
صادق
اسدالله
اجمل
ايمل
رومل
مجاهد
احمد
نقيب
ذبيح
عبادالله
روح الله
ريحان
ارشاد



مستقیم
غلام نبي
نورولي
عبدالولي
شیرعلي
محمدنبي
عبدالنبي
غلام سخي
غلام علي
غلام الله
ملا عبدالمالک
عبدالروف
محمدحسین
غلام دستګیر
عبدالقادر
غلام حسین
اعطاالله
مطیع الله
فریدالله
زاهدالله
سجاداحمد
اکرام الله
خیاالله
انعام الله
ماهر
فرهاد




یادونه: د بریکوټ ټول ګوار کوهستاني ولسونه د دوه کورنیو څخه تشکیل شوي چې فقیرداري او غریب داري باندي مشهور دي.

بريكوټ



سعادت
ميرعالم
سيد خان
حاجي پيدين خان
حاجي ملک شېرزمين
همايون
پرويز
فريدالله
اعطاالله
اسدالله
روح الله
مفتون
سيد خان
عارف الله
عرفان الله
افتخار
حافظ الله
علي خان
رحمن الدين
مفتاح الدين
صلاح الدين
عابد
سجاد
حکمت الله
صديق الله

بریکوټ


محمد
عبدالغني
سلطان محمد
فضل غني
رضاخان
شاطماس
عبدالقيوم
شېرزمان
شېرمحمد
نصرت الله
فضل الله
صفی الله
نثاراحمد
ابراراحمد
رحيم الله
مطيع الله
حسيب الله
عبدالمقيم
الماس
عبدالنعيم
الهام
محبت
اصغر
اميدالله
قدرت الله
احسان الله
عرفان
قيام الله
خادم الله



مراد خان
اكرم خان
شرين خان
عبدالمتين
محمداكبر
حاجي جمدر
سرداعلي
عبدالولي
زمرک
عبدالطيف
خوشحال
گلاب
فريد
نورعالم
سيدعالم
نورالله
عصمت الله
رحيم الله
كريم الله
رحمت الله
اعتبار
تاج محمد
محب الله

بریکوټ

- سیدولي
  - حضرت ولي
    - محمدولي
      - فضل الرحیم
      - محمدنعیم
      - نادر
        - ساحل
        - محمداصف
        - حشمت
        - حکمت الله
      - انجنیر عثمان
        - محمدظهور
        - سحر
        - نعمان


نورمحمد
سید گلاب
ملک رحمت نور
عاشق اللہ
رحمن اللہ
احسان اللہ
سمیع اللہ
صبغت اللہ
حزب اللہ
مطیع اللہ
مہران
عمران

یوه ضروري یادونه:

بریکوټ ډېر په پخوا زمانو کې د ماشان دم (Mashan Dam) په نوم یادېده کله چې دې سیمې ته د اسلام مقدس دین پلوشې راورسېدې، د بریکوټ (Barikot) په نوم یاد شو. په دې بریکوټ کې یو تن ګوار د کوهستاني سلطان شاه باچا په نوم د ولسونو مشرتوب کاوه او د بریکوټ نه نیولې بد چترال د میرکنډي پورې یې واکمني چلوله له ارندو تر میرکنډي پورې دلته د زراعتي ځمکو نه لرلو په وجه دومره انسانانو ژوند نه درلود، د ډېر پخوا زمانو راهیسې د یو نسل څخه بل نسل پورې او موږ ته دا کیسې مشرانو له خوا شویدي، چې سلطان شاه بادشاه د خپل وخت یو نامدار، غښتلی او مشهور مسلمان و.

په نوموړي باندې د هغه وخت کفري لښکرو د چترال، باشیګل، خماریګل او کوتیا د لارو یرغل وشو چې ډېر زیات تاوانونه یې سلطان شاه باشاه ته ورسېدل، د بریکوټ پخوانی او لرغونو زمانو اباد کلی چې هغه وخت د کونړ د سین په غاړه چې اوس سرحداري او مدیر عزیزالرحمن کورنۍ په کې ودانې کړې ده، دغه محل کې کلی و او په خپله سلطان شاه په دې کلي کې ژوند درلود. ددې لښکرو په یرغل سره ټول کلي ته اور واچول شو او په همدغه محل کې یو لوی جومات ودان و چې هغه جومات هم په دې یرغل کې وسوزېد، څه اثار یې اوس نه لیدل کېږي، خو پخواني مشران وایې چې دغه محل کې دوه ژرندې او یوه پایکو او د جومات په خوا کې

یو لوی د اوبو حوض جوړ شوی و د ویالې اوبه به تل جاري وې او د ګرمو اوبو غسل خانې په کې وې چې د ژرندو اثار یې لیدل کېږي او نور څه اثار یې نشته چې په نتیجه کې سلطان شاه پهلوان په خپله هم پدې لښکرو او یرغل کې له ګڼو کسانو سره شهید شوی و.

دې ولسونو ډېر مالونه او اهالي حیوانات یرغلګرو په چور د ځانه سره وړي و، چې بیا وروسته د بریکوټ بر کلي د لمر لویدو ته جوړ شو او دیني مدرسه چې اوسمهال په بریکوټ کې ده په هغه وختونو کې دا محل د سلطان شاه د واکدارۍ یو خاص محل و چې دلته به راتللو او د ولسونو او قومونو سره به یې لیدل پخواني خلک وایي چې د روایاتو او کیسو په اساس چې د خپلو مشرانو څخه اورېدلي یوه غټه ښکلې څوکۍ دده لپاره او نورې ډېرې څوکۍ ښه په دې محل کې د مشرانو کېناستو لپاره موجود او دغه محل ته به تخت ویل کېده.

د بریکوټ د برکلي جومات د اصلي جومات د ورانېدو او شهید کېدو وروسته جوړ شوی دی او ډېر پخوانی جومات ګڼل کېږي. د بریکوټ د بازار جومات او د بریکوټ سرحداري ودانۍ د امیر عبدالرحمن د واکمنۍ په زمان کې ورته تهداب ایښودل شوی خو د سرحداري اساسي کار په عصري توګه د محمد ظاهرشاه په زمانه کې چې کله د کونړ او چترال د استقلال جبهې کامیابي ترلاسه کړه جوړ شوی دی، د بریکوټ ولسونو په هغه وخت کې یانې د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې ختیځ نورستان کې ښه ښه خدمتونه

ترسره کړي دي او د بریکوټ د سرحدارۍ او د سرحدي قطعې او د پریتګاه ځمکې یې د دولت په اختیار کې ورکړې وې او تراوسه دغه ایماندارو ولسونو ته په مقابل کې څه نه دي ورکړ شوي.


سعادت
جلات خان
معلم شبر محمد
ملک محمدامین
سلامت خان
فضل امین
فضل ودود
فضل هادي
ملي خان
محمدایوب
محمدطاهر
زاهدالله

بریکوټ



دیوان شاه
غریب
قادر شاه
نورمحمدخان
گل محمدخان
رحیم داکتر
نوراحمد
بشیراحمد
نصیراحمد
جاوید
فضل احمد
شہراحمد
سیداحمد
رسول
رفیق احمد
عزیز احمد
نذیراحمد

## هغه ماخذونه او کتابونو نومونه چې ددې کتاب په ترتیب کې ورنه استفاده شوې:


۱- افغاستان پېژندنه، ۱۳۸۴ل کال، اورنګزېب ارشاد.
۲- نورستان در گسترده تاریخ، ۱۳۷۹ل کال، ثورماچ.
۳- د پشه يي خلکو محیط، ژبه، ۱۳۸۲ل، نورمحمد غمجن.
۴- // // // //
۵- // // // //
۶- زمونږ سرحدونه زمونږ وياړونه، ۱۳۸۷ل، محمدنواز حقیقت.
۷- // // // //
۸- // // // //
۹- پشه يي خلکو محیط ژبه، ۱۳۸۲ل، نورمحمد غمجن.
۱۰- // // // //
۱۱- // // // //
۱۲- ګواريان په کونړ کې، ناچاپ، محمد نواز حقیقت سانین.
۱۳- // // // //
۱۴- // // // //
۱۵- کوشاني دورې د ژبو څېړنه، ۱۳۸۲ ، محمدنبي صلاحي.
۱۶- // // // //
۱۷- د پښتو ادبیاتو تاریخ، لومړی او دویم ټوک، ۱۳۸۴ل، استاد عبدالحی حبیبي.

۱۸- //　　//　　//　　//
۱۹- غونچه مجله، لومړی ګڼه، ۱۳۸۲ل.
۲۰- //　　//　　//
۲۱- //　　//　　//
۲۲- د نورستان سپه سالار غلام حیدرخان چرخي، ۱۳۸۲ل، عبدالغفار صدیق چرخي.
۲۳- //　　//　　//　　//
۲۴- د اسلامي معلوماتو پانګه، ۱۳۸۸ل، نورالله وفا.
۲۵- د اسلامي عقیدې اساسات، ۱۳۸۸ل، محمدشریف رحماني
۲۶- صدف، نشریه زنان، ۱۳۸۲ل، شماره ۲۲ و ۲۳.
۲۷- د کابل پوهنتون د ځمکپوهنې درسیي نوټونه.
۲۸- د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي درسي نوټ.
۲۹- کونړ غږ مجله، ۱۳۸۹ل.
۳۰- د چترال- کابل سفرنامه، ناچاپ، محمدنواز حقیقت سانین.
۳۱- ګواري- پښتو قاموس، ناچاپ، محمد نوازحقیقت سانین.
۳۲- علامه سید جمال الدین افغان، ۱۳۸۵ل، رازقي نړیوال.
۳۳- افغان- افغانستان، ۱۳۸۰ل، علامه عبدالحی حبیبي.
۳۴- د افغانستان تاریخ، ۱۳۸۲ل، علامه عبدالحی حبیبي.
۳۵- اریانا و اریائیان، ۱۳۸۹ل، صاحب نظر مرادي.
۳۶- پشه یي افغانان، ۱۳۸۹ل، محمدزمان کلماني.
۳۷- جغرافیایي تاریخي افغانستان، ۱۳۲۲ل، غلام محمدعبار.

۳۸- //                //                //                //

۳۹- ددې کتاب زياته برخه د ګواري سپينږيرو او پخوانيو مشرانو د معلوماتو په اساس د بېلابېلو کليو مشرانو څخه ترلاسه شوي چې دغه کيسې په ژوندۍ بڼه د يو نسل نه بل ته خوله په خوله پاتې دي او ځينې مسايل چې ما خپله معلومات درلود او په سترګو مې ليدلي او اورېدلي و، ليکل شوي.



# مننه او کور ودانی

د ډېر محترم ورور ضیاءالرحمن ضیاء څخه په ادبي مینه یوه نړۍ مننه کوم چې په مینه او اخلاص یې ددې کتاب د کمپوز چارې د هېواد پالنې په لوړه روحیه ترسره کړې او چاپ ته یې چمتو کړ، بریالیتوب ورته غواړو.

د ملي ارمانونو د ادبي او فرهنګي ټولنې مشر
محمد نواز حقیقت سانین



**راز حقيقت سانين**

مانونو د ادبي فرهنګي ټولنې رئيس او د
مجلې مؤسس دی .
نېټه او ځای: کونړ ، ناړی، ۱۳۳۹
وق ليسانس

**ري**

ه کوتره    د ماشومانو شعري ټولګه
تراني    د ماشومانو شعري ټولګه
کورونه    د ماشومانو شعري ټولګه
غوټۍ    د ماشومانو شعري ټولګه
لاره    د ماشومانو شعري ټولګه
د شعرونو ټولګه
سپوږمۍ    د شعرونو ټولګه
لاري    د شعرونو ټولګه
چل تراني    د شعرونو ټولګه
او روپ    د ګواري ژبې شعري ټولګه
ې آس    ماشومانو ته د خوند او پند کيسې
ي ژبه څنګه وليکو؟    تحقيقي اثر
ږ سرحدونه، زموږ وياړونه
يد "همت" يادونه
واکۍ خواږه يادونه
کوهستاني افغانان
ب خزانه

ی زيورات

از حقيقت سانين د هېواد يو پېژندل شوی
کوال، ژورناليست او محقق دی، چې له
يات آثار يې د چاب لپاره چمتو دي.




د پښتۍ طرح: ذکر حسيني